بسم الله الرحمن الرحيم

# الطريق المستوى على مثنوى معنوى

په اسانه پښتو ژبه


مصنف
مولوی صالح محمد صاحب
الارغستانی فیضه الجاری



ناشر
مكتبة الاسلامية
کانسی روڈ کوئٹه

بسم الله الرحمن الرحيم

ولاحول ولاقوة الا بالله العلي العظيم

مثنوي مي تاته دارنګه تحــــفه کړی
پرداغه سربــيره بــيامي حاشـيه کړی
پدي دواړومي مقصدستاســـي دعاده

په ځلورزره بـــيتومي ترجمه کړی
په معني وارتباط مي ښائسته کړی
هم داغه فقـــط فقـــط زماتمناده

برګ سبز تحفه درویشان

# الطريق المستوي
## علي
# المثنوي المعنوي

زره ئي ښه ده قبر انو سوغات

للعالم المحقــق والفاضل المدقــق وحــيدالزمان في علم الشــريعة فريدالدوران في علم الطريقــة مولٓنا ابو الحــفاظ صالح محمد القندهاري الارغستاني شيخ الحديث والتفاسير في الجامعة العربــية تحــت قيادة مولٓنا محمد طيمورشــاه مدظله الواقــــعة في ضلع پشـــين ګلان بـــندمنزرى.

سيدمولوي عبدالهادي آغا
0300=3824297

بِسۡمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحۡمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ

الحمد لله رب العلمين والصلوة والسلام علي سيد المرسلين وعلي آله واصحابه اجمعين امابعد.
پس دحمده وصلوته ځرنگه چه علم تصوف يوفن شريف او دالله درضاسره دجفت كولو
اوداغيارو څخه دگوښه كولو يوه لوړه وسيله اودالله ودرسول سره دعشق اوميني پيوند ه ولو
اودفاني دنياڅخه دصحبت شكيدلو يولويه ذريعه ده چه هم په دغه لاره باندي مؤمن
مسلمان دكمال اوكاميابي ښبنتن گرزي خومتاسفانه نوموړي فن په نن عصركښي دهجران
په زاويه كي غورځول سوي اودنسيان عنكبوت زالي ورباندي جاركړي ترداسي اندازي
چه په مابين كښي دعلماؤ يونابلده اوبي التفاته شئ گرزيدلي اوحال داچه پخواحقاني
علماؤ او روحاني صفهاؤ په رنگ رنگ دفترونو اوپخوږو خوږو شعرونو اوپه هرقسم بيتونو
تشريح كړي خصوصاً قدوة العارفين امام الهدي واليقين **مولٰنا الرومي** قدس الله سره
الاقدس كتاب مستطاب مثنوي معنوي په دي باره كښي موږ تاسي ته تحفه اوپيغام
راليږلي دي خودامعلومه چه نوموړي كتاب دعلم وعرفان يوبي پايانه درياب دي او داسرارو
ؤانوارو يوډكه خزانه ده خوافسوس داچه په موجوده وقت كښي چاله دي دريابه يو چمچه
هم نه پورته كوله اونه ئي لدي خزاني څخه يوه تلا را اخستله حتي نوموړي كتاب په اكثر
مدارسو اوپه نيز داكثرو مدرسينو وجود نلري چيري دخول په نصاب درس كښي نولهذا
دنوجوانانو مدرسينو په مابين كښي داسي وو كان لم يكن شيئاً مذكوراً
نوپه دغه خاطرعبدضعيف اوبي بضاعته بنده ابوالحفاظ صالح محمد ارغستاني داراده
وكړه چه پردغه كتاب په پښتو اشعارو ؤحاشيوليكنه وكړي په دي رجاء ؤ اميدچه گوندي
نوموړي فن وكتاب دهجران دزاويي څخه راووزي اوددرس وتدريس وصحني ته وړاندي
سي اپخواني برم ئي دوم ځل اعاده سي والله المستعان وعليه التكلان خومخكي
ترشروع په كتاب كښي څه مطالب په عنوان دابحاثو دابنده ذكركوي چه وطالب ته دبصارة
رهبراورهنما وگرزي.

مثنوي معنوي
په اسانه پښتو ژبه
مصنفهٔ مولوي صالح محمد
(الارغستاني)
دام فيضه الجاري

الراقم
سيد مولوي
عبدالهادي آغا

## (١) اول بحث په تحقيق كښي دلفظ دتصوف

په ماخذ كښي دكلمي دتصوف مختلف اقوال دي څني علماء داسي وايي چه كلمه دتصوف ماخوذه دصفاڅخه چه ضد دكدورت اوخيرن والي ده نوكله چه متصوف دغيرالله څخه ځان گوښه كړي اودالله سره ئي ځان وصل كړي اودخيرني دنياد تعلقاتو څخه ئي ځان وشكاوه نوخامخابه دصفاء مصدراومحل وگرزي اوبعض علماء ايي چه دصوف څخه ماخوذده چه معني ئي وړي ده وجهه دمناسبت ئي داده چه اهل تصوف به دوړيو جامي اغوستلي اودوي به دامسنونه طريقه گڼله ځكه چه ابوزرعه (رح) دخپلو مشائخوپه سند دحضرت انس (رضي الله عنه) څخه روايت كړي دی چه كان النبي (صلي الله عليه وسلم) يلبس الصوف ويركب الحمار يعني النبي (صلي الله عليه وسلم) دوړيو جامه اغوستله اوپرمركب سپريدی هم دارنگه علامه هجويري نقل كړيدي چه نبي (صلي الله عليه وسلم) وفرمايل عليكم بلبس الصوف تجدون حلاوة في قلوبكم. يعني تاسي دوړيوجامي اغوندي دايمان خوږ والی په خپلو زړونو كښي پيداكي اودصوفي په نسبت كښي وصوف ته يو بل مناسبت ؤ حكمت هم سته هغه داچه لكه وړي چه نرمه ده بايد صوفي ؤ متصوف هم نرم زړه ولري اوهم ددغه كار دپاره ډېر كوشش په كارواچوي اوبعضي علماء وايي چه لفظ دصوفي ومتصوف دصوفه څخه اخستل سوي دی ځكه چه اهل تصوف داصحابوصفه ؤ يادگاردي په دي خاطرچه اصحاب صفه هغه ډله وه چه هميشه دسرور كائنات په خدمت كښي اوسيدل اوعلم دين به ئي زده كاوه ددنياڅخه بي تعلقه وه اخلاق حسنه به ئي زده اواخذكول اودرسول كريم (صلي الله عليه وسلم) څخه فيض حاصله وه اوزهد ؤ رياضت ئي خپله پيشه گرزه ولي وه دنبي (عليه السلام) دمسجد سره ئي پريوصفه باندي په فقرؤ فاقه اوصبرؤ قناعت متوكلانه ژوند تيراوه دالله (جل جلاله) اورسول وامرته چمتووه دغيرالله والرسول څخه بي فرواوه ددنيادمال ؤمنال اند يښنه ئي نه درلوده خپله ټوله زندگي ئي ددين دپاره وقف كړي نواهل تصوف گورو چه داصحابوصفه پرمشرب باندي ژوند تيره وي خلاصه داچه دتصوف وصوفي په ماخذ كښي مختلف اقوال دي خوزما په نظر ئي اخذ دصفاڅخه چه معني ئي اوله وه ښه اوخوند وردي والله سبحانه اعلم.

## ٢) دوهم بحث په تعريف وموضوع وغرض كښې دعلم تصوف دى

نو وايو چه تعريف دعلم تصوف اكثر علماؤ داسې ليكلي چه . هو علم يعرف به احوال تزكية النفوس وتصفية الاخلاق وتعمير الظاهر والباطن لنيل السعادة الابدية . يعني علم تصوف هغه علم دى چه په ده سره احوال دتزكية النفوس اوتهذيب الاخلاق اوتعمير دظاهر وباطن پيژندل كيږي دپاره ددي چه سړي وسعادت اوكاميابي ابدي ته ورسيږي . خلاصه داچه ماهية دتصوف ددوو عنصرو څخه جوړ دى يو شريعت بل طريقت نو شريعت نسخه ده اوطريقت ددي نسخي استعمال دي اوو حقيقت ته رسيدل ددي نسخي داستعمال نتيجه ده . اوموضوع دعلم تصوف تزكيه وتعميروتصفيه دنفوس ده ځكه چه په نوموړي فن كښې دنوموړو داحوالو څخه بحث كيږي لكه تاسي چي دتصوف كتابونو كښې گورى . اوغرض ئي تبتل اورسيدل وسعادت ابدي ته يعني دمخلوق څخه تعلق دزړه قطعه كول اوخاص و الله ته په زړه كښې ځاي وركول چه دانو دسعادت ابدي لويه ذريعه ده .

## ٣) دريم بحث دمتصوفي حقيقي پيژندل ي

حضرت جنيدبغدادي (رحمة الله عليه) په دي باره كښي داسي فرمائيلي دي . التصوف مبني علي ثمان خصال . السخاء ، والرضا ، والصبر ، والاشارة ، والغربة ، ولبس الصوف والسياحة ، والفقر ، اماالسخاء فلابراهيم (عليه السلام) اماالرضاء فلاسماعيل (عليه السلام) واماالصبرفلايوب (عليه السلام) واماالاشارة فلزكريا (عليه السلام) واماالغربة فليحي (عليه السلام) وامالبس الصوف فلموسي (عليه السلام) واماالسياحة فلعيسي (عليه السلام) واماالفقرفلمحمد (صلي الله عليه وسلم وعليهم اجمعين . انتهي كلامه الشريف . يعني تصوف پراتوصفاتوباندي بِنادى دهغوعنوان دادى سخاء ، رضاء ، صبر ، اشاره ، غربت ، دوړيولباس ، سياحت اوفقر ، كوم چه داصفات دانبياؤ عليهم السلام خصوصي صفات وه نوكله چه يوبنده دنوموړو صفاتو څښتن سي اودانبياؤ عليهم السلام خصوصي صفات پكښي پيداسي نوخود به دصوفي حقيقي په نامه وپيژندل سي . تفصيل داچه ابراهيم (عليه السلام) په نهائي درجه كښي سخي ووهم په دي خاطرئي دخپل رب دخوشنودى دپاره خپل گران ځوي قرباني كړي دابيله خبره ده چه الله (جل جلاله) دده داخلاص اوصدق په واسطه دتعميله څخه دحكم بچ كړي اواسماعيل (عليه السلام)

په نهائي درجه کښي درضامندي اوګردن اېښودلو وحکم الٰهي ته خاوند وو اوپه کمال
رضاء دخپل روح ښندلو ته چمتو سو اووخپل پلار ته ئي د ( **ياابتي افعل** ) نداوکړه
اودخپل صبراظهارئي ورته وکړي . اوايوب ( عليه السلام ) په نهائي درجه کښي صابرؤ
په دي خاطر چه دده په تمام بدن مبارک کښي دچنجيو مرکزونه جوړ سوه خوده اف
قدري هم ونکړه خوددي لوي صبر په عوض کښي الله ( جل جلاله ) نه صرف صحت
كامله وركړي بلكه دده دقدر دپاره ئي دسوني باران ورباندي وكړي اوزكريا (عليه السلام)
نهائي درجه پاي بند دخاموشي واشاري خاوندؤ كوم وقت چه الله ( جل جلاله ) ورته
وفرمائل چه دري ورځي به دخلقوسره داشاري نه پرته په ژبه خبري نه كوي په ټاكلي
مده كښي دذكريا ( عليه السلام ) په زړه كښي په يوه كلمه تكلم هم ور وه نه ګرزيدى
اوغربت اوبي تعلقي په نهائي درجه په يحيٰ ( عليه السلام ) كښي موجود وه ټول ژوندئي
په غربت اوبيګانه ګي كښي تيراوه حتيٰ دخپلو قريبانو داوسيدو څخه ئي هم دده كونه
خودغه عمل دده په حق كښي دزيات قرب باعث وو او دوړيولباس دموسيٰ ( عليه السلام )
خوي اوعادت وو ټول عمريه ئي دوړيوجامي اغوستلي اوسيروسياحت دعيسيٰ
( عليه السلام ) خوي ؤ خاصيت ؤ ځكه چه ده عليه السلام دپاره دمعرفت دحق تعاليٰ
اودتبليغ وُ ارشاد په خاطر عمرمبارك په سيروسفرتيراوه اودخداي ( جل جلاله ) دبندګانو
اصلاح ئي خپل نصب العين ګرزه ولي ووا وفقردمحمد ( صلي الله عليه وسلم ) شعاروو
ځكه چه الله تعاليٰ وده ته دمځكوو اسمانودخزانو كلي وسپارلي اواهل مكة دباچهي
پيشكش ورته وكړي مګرحضور ( صلي الله عليه وسلم ) غوښته چه دالله ( جل جلاله )
ددرګاه سره وابستګي اووفاداري قبوله كړي اوددنيا پرخزانو اوپاچهي ئي فقرته ترجيح
وركړه اوټول عمرشريف ئي په فقراومسكنت پاي ته ورساوه نوصوفي كه ددغو خصالو
جوګه وګرزيدي نوبيشكه حقيقة صوفي دى. خوعارف هجويري داهم ليكلي دي چه
اهل تصوف دري قسمه دي يوصوفي بل متصوف بل مستصوف صوفي هغه دي چه
دخپل ځانه څخه فاني وي دحق سره باقي وي دنفس اوطبيعت دقبضي وتلي اوداقتدا ر
څخه ازادوي اودحق سره په مكمل طورواصل وي اومتصوف هغه دي چه په رياضت
اومجاهده سره دادرجه غواړي اوپه راه طلب كښي خپل ځان دصوفي په صفاتودرست
اوقائم ساتي . اومستصوف هغه څوك چه ددنيا دمال ومنال مرتبه عزت حاصلولودپاره
خپل ځان دهغو يوپه شان كوي اودصفا اوتصوف دواړوخيزونوسره څه تعلق نلري
په ظاهري عبادت كښي ئي غدرفريب جلب نصب العين ګرزه ولي وي خلاصه داچه
تصوف خپل اصول ووقوانين لري دهغوپه رڼاكښي صوفي صوفي دي وبس نوسالك
بايددمرشدپه هكله كمال كوشش پكاروا چوي اودځان دپاره يوصوفي واقعي اويو

مرشدحقيقي انتخاب کړي ځکه چه مرشدناقص دسالک دپاره زهرقاتل دی لکه په ظاهري علم کښې چه استاذ ناقص دطالب دپاره زهرقاتل دی لکه داچه موږ وتاسي ښه پیژندلی ده دامضمون به موږ وتاسي ته مولنا قدسره په ضمن دحکایاتو ډیرواړونه راته وښیي، نوردي پرخداي پاک سپارم والسلام .

## ۴ خلورم بحث دعلم تصوف اهمیت

تاسي ته معلومه ده چه اسلام دظاهري اوباطني ښیګڼو مجموعه ده اوتامخکښې پیژندلي چه باطني خوبي دعلم تصوف وظیفه ده نودعلم تصوف اهمیت اوضرورت دقرآن شریف په رڼاکښې داسي دی چه الله پاک ورسول کریم (صلي الله علیه وسلم) ته داسي امرکوي . چه دا امروامت ته دی ( اعوذ بالله من الشیطن الرجیم وَتَبَتَّل اِلَیه تَبتِیلاً ) وشکوه خپل ځان دماسوي څخه دالله والله ته . یعني دماسوي' دالله څخه علائق قطعه کړه اودالله سره ځان وصل کړه . قاضي ثناء الله ( رحمه الله ) په تفسیرمظهري کښي لیکلي چه قال ابن زید التبتل رفض الدنیا ومافیها والتماس ماعندالله الخطوة الاولي' للانقطاع عن الخلق والثانیة الوصول الي الحق . یعني تبتل ددنیا وُمافیهاته رخصت ورکول اووحق ته وصل کیدل بولي اوصاحب دتفسیرحسیني فرمایلي یعني نفس خودرا ازاندیشه ماسوي الله مجردساز وبهمګي روي بدوآر . **فرد** .

**دل رادروبند واز غیربګسل . هرچه جزاوست بیرون کن ازدل**

یعني زړه داند یښنوڅخه دماسوي الله خالي کړه امخ خاص دالله ولورته وګرزه وه زړه په خداي وتړه دغیره ئي راوشکوه اوهرڅه چه سوي دالله وي هغه دزړه څخه دباندي کړه همدارنګه که دقرآن کریم ونورو آیاتونو ته ځیرسو اودتفاسیروکتابونه مطالعه کړونو موږي مضمون به راته ښکاره سي اودعلم تصوف اهمیت به په قرآن شریف راته محقق سي خوموږ په دي مقام کښې په داغه اکتفاء کوو . همدارنګه دعلم تصوف اهمیت په احادیثو درسول الله بیان سوي نه ګوري وحدیث ته دجبرئیل ( علیه السلام ) چه په ام الاحادیث باندي شهرت لري دین ئي پردري لویو شعبو تقسیم کړي چه اسلام ایمان احسان شیخ عبدالحق الدهلوي په لمعات کښې لیکلي چه مبني اواساس ددین پرفقه اوعلم کلام اوتصوف باندي دی اوپه مذکورکښې واضح سوي دي چه اسلام اشاره وعلم فقه ته ده ځکه چه فقه متضمنه اعمالو واحکامو شرعیه ووته ده اوایمان اشاره واعتقاداتوده چه هغه اصول واساسات دعلم کلام کیږي اوپه احسان اشاره وعلم تصوف ته ده چه هغه دصدق اومشاهدي ترجمان دی نودغه دري علمه یودبله سره لازم اوملزوم دي چه تمامیت اواکمال دیوه بیله بله نه راځي ځکه حکم الهي بدون فقه نه پیژندل کیږي نه زده کیږي اوفقه بدون تصوف څخه اوتمامیت نه اکمال نه لاري

ځکه چه هیڅ عمل بې صدق توجه وخداي پاک ته نه کامل کیږي اوفقه وتصوف هر یو بدون ایمانه څخه صحت نه لري پس ئي خپل په منځ کښي مثال دروح وجسد دی، همدارنګه دعلم تصوف داهمیت په باره کښي علماؤ اوسلفو صالحینو مشائخو عظامو پوره پوره بیانونه کړي اولیکلي دي ملاعلي قاري ( رحمه الله ) په مرقات شرح مشکوٰة کښي دامام مالک ( رحمه الله تعالي ) څخه نقل کړي ( من تفقه ولم يتصوف فقد تفسق ومن تصوف ولم يتفقه فقد تزندق ومن جمع بينهمافقد تحقق انتهٰي ) څوک چه په علم الاحکام اوفقه کښي پوهیدل اختیار کړي اوپه تصوف کښي اشتغال نه وي نوده دځانه څخه فاسق جوړ کړي اوڅوک چه تصوف اختیار کړي په فقه علم نه لري نوئي ځان زندیق جوړ کړي یعني هغه څوک چه عالم په فقه وي خوعمل ئي دصدق واخلاص اوحسن نیت په ډول نه وي یو بې عمله عالم دی، نودامرتبه دفسق ده نودده علم وفسق ته مفضي سو اونتیجه ئي فسق سو اوهغه څوک چه په تصوف کښي لاره وهي اوپه قدرضرورت واحتیاج علم داحکامونه لري نودده کار وبار مفضي وزندیقیت ته ګرزي په جامع الاصول کښي لیکلي چه امام شافعي اوامام احمد ( رحمهماالله ) به مجلسونو ته دصوفیه کرامو ورتلل اوددوي په ذکر کښي حاضریدل نو ورته وویل سوه چه څه وجهه ده چه تاسي دومره لوي امامان ددغه فقراؤ مجلس ته ورځي دوي وفرمایل ( ان هولآء عندهم راس الامركله وهوتقوي الله ومحبته ) یعني ددوي سره اصلي اوبنیادي کاردي چه هغه پرهیزګاري اودخداي ( جل جلاله ) سره محبت اومینه ده اوحضرت امام رباني مجددالف ثاني په مکتوبات شریف کښي لیکلي چه شریعت دري اجزاء لري چه علم اوعمل اواخلاص دی، که یوله دغه دروڅخه کم سي شریعت کم سو اوپر هغه باندي شرعي الزام راځي خلاصه داچه داموضوع که نوره هم ترڅیړنه لاندي ونیسونو ډیروقت به وغواړي اوډیر کاغذونه به تور کړي نوبنه داچه په داقدري کفایت وکړو نوردي پرخداي پاک سپارم والسلام . ابو الحفاظ مولوي صالح محمد ارغستاني .

## ۵ پنځم بحث دمولّنا قدس سره پیژندنه

دمولّنا قدس سره نوم محمد ، لقب ئي جلال الدین سلسله دنسب ئي داسي ده محمد بن محمد بن الحسین البلخي بن احمد بن قاسم بن مسیب بن عبدالله بن عبدالرحمٰن بن ابن ابي بکر الصدیق ( رضي الله عنهما وعنهم ) . په سنه کښي =۶۰۴ = دبلخ په منطقه کښي زیږدلی ابتدائي تعلیم ئي دخپل پلار بزرگوار په غیږکښي کړی واپس ئي داد ب ځنګون په نیزدسید برهان الدین غبرګ کړي چه داجل علماؤ او فضلاؤ څخه دخپل عصروو چه په اکثر علوموکښي داهل ظاهر بهره ورسو په دغه وقت ئي عمرنولس -۱۹ = کاله وو پس مولّنا قدس سره په دتفاق دخپل پلار بزرگوار دپاره دتکمیل دعلومو دسیروسیاحت شروع وکړه څو قونیه ته واردسوځه مده پس دشام پرلورري وخوځیدی واصل ددمشق سو په دغه ځاي کښي شل = ۲۰ = دارالعلومه وه خوبیاهم تردغه ځاي تیرسو څوحلب ته ورسیدی ځکه چه سلطان صلاح الدین ډیر مستحکم مدارس جوړکړي وه خوحلب ئي مدینة العلم ګرزه ولي وونومولّناقدس سره په مدرسه حلاویه چه واقع په حلب کښي وه استقامت اختیار کړه اوددمدرسي مدرس مولّنا کمال الدین حلبي ئي دخپل ځان استادوګرزاوه ځکه چه نوموړي مدرس په دي صفاتو موصوف وو مفسر محدث حافظ فقیه فاقدالمثیل کاتب خوشنویس ادیب فرید العصر چه تاریخ ابن خلکان ئي هم بیان کړي او مولّناقدس سره غیردحلاویه نورومدارسو ته هم تګ راتګ کاوه څو په علم تفسیروحدیث وفقه واصول وسائر علوم نقلیه وعقلیه کښي ملکه کامله حاصله کړه څوچه دخه دشوارو مسائلو دحل مرجع وګرزیدی اودرس وعظ افتاء ئي خپله وظیفه وګرزه ول کوم وقت چه دده سن ۏ سال خلوینبت کلنی ته ورسیدی نومولّناقدس سره په ارتحال دخپل پخوانی استاذسید برهان الدین دخپل وطن څخه وقونیه ته خبرسو ځکه چه استاذوده ته دخط په ذریعه اطلاع ورکړه نومولّنادقونیه پرلور روان سواو په ملاقات دخپل استاذمشرف سرپس دمعانقي اوکمالي میني اومحبت استاذورته وفرمایل چه زماپلاربزرگوارزماشیخ بهاؤالدین قدس سره یو امانت ستادپاره ماته راکړي اوس ئي زه تاته رسوم هغه داچه این علوم ظاهر بودندواین علوم باطن است آن درسفینه واین درسینه یعني هغه علوم ظاهره چه تاحاصل کړي اوزده کړي دي هغه ستادزړه ووجوده دباندي دي هرچه علم باطني دي هغه ستاپه زړه ۏ وجود کښي دننه دی پس مولّناقدس سره لاس وروغځاوه اودطریقت بیعت ئي ور سره وکړي مولّناقدس سره په مثنوي شریف کښي ځاي پرځاي واسم ګرامي ته دسید برهان الدین قدس سره حسب مناسبت مضامین په خپلو اشعاروکښي په کمال ادب وتعظیم اشاره کړي اویاده وي ئي لکه یو مرید چه دخپل مرشد نوم پرخوله راوړي خوپردغه بیعت سره رنګ دعلومو ظاهره ووپرمولّناقدس سره غالب وودرس وتدریس ۏ فتوي

ووعظ ئي دپخواپه شان دځان پيشه گرزه ولي وه څوچه دشمس تبريزي سره ملاقي کيدی دشمس په ملاقات کښي مختلف اقوال راغلي خوهغه څه چه مستند اومعتمد دي هغه داچه جواهرمرضيه کتاب ليکلي هغه داچه مولنا قدس سره يوه ورځ وخپلو شاگردانو ته درس وايه اوډيرکتابونه ورته پراته وه شمس تبريزپه اشاره دخپل پيربابا کمال جندي ( رحمه الله ) ورته راغلي اومولناته ئي وويل داڅه شئ دي مولناورته وويل داهغه څه دي چه ته ئي نه پيژني سم دستي کتابونه لولپه اوايره سوه مولناورته وويل داڅه دي شمس ورته وويل داهغه څه دي چه تي نه پيژني شمس دستي ولاړی سمدستي مولناته يوحالت وجدانيه پيدا سوچه وټوله خانمان مال ومنال متاع اهل وعيال ته ئي په مخه ښه وويل اوپه تلاښ دشمس په صحراء اوغرونبارووکلو گرزيده لنډه داچه دشمس سره ملاقي سواودصلاح الدين زرکوب په حجره کښي شمس ؤمولنادشپږومياشتودپاره معتکفان سوه غذائي قطعاً ترک کړه پس دمولنا په حال کښي زيات تغيرراغلي درس وتدريس وعظ وغيره ټوله پاته سوه دالله ورسول اودشمس په عشق کښي مستغرق وگرزيده دچاسره اختلاط نه کاوه يونفس دشمس دصحبته نه جلاکيدی يودم په خلقو کښي شوروغوغاپيدا سوه ډيروخلقوبي تهذيبه خبري شروع کړي چه يوديوانه پرمولنامسلط سوڅه ئي په وکړه شمس ددي انگيري په واسطه ددغه ملک څخه بيرون ولاړي مولنادشمس په فراق دټولوخلقوڅخه گوښه نشيني اختيار کړه خلاصه داچه کوم وقت چه مولنادشمس په شهادت خبرسوحالت ئي ښه تغير وخواړه اوجذباتي شاعرانه چه دده په طبيعت کښي پټ وه په مهجوري دشمس په جوش وخروش راغله څوچه تراندازه تيراشعاردمولناپرژبه ويل سوي پس مولناتردي لويه غمه دشيخ حسام الدين ( رحمه الله ) همجواره سوچه خپل محزون زړه ته ئي دده په ملگري تسلي ورکوله شيخ حسام الدين هغه څوک دي چه دمثنوي شريف دتاليف باعث گرزيدلی اومولنا په خپل کتاب مثنوي کښي وده ته ډيرډيرخطاب کړي اودکتاب په عربي ديباجه کښي هم دده بيان کړي باعث داسي سوچه شيخ حسام الدين دمولناڅخه آرزوي قلبي دتحريردمثنوي وکړه اومنگولي داصرارئي دمولناپه لمون پوري وجنتلي پس هغه څه مولناپه عالم ومثال کښي ويل حسام الدين نوشته کول بيائي پرمولناقرائت کول څوچه دمثنوي شهرت ؤمقبوليت عالمگيرسو. راغلودمولناقدس سره وفات ته مولناقدس سره پرتاريخ د = ۵ = دجمادي الثاني سنه - ۶۷۲ - داته شپيته -۶۸ - کالوپه ددارالفناء ودارالبقاته رحلت وکړي . انالله وانااليه راجعون دابيان موږدمختلفوکتابونواوتاريخونو ستاسي دپاره راچڼ کړي تاسي غنيمت وشميري پس دفراغه يوورکي ديباجه په فارسي ژبه دپاره دموفقي دکتاب مثنوي تبرکاستاسي حضورته وړاندي کوم پس به نوپه شرحه دکتاب شروع کوو نوداسي وايو .

بسم الله الرحمن الرحيم

پس از سپاس خداوند متعال و درود مصطفیٰ علیہ الصلوٰۃ والسلام بگوش عزیزان میرسانم که شعر حسنه حسن وقبیحه قبیح الحمد والمنة بنده باوجود قوهٔ شعریه از اشعار گوناگون مجانبت ورزیده وکدام شعری از اشعار متذکره برزبان خود نرانده لکن فی الحال بامید انعکاس شعاع عالم ربانی وعارف حقانی وعاشق روحانی مولٰنا الرومی قدس الله سره الاقدس دست باین اقدام زده تا باز آء هر بیت از کتاب مثنوی معنوی چند ابیات بزبان مادری خویش خیلی ساده وخالی از لغات غریبه ومجازات بعیده واستعارات لطیفه بحضرت شوندگان اراءه نمایند ولی قبل از آغاز کتاب مستطاب یک قطعه اشعار دربارهٔ توحید ذات یگانه که جمله ممکنات وجمیع کائنات از جواهر واعراض بدین مقوله قائلند یا بزبان قال ویا بزبان حال وقتی که مولٰنا قدس سره در اوائل ابیات خود بزبان حال اشاره کرده بنده هم قطعه اشعار بر دلات حال کائنات منعقد ساخت بدینمنوال .

جل وبلبـــــل دواړه داداســــــتان وایي لااله الاالله
لوړه وجوره دښت وبیبــــــــان وایي لااله الاالله
بحــــــــرکښي دننه ټول ماهیان وایي لااله الاالله
ټوله دریابـــونه کاني بـــوټي ددامان وایي لااله الاالله
درختي ومیوي وټول ښاخلي دګلســــتان وایي لااله الاالله
اوریځي وبـــرېښناوي وتناوي وبـــاران وایي لااله الاالله
عرش وکرسي لوح وقــلم واړه په لوړشـان وایي لااله الاالله
مشرق مغرب شمال جنوب هم دافاني دوران وایي لااله الاالله
بوالحــفاظ په زړه وبه قــلم وبه بـــیان وایي لااله الاالله
پوست یه دبدن گوشت ئي دتن دسربینتان وایي لا اله الاالله
څوچه مي ژوندون وي زمالســـــان وایي لا اله الاالله

غروزمین واړه هم اســـــــمان وایي لااله الا الله
حـــجره ومدره وډگروریگســـتان وایي لااله الاالله
پرســـــر دمځکي مارمگس میږیان وایي لااله الاالله
پورتــه په هواکـښي تــل مرغــان وایـــي لاالـــه الاالله
چمن وپه گلشن کښي ټول گلان شبوي ریحان وایي لااله الاالله
راســته بــادوچپه بادوصبابــادوطوفان وایي لااله الاالله
پاســه تراسمان لاندي ترمځکه ټول شــیان وایي لااله الاالله
صراط اعراف جنت دوږخ هم داباقـــي جهان وایي لااله الاالله
په فلوپه رگوپه رشــــتوپه بــــنان وایي لااله الاالله
همه واړه هډونه وبـــــندونه ونوکان وایي لااله الاالله
پس په زمادمـــرگه دافرمـــان وایـــي لاالـــه الاالله

چه فارغه زه وته ســــــــودا ین آنه
پاک الله دي په نصیب زموږ کړي توفیقه

نوشـــروع بــه په کتاب کووالآنه
پاک الله دي هدایت زموږ کړي رفیقه

(١) څرنګه چه ټوله موجودات اوهمه احوال داهل الله په نظر کښي دالله ( جل جلاله ) دمشاهدي مظهر وه اودهرڅیزه ئي دعبـــرت درس اخســـتي ته نه ګوري چه یوفارســـي زبـــانه عارف څه وایي .
برګ درختان سبز درنظر هوشیار = هرورقـي د فتریست معرفت کردګار = ماوارو جامد اوعاطل فکر ئي نه ؤ بلکه په ځان وغیره اوپه احوالو کښي دټولو اشیاؤ دالله ( جل جلاله ) دمشاهدي پرلوروخوځیده نه ګوري پښتون عارف څه وایي هرڅه ته چه ګورم راته ښکاري : ترهرڅه په خپل ځان کـي راتـه ښکاري : نولهذا مولنا قدس سره الاقدس دنل حال په داسـي ډول بیان کړي چه ماوتاته دعبـرت اودخپلو جداییو درس راکوي نو وایي پشنوازني الخ .پاته سوه داخبره چه مولنا قدس سره دخپل کتاب تصدیربه تسمیه باندي وکړي داخوډیره ښه ســوه چه موافقه دقرآن عظیم شان اوعمل په حدیث دائراواتباع دسلفو کرامو ئـي پرځاي راوړلکـن په ترک کښي دتحمید ترنوموړو عهدولاندي راځي جواب بـــه داسي وایو چه باء په بشنو کښي قـائم مقـام دتسمیه وحمدده دواړوده ځکـه علـي ( رضـي الله

بسم الله الرحمن الرحیم

(١)

| بشنواز نی چون حکایت میکند | وز جدائیها شکایت میکند |
|---|---|
| نل بـــه خودکوي ژړازخمي خاطردي | دوطنه جلاســـوي مســـافردی |
| نـل واي زمـاړګي دی ډک نـن دارمانـه | چیري.زه چیري مي پاته نیســـتانه |
| دوطنه جلاســــــــوي يم ژړيږم | په رقـــم رقـــم نغمودرته چونيږم |
| جدايـي مـي ډيـري دي نـه چه يـوه ده | دزخمي زړه مـي راجـګه دانغمـه ده |
| اول زماده جدايي دنيســــــــتانه | دوم ســرمي قـطعه کيږي هغه آنه |
| دريم پاي مي سم دستي راڅخه پريکيږي | څلورم مي نس په اورراڅخه بيليږي |
| نوبـــه خودکوم وتاته حـــــکايته | دداخپلو ستو مانيو شـــــکايته |
| دانقريربـــــه په ظاهردنل ويل کړو | حقيقت ته به نواوس داسي کتل کړو |
| درومي واشـــاراتو ته بيدارســـه | هم دده په تنبيهاتو خبردارســـه |
| غالبـــاً دمولاناداســـي ويل وي | په ظاهر يوه وينامطلب ئي بـــل وي |

عنه ) فرمائي ټوله مافي التوراة والانجیل والزبورموجودپه قرآن کښي دي اوټوله قرآن موجودپه باء کښي دی اومفسرینو کرامو فرمایلي دي چه ټوله قرآن شریف مضمرپه سورة فاتحه کښي دي اوسورة فاتحه مضمرپه بسمله کښي دي او بسمله مضمرپه باء کښي ده بي ماکان وبي مایکون که دي تفصیل خوښ وي ولویو تفسیرو ته لکه تفسیر کبیروغیره ته مراجعه وکړه اوداجواب هم کیدلاي سي چه مولنا قدس سره اګرچه حمد همدارنګه پرژبه نه دی چلولي خودامعلومه ده چه شان مستغرق دده اوروح فاني دده قرارګاه دحمدوصلوة ده اوهم دغه ډول دحمدو مولناته منظورنه په ژبـه وبـس لهذا مولنا په خپله دمثنوي په اتمه صفحه کښي فرمائي . ترک استثنامرادم قسوتي است : ني همین ګفتن که عارض حالتست :
اي بسانا ورده استثنابګفت : جان اوباجان استثنااست جفت : خوزماپه نزدښه جواب دادی چه مولنا قدس سره خودکتاب دپاره دیباجه په عربي ژبه لري چه په یوه ورقـه مخکښی کښي ته ویني هلته خوده حمدویلي دي هغه ئي سردکتاب دي .
دابشنو الخ سردکتاب نه دی نوترکمه عهده لاندي راغلي ، ثم بشنو فعل امرپمعني داسمع وچون استفهامیه دي چه په لغت فارسیه کښي په چون کدامیه تعبیرځني کیږي جواب ئي ازجدائیهاالخ دی اوس به دازده کړوچه تازموږپه بیتوږږنده چه مراددنله څخه فاني في الله اوانســان کامل دي ددي دووترمابـین تشبیه صوري هم ســته ځکه دهریوه وجودډیرینه مجروح ؤسوه خلي ده لکن ده یوه داپه اورددنیاهم دارنګه هریودفراق ژړي رنګ لري هم دارنګه ددوي په مابین کښي تشبیه لفظي سته څکه لفظ دني چه په کسره دنون ووایي په لغت کښي دفرس دنفي معني ورکوي دامعلومه ده چه په هریوه کښي نفي ســـته دنل داخوښکاره ده فاني في الله خوهم خپل وجودعارضي نیســـتي کړي دی همدارنګه ددوي په مابین کښي تشبیه ذاتي سته ولي نس دنل خالي دي رنګ رنګ نغمات ځني جګیږي همدارنګه انسان کامل زړه ئي خالي دماسوي الله څخه اونغمات الربانیة ځني پورته کیږي .

ابو الحفاظ : مولوي صالح محمد ( الارغستاني )　الراقم ، سیدمولوي عبدالهادي اغا

(۱) سيدعلي هجويري په کشف المحجوب کښي ليکلي دي خلاصه ئي داده چه فاني في الله په اصطلاح کښي داهل تصوف هغه دی چه ټوله اوصاف ذميمه ئي لکه جهل وکبروغيره دځانه فاني کړي وي اوپرځاي ئي حميده خصال په ځان کښي راوستلي لکه علم وعجزوغيره اوپردغه سربيره ئي رابطه وتعلق دالله ( جل جلاله ) سره مضبوط وي اوددنيادتعلقاتو څخه ئي ځان پريکړي وي اوداالله په عشق اومحبت کښي محوه اومستغرق وي بيله خپل معشوقه بل څه نه ويني نه ګوري متوجه اليه خاص الخاص معشوق وي وبس ټوله ماسوي الله غائب ګڼي حتي خپل ځان **حکايت** يوسري جنيدبغدادي ( رحمة الله عليه ) ته حاضرسو او عرض ئي وکړي چه دلږ وقت دپاره ماته اجازه راکړه چه يوه ضروري خبره درته کوم حضرت جنيدبغدادي ( رحمة الله عليه ) ورته وويل وروره ته لماڅخه هغه څه طلب کوي چه زه ئي دموديو په تلاش کي يم زه دځوکلونوڅخه غوارم چه ديوي لمحي دپاره خپل ځان ته حاضرسم خوونه توانيدم چه حاضرسم هرکله چه زه دخپل ځان دپاره حاضرنه يم نوستاده پاره به څنګه حاضرسم ۱۲

(۱)
اوس دنله څخه مرادفاني في الله دی
دتشبيه په واسطه فاني مراديږي
ژړي رنګ عشق ئي سوه ځلي ديرينه وي
دوطن پرجدائي کړي شکايته
دسيني په جوش ئي هرکله ځګيروي وي
اودخپلوجدايي کړي حکايته
فاني وايي زه به ولي غمجن نه يم
دحضرت عنديه چه راجلاسوم

(۲)
دوطنه جلاسوي په ژړادی
تشبيه داده چه نمونه ئي بيانيږي
لکه نل نري بدن دائي پيشه وي
لکه نل مدام کوي داحکايته
لکه نل داوطن ټول ورته پره دي وي
لکه نل بيانه وي خپل شکايته
لکه نل داسي به ولي درمندنه يم
لامحاله په فريادؤ[۳] په ژړاسوم

(۲) دوطنه جدايي ئي عبارت ده دده دليري والي دمرتبي څخه دغيب اول اودغلبي داحکامو دمابه الامتيازپرمابه الاتحاداو دارنګه ليري والي مرتبه پر مرتبه لکه موږ چه دمراتبو شميرپه اشعاروکښي درته ليکلي دي نوفاني في الله ددغه خپلي مهجوري په خاطرژړاکوي ۱۲

(۳) يعني زماوجودخودغيب اول په مرتبه کښي دالله ( جل جلاله ) سره يوؤ ځکه چه زماوجوداجمالي دالله وجودؤخو په دي تعيناتو دالله ( جل جلاله ) څخه را ليري سوم عاشق به خو دمعشوق پرليري کيدوفريادکوي راغلوتفصيل ته دمراتبو اوله مرتبه دغيب اول ده چه تعبيرپه غيب الغيوب هم ځني کيږي لوبه نامه دحضرت عنديه اوحضرت احدية هم ياديږي غيب اول عبارت دي دذات المستجمع لجميع الصفات دامرتبه دلاحدية ده هيڅ نوعه کثرة پکښي نسته دوهمه مرتبه دغيب ثاني ده چه تعبيرپه حضرت علميه الٰهيه هم ځني کيږي دامرتبه مرتبه دقرارداعيانو ثابته وده دريمه مرتبه مرتبه دلرواحوده چه تعبيرپه عالم جبروت هم ځني کيږي دامرتبه مرتبه دقراردارواحو مجرده ؤ ده څلورمه مرتبه دعالم المثال ده چه تعبيرپه عالم الملکوت هم ځني کيږي دامرتبه مرتبه دبقاء داشياؤکونيه لطيفه وجوداواشباهالاجساده پنځمه مرتبه مرتبه داجسام ده دلمرتبه مرتبه دوجوددلشياؤمرکبه کثيفه ؤچه قبول دتبعيض وتجزيي اوخرق والتيام کوي شپږمه مرتبه مرتبه دمجموع المراتب ده دامرتبه مرتبه دجهة جامعه ده دانوحقيقت دلنسان کامل ده ولي ده دافاعتباردبرزخيت جامعه ء ټولومراتبولره .پس پوه سه په دي باندي چه صوفيه کرام په وحدت دوجودقائل دي اولشياء عين حق بولي لوحکم په همه اوست کوي نولهٰذادعلماؤ دشريعت غراء ترسخت تنقيدلاندي راغله حتي وبعضوته داخبره دمرګ په قيمت تمامه سوه خودامسئله دوحدت الوجود په مابين کښي دعلماؤ دشريعت اوپه مابين کښي دصوفيه کرامويوه لويه معرکه وګرزيده څودامام رباني مجددالف ثاني ( رحمة الله عليه ) څخه دنوموړي مسئلي پرښتنه وسوه په داسي دول چه صوفيه کرام په وحدت دوجودقائل لوعلماء دشريعت داکفرلوزندقه بولي لودادواړه طاتفي دفرنو ناجيه وڅخه دي .حقيقت ددي معاملي ستاپه نيزڅه دي حضرت امام رباني ( رحمةالله عليه ) ددي مسئلي حل وجواب دمکتوبات شريف په متعددو مکتوبونوکښي په خپله خوږه پارسي ژبه وسائل ته په تفصيل بيان کړي خلاصه دجواب ئي مويږ تاسي ته په مورني پښتوژبه داده چه دلنزاع په مابين دفريقينوراجع ونزاع لفظي ته ده ځکه صوفيه کرام چه په وحدت دوجودقائل دي لولشياء عين حق بولي لوحکم په همه لوست کوي مرادئي دانه دي چه اشياء دحق جل وعلاسره متحدي ياتنزل واقع سوي ياتشبيه راغلي ياواجب ممکن سوي دي بيچون په چون راغلي ځکه چه داټول کفره

ص والحاداوضلالت وزندقت دي په قول کښي دصوفيه کرامونه الحادسته نه عينيت نه تنزل نه تشبيه فالله سبحانه الآن کماکان دوجوب ئي وامکان ته ميل نه دي کړي بلکه معني دهمه لوست داده چه لشياء نيستي وفاني دي موجودحق سبحانه دي منصورچه دلناالحق ويل مرادئي دانه وو چه زه خداي يم لودخداي سره متحديم ځکه چه داکفروموجب دقتل دده بلکه معني دده دقول داوه چه زه يونيستي يم موجودحق جل جلاله دي غاية ماني الباب صوفيه کرام لشياء ظهورات دحق جل جلاله بولي اوهندلري ئي دلسماء وصفاتو ګڼي لکه سايه چه د شخصه پيداسي دانه ويل کيږي چه سايه دشخصه سره متحده ده بلکه شخص پرخپل صرافت واصالت دي سايه!! د څخه په وجودراغلي هوبعض لوقات صوفيه کرام دکمال محبت درويه سايه ددوي دنظرڅخه مختفي سي غير دشخصه بل شئ ددوي مشهودنه سي شايدووايي چه سايه عين شخص ده يعني سايه معدومه ده موجود هغه شخص دي وبس له دي تحقيقه دارلوخته چه لشياء په نيزدصوفيه کرامو ظهورات دحق دي نه عين حق لواشياء دحق څخه دي نه حق نومعني :قول دصوفيه کرامو که همه لوست ده چه دغه معني علماء دشريعت هم مني نونزاع په مابين دشريعت وطريقت نسته لومال د:ولړوقولينو يودي بيا هم علماء دشريعت دلفظه دوحدة الوجودتحاسي وپرهيزکوي چه توهم دحلول ؤ اتحادرانسي که دي کمال وضاحت په سوال وجواب په محل کي دنزاع پکاروي دمکتوبات شريف دجلددوم مکتوب ( ۴۴ ) ته مراجعه وکړه والسلام.

ابو الحفاظ : مولوي صالح محمد ارغستاني

| | |
|---|---|
| بیامي ځاي دسکونت غیب ثاني سو | دنزول ځاي مي عالم روحاني سو |
| بیاعالم مثال زمادهجرت کورسو | بیاسفرمي جسماني عالم پرلورسو |
| بیامجموع المراتب ته نازلیږم | نویه ولي په سروستر گونه ژړیږم |
| دمخفي خزانې زه رامنهاکیږم | دیوه دیواله بله وهل کیږم |
| نویه ولي افسوزنه کوم زماوروره | چه پرسرباندي مي بل دفراق اوره |
| خلص[(1)] ددومره جدایي چه یم خاونده | نویه ولي په لوي دردنه یم دردمنده |
| څوک چه نوش کړي پیمانه جام دوصاله | خودبه کاندي شکایت دبله حاله |
| که څه ګران لومغلق دی دابیانه | دحاشیو استفاده وکړه جانانه |
| [(2)] کز نیستان تامرا ببریده اند | از نفیرم مردوزن نالیده اند |
| نل کوي دجدایي دیرنه بیانه | چه خپل دردوژر اموړته کړي عیانه |
| په نصیب چه مي غربت دنیستان سو | په ژړ زما په ژړا تو له جهان سو |
| دیوي تنې چه زه راجلاکیږم | خامخا به په افسوز باندي ژړیږم |
| کم مي کورکم مي وطن کم مي یاران دي | یم تنها هغه چاچه پرماګران دي |
| دامي حال دامي احوال دی دازمانه | پرنغموبه مي نن خودژاړي جهانه |

(۱) دابیان ؤ دجدایبوچه تاپه حسب دمراتبو وپیژندي لوس دا هم ممکن ده چه ووایو چه مرادله جدایبو څخه هغه جدائي دفاني واصل ده چه مخکني زمانه کښي ترفنا ووصول تیره سوي نولوس پر هغه جدائي شکایت وفریاد کوي په ضمن کښي وماته هم درس راکوي پردي تقدیرني جمعیت په اعتبار دلوقاتو وایامو دي ګویاکي دهري ورځي ووقت جلاجدائي وه هم دغي معني ته موږ په دي شعر اشاره کړي څوک چه نوش کړي پیمانه جام الخ . ۱۲منه .

(۲) کزنیستان الخ ، تعلق ربط ددي بیت دمخکني بیت سره په دي خاطر دي چه لاحق بیان دسابق دي نو کلمه دکز مخفف دکه لزده مرکبه ده دکه چه دبیان دپاره دي یعني بیان دشکایت دجدایبو کوي لوازچه بمعني دمن دي په عربي کښي نیستان ځاي دشنه کیدودنلانو ، تاپه معني دحتي مراپه فتحه دمیم په معني دلناپه عربي لغت کښي باء لوله په بیریده لندکي زائده ده دتحسین دلفظ دپاره معنایي مراده یه په عربي لغت کښي قطعوني لومرادیه نفیر لوازدي په اصل کښي پوکل په نغاره کښي لوس نوپوه سه په دي باندي که چیري لفظ دني پرخپل ظاهرپاته سي نولفظ دنیستان هم پرظاهره معني محمول دي لوکه دلفظ دني انسان کامل لو فاني في الله قصدکړه سي نو دنیستانه مرادغیب اول دي خو دلپته نه ده چه معني ثاني دمعني حقیقي دنیستان مناسبت تامه لري په دي خاطرچه نیستان عبارت دی دهغه موضع څخه چه نل پکښي شین کیږي لوصالح د ظهوردنل وي همدارنګه مرتبه داحدیة لودغیب اول صالح دظهور داسماء وتنزلاتو ده بالفعل کثرة په کښي نسته لومردوزن هم دوه احتماله لري یو ظاهرداخوښکاره دی بل داچه مرادلمرده اسماء دباري تعالی دي چه فاعل وموثر په اطوارو کښي دوجوددي لودزنه څخه مراداعیان جمله ممکنات دي چه منفعل ومتاثردي داسماء وصفاتو څخه هم دارنګه نوراحتمالونه چه موږ وتلسي ته په اشعارو کښي اودهریوه وجه دشبه مي هم په اشاره درته ښودلي ده نوردي پرخداي سپارم والسلام ۱۲

ابو الحفاظ : مولوي صالح محمد ( ارغستاني )

الراقم : سید مولوي عبد الهادي آغا

(۱) ځکه چه تامغ کښي وپېژندل چه مولنا په ظاهر یوڅه وایي خو مطلب ئي بل وي. (۲) وجهه دشبه ئي ذاتاً ولفظاً وصورةً تامغ کښي وپېژندل درپیادئي کړه ۱۲ منه. (۳) یعني کله چه مرتبه دغیب اول په تعیناتو بدلیږي چه دامنجرو مهجوري ته کیږي خو دبه زمازړه پراوورباندي کړیږي. منه. (۴) ځکه چه نر واسمان په فاعلیة ومؤثریة کي سره شریک دي لکه ښځه ومځکه چي په منفعلیة ومتاثریة کښي سره شریک دي داوجه دا یرادي دیوه دبله ځخه ده همدارنگه لفظ داسمان په قانون کښي دلغت عربیه مذکردي اولفظ دارض مونث دي نو په دي مناسبت دیوه ځخه هغه مرادسو دبل ځخه دغه دتذکیروتانیث مسئله ئي تا په علم نحوه کښي زده کړي ده نوردي پرخداي پاک سپارم ۱۲ منه.

نل چه وکړي دا تقریر په خوش زبانه — اوس به ځیرسو مولنا کوي بسیانه[1]

دعاشقي الهي مثل[2] دنل دی — نیستانه ځخه مراددغیب اودی

عاشق نل غوندي په غریب کوي بیانه — مورته نقل وقصه کاندي دخپل ځانه

دحضرت عندیه چه زه بیلیږم — په افسوز افسوز به ولي نه ژړیږم

اتحاد په[3] امتیازچه زمابدلیږي — خودبه زمازړه پرسره اورباندي کړیږي

دافراق چه نن زماپرسر تیریږي — خودبه مځکه واسمان پرماژړیږي

مراددمرده سه[4] اسمان زن مځکه وروره — په لسان کښي دعرب دامضمون گوره

دعزیزپرذلت مځکه اسمان ژاړي — دامضمون رسول په خپل حدیث[5] کښي نغاړي

یامردعقل[6] زن به نفس بولوسرداره — دعربو به قانون سره خبرداره

خودبه عقل[7] ونفس دواړه په ژړاوي — چه دازماوجوددا صله سره جلاوي

مراددنفس مطمئنه نفس دي اي یاره — نوبه سوال[8] نه کړي پیدا استاخواته لاړه

یادمرده ځخه مرادمؤثرصفاته — چه صفات فعلیه نومي نیک ذاته

مراددزنه هغه واړه ممکنات دي — متاثرومنفعل هم مخلوقات دي

دتشبیه وجهه وتاته ښه ښکاره ده — ځکه موږودي ته کړي اشاره ده

سینه خواهم شرحه شرحه از فراق[9] — تا بگویم درد عشق اشتیاق

(۵) نقل صاحب المنهج ان النبي صلي الله علیه وسلم قال بكت السموات السبع ومن فيهن ومن عليهن والا رضون ومن عليهن لعزيز ذل وغني افتقر ۱۲ منه.

(۶) یعني وقت چه عقل فاعل اومؤثر وولکه مرداونفس متاثراومنفعل وولکه زن هم دارنگه عقل په لغت عربیه کښي مذکروولکه رجل اونفس په لغت عربیه کښي مؤنث وو لکه امراة نو په دي مناسبت دیوه ځخه هغه مرادسو دبله ځخه دغه ۱۲ منه.

(۷) یعني کوم وقت چه عنایت ربانیه دیوچاسره مساعده وکړي اومقام ته دوصول ئي ورسوي نو دغه شخص تذکردخپل مبدا ومعاد کوي اوخپل ځان په دلږ دنیا کښي غریب اومسافر بولي نو دي پېژني چه زه فارق دنیستاني حقیقي ځخه یم چه هغه نرحضرت عندیه دی نو عقل ونفس مطمئنه ئي خوددواړه په ژړاوي پردي چه دخپله اصله جلاسوي دي ۱۲ منه.

(۸) حاصل دسوال دادی چه نفس خو آمر بالسوء دی نو ځنگه به دغه نفس دقرب تقاضا کوي اوپربعد به ولي ژاړي حاصل دجواب دادی کله چه انسان کامل وگرزي اوزړه ئي دالله دعشق مرکزجوړسي اوفاني في الله اومهبط دتجلیاتو الهیه ووسي نوئي نفس مطمئن اومؤمن حقیقي وگرزي بیانو آمر بالسوء نه وي بلکه طیب بلل کیږي ښه مثال ئي تفسیر مظهري ویلي وایي لکه سپی چه په مالگه کښي فاني سي نو طیب وگرزي ۱۲ منه.

(۹) تعلق وارتباط ددي بیت دسابق سره په دي خاطردی چه سابق بیان دخپل ځان په نزول کي دمراتبوو مثلا نل ومولنا حپلي جدایي په مختصر دول بیان کړي موږئي تفصیل په مکمل طرزدرته وکړي اوس بیان دخپل ځان په ارشادکي کوي مثلا نل وخپلو سامعانو ته ارشادکوي چه سینه خواهم الخ ، اومولنا وخپلو مسترشدانو ته نو معني دبیت داده چه نل ومولنا وایي زه طلب دهغه سیني کوم چه مشروحه اومتقطعه په فراق وي څوچه زه وهغي سیني ته خپل درد واشتیاق ووایم ځکه چه جنسیت علة دانضمام دي هغه کسان چه دوي مشغول په لذاتودنفس وي اودغفلت وناپوهي اوبي فکري په کنده کي لویدلي وي اوسوچ وعبرت اودوربیني نه وي ورسره هغه زما په ارشادنه متاثره کیږي نه زما په ژړا ژاړي بقیه برآینده صفحه

بقيه صفحه نه زماژړا پوهيږي نه ودوي ته اشتياق دوصول پيدا کيږي نه ئي خپلي جدايي ته فکروي نوودغو کسانو ته اظهار داشتياق پکارنه دی داهم احتمال لري چه دمولنادي دسيني ځخه سينه دانسان کامل اودفاني واصل مرادسي چه خپله دی هم ددغه جملي دي مرادسي نوبه معني داسي چه خپله سينه غواړم پاره پاره دفراقه په داسي ډول چه رنج والم دطلب هروقت زماپه سينه کښي وي ځو چه مسترشدانو وطالبانو ته شرحه اوبيان دخپل درد واشتياق په هغه ډول وکړم چه موثرواقع سي . ع. آه **صاحب دردرا باشداثر**: نوبه خودداشکال واردسي چه انسان کامل خودائماً په وصال کښي دی فراق خودالته گنجائش نلري نودی ځنگه غوښتنه دټوټي ټوټي دسيني دفراقه کوي .خوجواب به داوي چه انسان کامل چه هرځه سيرالي الله ومن الله کري وي اوواصل گرزيدلي وي لکن سيرفي الله خو حداونهايت نلري ځکه چه تجليات دحق غيرمتناهي دي نوهره تجله چه مشاهده کوي طلب دبلي کوي نودائماً په فراق کښي دي نولهٰذا رسول مقبول (صلي الله عليه وسلم) په طلب دزيادت دتجلي دعلم امرکړه سوالله ورته وفرمائل . (قل ربي زدني علماً) هم دارنگه اسماء دحق سبحانه حدونهايت نلري په هراسم کښي چه انسان کامل دحق مشاهده وکړه طلب دمعرفت په اسم آخر کوي نوانسان کامل هيشه په تشنگي وتنده کښي دی په درياب کښي دمعرفت کښته ځي خوتشنگي وتنده ئي نه زائليږي فالحاصل چه پراول تقريرمراددسيني ځخه سينه دمخاطب ده او پردوهم تقريرمراددسيني ځخه سينه دمتکلم ده: ردي پر خداي سپارم والسلام ۱۲

نل وهغه سامعانو ته ويل کړي    چه دزړه په درددرمند عشق ته کتل کړي
وايي هرچاته خپل سِرويلاي نه سم    پربي دردده زړه اثرکولاي نه سم
کي سينه پاره پاره وي لکه زما    وهغو ته نوپيغام دي دردزما
وهغه ته به دعشق دفترورياد کړم    هم به درس دجدايي ښه ورپياد کړم
په نغمونغمو به سِرده ته ښکاره کړم    خپل زخمي کوگل به ده ته ننداره کړم
ځکه هرسړي په سِرزمانه خبريږي    په ژړاؤ په نغمومي نه پوهيږي
دظاهره حقيقت ته اوس نظرکړه    چه قائل مومولانادی ځان خبرکړه
مولاناپه جوش وخروش داسي فرمائي    برملا وماوتاته داسي وايي
دجانبه دکامل انسان رغيږي    دجملي سي مولاناهم شميرل کيږي
متاثرزړه که زماحضورته راسي    حقيقي عشق به بيان کړم ورته داسي
که پيداکړم په فراق سوي ځگره    وهغه ته بيان کړم خپل خبره
ولي هرجنس دخپل جنس سره پوهيږي    غوړي کله دابوسره گډيږئ
دکوترو په سيل نه گرزي بازانه    نه دزرکو په ټولي کي وي کارگانه
هغه زړه چه منفعل نه وي غافل وي    وهغه ته سِرويل عبث باطل وي
چه چمن نه وي بلبل کله چوڼيږي    پروچ ښاخ باندي بوراکله کريږي
چه وي تږي ازلي زماطلب دارد ی    بيله دريغه داسرارو خريدارد ی

ابو الحفاظ : مولوي صالح محمد ( الارغستاني )

الراقم : سيد مولوي عبد الهادي الهاشمي

| | |
|---|---|
| هر څه ستونځي چه ګالي پروائي نسته | دمعشوق نبائست پالي پروائي نسته |
| چه دشمعي په نبائست پتن پوهيږي | بي پرواوداسره اورته ورګډيږي |
| بـ ورانلري هراس دګل دخاره | پتن کله سنجوي دصحت لاره |
| کي ځګرپاره پاره سي باک ئي نسته | کي بدن ايره ايره سي باک ئي نسته |
| همدارنګه ازلي عاشق اي ياره | په درشل کي داسرار ووهي لاره |
| په دي دومره لوي درياب کښي لوبازي کړي | په دي لوي ګردؤ چرخاب کي جانبازي کړي |
| ترهرڅه دي دخپل ځان په غرقاب خوښ وي | ترهرڅه په هولناکه چرخاب خوښ وي |

| | |
|---|---|
| هر کسی کو دور ماند از اصل خویش (۲) | باز جوید روزگار وصل خویش |

| | |
|---|---|
| هغه څوک چه ده وطنه سه جلاوي | دوهم ځل هم دوطن په تمناوي |
| په کشمير به تروطن کله سي تيره | دخاړپوستووطن کله به کي هيره |
| که هرڅونبائسته نبار دپاکستان وي | ارغستان وده ته هروقت قدردان وي |
| تل مدام بل مسافرته هواداروي | په هغه باندي پوهنه کي دزړه پرهاروي |
| ځکه دواړه ديوي زالي بازان دي | په يوه درياب کښي دواړه اوبازان دي |
| برملا هريودزړه سربل ته وايي | دوطن حب يودبله سره ستايي |
| جدايي کښي خپل وطن ورياديږي | لامحاله وخپل مثل ته ړنځ يږي |
| په يوه درد چه دردمندوه انسانان وي | خامخانويودبله اشنايان وي |
| په محبت باندي کوي دوي مجلسونه | يودبله عرضه وي ليدلي خوبونه |
| تل مدام ئي وي په ژبه داګفتنه | ياوطنه ياوطنه ياوطنه |

(۱) غرض دمولنا قدس سره په دي بيت کښي تمثيل دسلبق دي يعني لکه مسافرچه دوطنه څخه جلاسي دی طلب درجوع وخپل وطن ته لري اوونوروهمجنسومسافروته خپل درد داشتياق ووطن ته بيانه وي لودخپل زړه خواله ورسره کوي ځکه چه دواړه ديوي زالي بازان دي همدارنګه نل دخپله وطنه نيستانه څخه جلاسوي لوارمان درجوع وخپل وطن نيستان ته ورسره دی لوغواړي چه خپل درد داشتياق ونوروهمجنسه دردمندوته ښکاره کړي همدارنګه کامل انسان چه دحضرت عنديه څخه جلاسوي لوارمان دوصال ورسره دی لو خپلوهمجنسوته درد داشتياق بيانه وي نو په دي تقريردابيت بيان دشرحه کولود درد داشتياق وي نوني ربط ؤ تعلق دسلبق سره مضبوط سو همدارنګه نل وانسان کامل ومسافرشريکان دي په دي کښي چه هريومتاثرومنفعل مخاطب غواړي چه دنل نغمه لودانسان کامل ارشادلودمسافر خواله پده کښي اثر وکړي ځکه چه بي درد ، لوغافل زړه ته نغمه وارشادوخواله پکارنه دي بلکه عبث وباطل نوميږي وروسته لودلوايوچه موږ بنه ځير سوددي بيت مناسبت وارتباط به دسلبق سره په بله وجهه هم پيدا کړو هغه داچه سلبق بيت بيان دحال دارشاد ووړيدي بيت کښي بيان دسيرالي الله دی‌نو تناسب ني مخفي نه دي ورته متوجه سه راغلو وبيان ته دالفاظو دبيت نو وايوچه کلمه دهر په فارسي کي دپاره دعموم دافرادو ده کسي کنايه ده دشخصه څخه ياء ني دوحدت دپاره ده کلمه دکو مرکبه ده که څخه چه بيان دپاره دی لوده لوڅخه چه ضميرراجع وکسي ته دی معني دبيت هرڅوک چه دوطنه څخه ليري طلب دزماني دوصال کوي چه اتصال پيدا کړي ۱۲

ابو الحفاظ : مولوي صالح محمد ( الارغستاني )

| | |
|---|---|
| دامثال دي مولّناموږته بــيان کې | سِردشرحي ئي وموږته ښه روښان کې |
| په تمثيل کښې ممثّل ته مصورکړه | نوپه ښکلي حقيقـــت زړه منورکړه |
| زموږوطن هغه وطن دی چه مي وو | مسافردبــــــل وطن اوس يوچه يو |
| من به هر جمعيتي نالان شدم (١) | جفت بدحالان وخوشحالان شدم |
| نل دخپل خوي وخاصيت کوي بـــيانه | حقيقـــت بـــيانه وي واضح روښانه |
| نل واي زماعادت جورسوي پراخلاصه | فرق مي نه دی کړي هيڅ دعام وخاصه |
| هرمجلس ته دبلبــل په شـان چونيږم | ښه وبـــــــد ته په يوه نغمه ژړيږم |
| نل بيشکه دی صادق په خپل بيان کښي | فرق ئي نه دی کړي هيڅ په اين وآن کښي |
| په ظاهـره کـښي دنـل دغــه وينـاده | حقيقـــت کښي مقـــوله دمولّناده |
| مولّناکوي ارشـــادبه خوش زبـــانه | هم وبـــدته هم وښه ته کړي بـــيانه |
| وايـي هرمجلس تـه دارنـګه ږغيـږم | ومظهرتـــه دجـــلال جمـــال ژړيـــږم |
| چه داوس وطن ايله کې وطن بـــل دی | په قفس کښي بندي سوي دي بلبـل دی |
| پرســـريورته پيمانه جام دوصال کړه | انفصال دي موږربـــــدل په اتصال کړه |
| داغياروســـره کړه پري په ذوالفقـــاره | په وطن کښي خپل بـــه ونسـي قـــراره |
| په لمريڅ کړه واړه ســـتوري دجهانه | اتصال بــــه دي ميلمه ســـي هغه آنه |
| دحـــجاب پردي موته کړي الله څيري | موانع داتصال کړي راســـــــه ليري |
| آمين وه واياســـت زمانبوشـــاګردانو | په اغياروکښي مصروف يوښوخوانانو |

(١) تعلق وربط ددي بيت دسابق سره په دي خاطردي چه سابق بيت تمهيدو توطيه دلاحق ته پرته دی په دي معني وقت چه هر څوک داصله ووطنه خپل جلاسوي وي حتمي طلب دوصل کوي نو بنا پردغه نوزه وهر مجلس ومجتمع ته نالان سوم چه طلب دوصل وکړي اووخپل وطن ته دحضرت عنديه خان ورسوي . معني دبيت داده چه زه وهر مجلس اومجتمع ته زار کونکي سوم اوشمعه دعشق مي ورته بله کړه اوبلبـل واره په ښه اوازورته وچونيدم اوهيڅ فرق مي دبد چه مظهر دجلال دخـداي دي اودښه چه مظهر دجمـال دخـداي دي نـه دی کـړي اودهـر يوه دصحبت مفتخـر سوي يم عواموخواصو ته دعوت دعشق ووصل ورکړي بيشکه مشائخ کُمل زادهم الله سعيهم پرعصاتو مسترشـد ينو بـاندي نه کوي بـلکه اخبار دنيستان حقيقي ورته کوي اودعوت ئي ودغه لورته کوي اوارشاد پرقدر درتبـي ودرجي ورتـه کـوي څوچه دغـه مسترشـدين په ســـير دانفاسو مظهر ووددوي ترقي واعلي مرتبي ته کړي راغلو ودي نه چه نه شرحه داسراروو هرچانه چه دمخکني بيت څخه معلومه سوه هغه داچه سينه خواهم شرحه شرحه الخ . منافي نه دی دعوت عامه سره چه هغه ددي بيت مضمون دي لکه داچه پرسليم فکر مخفي نه ده نوتوهم دتناقض دفعه سو بيا راغلو وبيان ته دنکتي دتقديم دبد پرښه چه مولّنااختيار کړي دی هغه نکته داده چه بدان محل داظهار دحزن دي او دوي ډيردي ترنيکانو نو دوي په ارشاد باندي احري والبق دي نو تقديم په دپاره داهميت دشان ددوي دی ياني نکته داده چه تکلم سره دبدفعالو چه مقربين وي په خپل بدو اولي دي تر تکلم دښو فعالو چه متنفرين وي الله فرمايي . ( فمنهم ظالم لنفسه ومنهم مقتصد ) ابن عطاء (رحمة الله عليه) وايي چه الله ظالم مقدم کړي په دي خاطرچه دی نااميده نسي دفضله څخه دخپل خداي ولي دده لره بـل څه نسته چه تکيه ورته وکړي الا ربه لو مقتصدئي موخر په دي خاطرچه دي ونيږني چه منة الله پرده دی ١٢

ابو الحفاظ : مولوي صالح محمد ( الارغستاني )

(۱) تعلق وربط ددي بيت دسابق سره په دي خاطردی چه په سابق بيت کښي بيان دحال دنل نظروسامعانو ته ووهمدارنگه بيان دحال دمرشداعني مولنانظرومسترشدينو ته وواوپدي بيت کښي بيان دحال دسامعينونظرونل ته دی همدارنگه بيان دحال دمسترشدينونظرومرشداعني مولناته دی داخبره بايدزده کړوچه پدي بيت کښي دوي نسخي راغليدي يوه نجست په نفي بله بجست په ايجاب حاصل دمعني پراوله نسخه دادي چه هرسړي دمسترشدانو اوطالبانوڅخه چه په حسن ظن زما سره دوي يارومصاحب گرزيدلي لکن هغه اسرارچه زماپه سينه وزړه کښي دي هغه ئي نه پوښتلي نه پيدا کري چه دجملي څخه ئي زماقلبي ژړاده وروسته په دي ځاي کښي بايدووايوچه بعض اصحابو پوښتنه دمولناڅخه داسرارو قلبيه ومنافي دنفي سره نه ده ځکه چه مقصوددنفي څخه رفعه دايجاب کلي ده نه سلب کلي او حاصل دمعني پردوهمه نسخه دادی چه داثابته ده چه هرڅوک چه دچا همنشين وگرزي نو هغه څوک خپل ځان دهغه چايار او ملگري متصور کوي وقت چه يارسره يارخوديار ه استفسار کوي چه زه خوستايارسوم نو خپل سرراته ووايه چه په طلب کښي ددغه مطلوب ستاسره ياري وملگري وکړم نو مولناپه جواب کښي وايي سِر من ازناله الخ ۱۲

| | |
|---|---|
| **هر کسی از ظن خود شد یار من** (۱) | **از درون من نجست اسرار من** |
| نل واي زما حالت دی جو رپيداسي شانه | ونغمو ته مي غوږ نسي هر انسانه |
| هرسړي مي په ښه ظن دی طلبداره | خودزړه په حال مي نه دی خبرداره |
| پرظاهره نغموزما بانـدي ځنګيږي | خوعلت دځګيروي نه ورمعلوميږي |
| پرسان نه کوي چه ځان کړي خبرداره | چه وده ته زه بيان کړم خپل اسراره |
| جدايي ودلسوزي ورته ښکاره کړم | تولـه ستړي دده مخ ته نندار کړم |
| داوينـاده چه نل وکړه ماوتاته | اوس به نيسو خپل غوږ ومولناته |
| مولنااوس ږغوي دعشق ربابه | ماوتاته خپروي داسي کتابه |
| ډيرياران په حسن ظن زمایاران دي | خودسوزه دځګرمي غافلان دي |
| داسرارومي دزړه تفوص نکړي | داصلي حقيقت هيڅ تجسس نکړي |
| چه ودوي ته کړم بيان دعشق کتابه | دوصال په نغموسور کړم خپل ربابه |
| دقلبي ژړاپه اښکويه اوبه کړم | په زانګو کښي دوحدت ئي هم بيده کړم |
| دالست په جام چه مست هغه لائق دی | دوحدت چه وي طالب هغه عاشق دی |
| هغه څوک چه ددي جامه سه اوبيږي | اين وآن به ئي پربل طرف پانيږي |
| **سر من از نالهٔ من دور نیست** (۲) | **لیک چشم وگوش را آن نور نیست** |
| نل واي مه اوسه غافله فکروکړه | زمـاژړي رنګ وژړاته نظروکړه |
| دادسوزافسوزنغمي چه ويل کيږي | ترجمه دجدايي ځني فهميږي |
| چيري زه چيري مي پاته نيستان دی | نوله دي وجهي ځيګيروي مي پرجهان دی |

(۲) ربط وتعلق ددي بيت دسابق بيت سره په دي خاطردي چه پدي بيت کښي بيان دهغه سِردي چه په سابق بيت کښي مطالبه نه وه سوي يايه مطالبه سوي وه پراختلاف دهغه نسخوچه تاوړپيژندي معني دبيت داده چه مولناقدس سره چه د جملي دانسان کامل دي وايي چه زمادزړه سِرزمادژړاڅخه ليري نه دي هغه څوک چه زماژړااوري دسربه هم غافل پاته نسي لکن سترگي وغوږجسدي لره قوة دنظرواستماع نسته سترگي سرنه ويني غوږژړانه اوري نولازم دپاره دفهم ددغه اسرارو هغه نوراني قلب اوتصفيه زړه دی چه داغيارو څخه منفک وي اودرياضت وتصفيي خاوندوي بيشکه هغه نوزما دزړه سرويني اوژړاي قلبي مي اوري ۱۲ ابوالحفاظ : مولوي صالح محمد ارغستاني .

| | |
|---|---|
| لکن کوڼ غوږ په دي سِر کله پوهیږي (۱) | دغفلت په خوب بـــیده کله ویښیږي |
| اوس بـه ځیرسـو مولّنا ته چه څه وایي | ماوتاته په دي بـــاب کښي څه فرمایي |
| واي پوښتنه که دسرستازړه ته راسي | نوبـه وایوودي سـوال ته جواب داسـي |
| دزړه سرزمادقلبـــــي ژړامعلمیږي | خوکوڼ غوږ وړندي سترگي نه پوهیږي (۱) |
| جسماني حواس وسرته کتل نه کړي | دسرلیـدل ودزړااوریـدل نـه کـړي |
| تصفیه زړه په قلبـــــي ژړاپوهیږي | نوزمـاپټ سِروهغـه تـه معلومیـږي |
| مراددسِره سـه دعشـق توده لمبـه ده | دعاشـــق په زړه کښي تل داول وله ده |
| دوصـــال په تمنائـــي پوخ ځگروي | دفراق لمبوســـوه ځلي ئي بشــــروي |
| داوطن دبـــل وطن خپل وطن غواړي | په سروستر گوهمیشـه معشـوق نه ژاړي |
| هغه زړه چه دالست په میومست وي | غوږ وسترگي دمعشوق سره پیوست وي |
| نـه څه اوري نـه څه وینـي پردنیــا | بـــي معشـوقـه دهر څه وي بـــي فروا |

| | |
|---|---|
| تن ز جان و جان ز تن مستور نیست (۲) | لیک کس را دید جان دستور نیست |

| | |
|---|---|
| مولّنانــواوس مثـــال وایـــي وماتــه | ممثل بـــــه کړي روښانه ماوتاته |
| روح دتنه تن دروحـه مســــتورنه دی | خودروح لیدل په سترگو دستورنه دی |
| ځنگه روح چه په بدن کښي نن چلیږي | همدارنگه سرژړازمابــــــلل کیږي |
| دغه زماسِردبــــــــاطنه جلانه دی | لکه روح چه دبـــــــدنه جلانه دی |
| لکه روح چه دی اصیل دتن په گل کي | دغه رنگه ســــرژړا زمایه کوگل کي |
| طوطي واره دقفسـه خلاصون غواړي | دوصـــال په ارمـان تـل ترتلـه ژاړي |

(۱) ولي کوڼ غوږ قلبي ژړانه اوري اوړندي سترگي سرنه یني نوپه دي تقریرهغه سوال چه چاویلي دي چه په دریافت کښي دژړاچه دقبیلي مسموعاتوده سترگولره دخله په کښي نسته پس ئي په نفي فائده هم نسته دفعه سوخوبیاهم بنه فکرپکښي وه که اوکه ومنوچه ژړادسِریوشئ دي بیانوداجواب ممکن چه اوریدونکي وجانب ته دویونکي گوري چه دمسموع بنه ادارک وکړي نوپدي خاطرسترگولره هم په ادراک کښي دسرناله دخله پیداسوه یادامعني چه هریودحواسو په نیزدعارفانوکاردبـل کوي لکه مولّناقـدس سره چه په څلورم دفتر کښي وایي پس مداني چونکه رستي ازبدن : گوش بیني چشم مي ماندشـدن : نوحاصل ددوهم نیم بیتي داسو لکن ســـترگووغوږ جسماني بیله ریاضت وتصفیـه ومعرفـت دانورنسته چه قلبـي ژړااوري مگرسترگي وغوږونه ونورحـواس دعرفاؤ هریودبـل کار کوي نوذکردچشم لغوه اوپه نفي کښي نه فائده دماپین څخه ولاړه ۱۲

(۲) ددي بـیت ربــط وتعلق دسابـق بـیت ســره په دي خاطردي چه اوسني بیت تمثیل دژړادي په سابق بـیت کښي یعني چنانچه روح په تـن کـښي ملگري دتن دی جدایي نه خني لـري مگرپه سـترگونه لیدل کیږي همدارنـگه نالـره وژړا قلبــــي زماپـه زماپه باطن کي ده په حواسو ظاهره وباندي نه مدرک کیږي داخبـره بـه زده کړوچه انسان مرکب دي دبدنه څخه چه عین ظاهره لیدلاي وادراک ئي کولاي اودباطنه څخه چه عین ظاهره ئي لیدل نه سي کولاي ددغه باطن څخه په روح تعبیرکړه کیږي داغه محل دسعادت وشقاوت دی اخباردحقیقته دروح سخت دی پر ژبه اولیاؤ لدغه څخه په ماامکن التعبیروالتحریرکړي خوحقیقت ئي عسیردي لدي سببه رسول الله (صلي الله علیه وسلم) دانتظارووحي ته وکړي کوم وقت چه یهودسوال ځني وکړي ۱۲

ابو الحفاظ : مولوي صالح محمد ارغستاني .

| | |
|---|---|
| په ظاهر حواسو يو نه محسوس کيږي | ني ليدل نه ئي کتل په سترګو کيږي |
| لکه روح چه په دليل مستدل کيږي (۱) | په قابـــل زړه زماړاپيژندل کيږي |
| آتش است اين بانگ نائى نيست باد | هر که اين آتش ندارد نيست باد |
| دنائي دنل اوازډک دی دشـــوره | هوانه ده بـــل شـــعله ده دســـره اوره |
| په ظاهـره کـبني هـواده زمـاوروره | حقيقت کبني بـي شـعله بـولو:اوره |
| لکه اورچه تاثير کاندي په لرګوکي | دنائـــي پوکـــل اثرلـــري په زړوکـــي |
| نل په زيروبـــــم دوير نغمي وهي | دداپولـــه مجلـــس زړونـــه لـــرزه وي |
| هغه زړه چه وي خالي دوجدوشـــوره | دنائـــي په نغمونـــه راځي په بنوره |
| نوودغه زړه ته موړداســـي دعاکړو | سمدســـتي ئي دبـــدلون هم تمناکړو |
| مولّنانواوس وبـــل طرف ته درومي | په دي بيت کبني موږته داحقيقت مومي |
| دنائي سه مرادعاشق دپاک مولادی | هـه واصل پير کامل فانـي فـي الله دی (۲) |
| داوازه څخه اوازدحـــــق مراديږي | دغه اوردی دعاشـــق دخولي جګيږي |
| لکه اورچه لرګي ســوځي په تلواره | دغه رنګه دااوازســـــــوځي اغياره |

(۱) ربط وتعلق ددي بيت دسابق سره په دي وجهه دی چه په سابق بيت کبني مثال دژړاقلبي بيان کړي په دي بيت کبني بيان دائرددغي ژړاکوي اوس دابايدزده کړوچه مراددمولّناقدس سره دنائي څخه انسان کامل اومرشدواصل دی اومراد دآوازه څخه اوازدحق دی يعني دمسترشد ينووعشق الهي ته بلل اووه وصال ته دمعشوقي حقيقي رسول پدي کي شک نسته چه دااوازددغه مرشدلکه اورداسي دی په تاثير کبني په دي خاطرچه لکه اورچه هستي نيستي کوي همدارنګه آواز دمرشـدکامل هستي دموهومي دنيادمسترشـددزړه څخه نيستي کوي اوتوله اغيارني دزړه څخه ورباسي يکتنهائي دمعشوقـي سـره زړه پيونده وي همدارنګه شک نسته چه دغه اواز دمرشـدکامل بـادوهوا په حقيقـت کبني نه دي چه سـردي وجمود راولي که څه په ظاهره بـادوهوادی بـلکه په حقيقـت کبني اوردي اغيارسـوه ځي وصال راولي مصراع: ثانـي جمله دعائيه دمحجوب په حق کبني يعني هغه څوک چه دااوردعشـق الهي په زړه کبني نلري اودمرشـددي کامله ئي الهام نه وي اخيسـتي دادي نوفاني وي دوجود بشـري څخه په الله جـل جلالـه کـبني چه عاشـق وګرزي بـعضو علماؤ دامصراع پربنرا حـــمل کړي خوزماپه نظرداضعيفه ده دشانه سره دداسي سخي مرشدلکه مولّنائي مناسب نه بولم والله اعلم .خلاصه دمولّناقدس سره په بيت کبني دادي چه دی وسالک ته بيان کوي چه اي هغه څوکه چه ته باردالطبيعة يي اومهجورپه وادي دفرقت کبني پاته يي اودعشق الهي سره جفت نه ئي اووجودبشري دي په اوردمحبت سوځلي نه دی محووهلاک په صرصردهجران سي نولاتقه داده چه ته مجهودصرف کړي لو ازاله دوجودبشري وکړي نوبه اوريدونکي دنغمودبلابلودولايت سي نوستاپرزړه به فيضان دانوارواٰلهيه ووسي اوناموس دانانيت به دي ختم سي ۱۲

(۲) قوله فاني في الله الخ ، فاني في الله ډيرطويل وعريض بحث لري خومراددلته داهل تصوف پربنادادی چه بنده سالک دماوراء الله څخه حتي دخپل ذات څخه هم غائب اودذات حق سره حاضرمطلب داچه توجه دسالک وذات دباري تعالي دومره جوره ولاړه سي چه دغيرطرفته ئي بالکل توجه اوالتفات قدري هم نه وي بلکه دالله په عشق اومحبت کبني محوه لو مستغرق وي ماوراء توله ځني غائب وي دابعيده نه ده چه ديوه معلوم سره دنورومعلوماتو غائب والي راسي بلکه داډير کيدلاي سي مطلب دانه دی چه ذات عنصري دسالک په ذات کبني دباري تعالي فناه سي العياذداخوصريح کفروالحاددی ددي څخه خودالله تغير تبديل حدوث حلول اتحادپه زرهاونوري بدي لازميږي والسلام ۱۲

ابو الحفاظ : مولوي صالح محمد ( الارغستاني )

| | |
|---|---|
| دفانـي فـي الله اوازدى لكـه اوره | ددنيالـذات فانـي گرزه وي وروره |
| ولي ځان ودنياتهول ځني محجوب وي | توجه په وطرف ته دمحبـوب وي |
| زړه ئي سوي دفراق په سرولمبـوكي | تل پرديس وي لكه نل وي په نغموكي |
| څوک چه نلري دااوربه خپل سينه كي | داغياروبـه نوكله ځان گوښه كي |
| دغه حـال دي خداي له ده څخه ليري | دحـجاب پرده دى ژركي الله څيري |
| مجازي زندگاني دي ټول كبـاب وي | دعاشق سره دي مرش دعشق رباب وي |
| پردعادمولنابـه آمين وايو | دغه رحم وشفقت بي موږ ډيرستايو |
| احتمال دي چه دانيم بيت دي نبراسي | وخالي بـه دعشـق لويه سزاسـي |
| كه څه هم داپه يوقـول عرضيابي دى | لكن شـان دمولنائني آبـي دى |
| مولناخويورحيم شفيق مهربـان دى | احـتمال دنبراليري هرزمان دى |
| (۱) آتش عشق است كاندرنى فتاد | جوشش عشق است كاندرمى فتاد |
| چه نغمه دعشـق دنل دخولي جگيږي | په دي خروش باندي شراب هم په جوش كيږي |
| مراد داوره څخه عشـق دسـالكانو | داقـانون دى مسـلم دشـاعرانو |
| دمعشوقـه تعبـيركاندي په شرابـه | دعاشـق څخه په نل ووبه ربابـه |
| دبـيان په اصطلاح اسـتعاره ده | دتشبـيه وجهه په ټولوكي ښكاره ده |
| چه مووارېدى اوس دامجمل بـيانه | موږوتاسـي بـي تفصيل كړوپديشـانه |
| خومره اورچه دعاشق په زړه كنبي بل وي | ته هغه اندازمعشـوق ورسـره مل وي |

(۱) ربط وتعلق ددي بيت دسابق سره په دي خاطردى چه په سابق كنبي اثردژراقلبي بيان سوپه دي بيت كنبي علت وسبب بيانيږي راغلومعني ته دبيت عشق عبارت دفرط محبت څخه اومراد. دني . څخه انسـان كامل ومرشـدواصل دي اومراد دمى . څخه معشوق دي لكه عرف دشعراؤ چه پردغه باندي راغلي دى معشوق دانسان كامل اومرشدواصل خومعلوم دى چه هغه حق سبحانه وتعالي دي نوحاصل دمعني داسوچه عشق يواوردي چه په زړه كنبي دانسـان كامل لويلدلي لوپرده مستولي سوي پداسي ډول چه غيردمحبوبه دده په زړه كنبي بل هيڅ شئ ځاي نلري همدارنگه جوش دعشق پرمعشوق اثر لـري په دي معنـي لكـه عاشـق چه خپل معشـوق ته دفرط محبـت دروبه كامله توجه لـري همدارنـگه معشـوق وخپل عاشـق ته دكمـال رضانـنگه پوره توجه كوي حـافظ شـيرازي فرمائي پرتومعشـوق اگرافتاد برعاشـق چه شـدم لبلومحتاج بوديم اوبمامشتاق بود ابـن عربـي (رحمة الله عليه) په فتوحـات كنبي ليكلي چه عشـق فرط محبـت دى چه الله څخه په قـرآن شـريف كي كليه په شـدة الحـبسـوي ده الله فرمائي (والذين آمنوا اشد حبـا لله) همدارنـگه الله فرمائـي (شغفها حبـا) يعني حـب دزليخاويوسـف (عليه السـلام) زړه لكه شـغاف دلـي ز شـغاف هغه پرده ده چه پرزړه محـتوي وي نو عشـق راگرزيده او اشـتمال دحـب دي پرمحبـت باندي په دلـي الله چه په ټولو اجزاؤ ئي گډسـوي وي او اشـتمال ئي پرده باندي كړي لكه اشـتمال دشـغاف پرقـلب دالتهي كلام دابـن عربي په قلب وپښتو ته پاي ته ورسيدى داسي حكايت راغلي چه كوم وقت چه به زليخاړگ خلاص كړي اووينه به ئي پرمځكه ومونښته نوبي يوسف عليه السلام نوشته كاوه هم دارنگه حكايت راغلي چه كوم وقت چه دمنصور وينه توسوه پرمځكه ئي الله الله نوشته كړه خلاصه دبيت داچه هغه عاشق الٰهي چه اوردعشق ئي په سينه كنبي بل وي لوزړه ئي دمعشـوق مركزوي اودريابه دمعرفت چنبل كوي خامخابه معشـوق دده سره وي لوبه جام دوصال بـه برخوردلروي اللهم اجعلنامنهم آمين يارب العلمين ۱۲

ابو الحفاظ : مولوي صالح محمد ( الارغستاني )

| | |
|---|---|
| داســــوراورچه دعاشـــــق پرزړه بـــليږي | ددي سوزاثرمعشــــوق ته هم رســـيږي |
| چه نظرکړي دعاشـــــق وســــوز وگدازته | معشـــوق بـــالکل لبـــيک وايي ودي رازته |
| په يوه لويشــت چه عاشـق معشـوق ته څکيږي | په يوه گزيه معشـــــــوق ورنژديکيږي |
| دعشـــــق اورنويوځيگرته چه داخل ســــي | خامخابـــــه دمعشـــوق ســـره واصل ســـي |
| بـــي معشوقـــه بـــه دبـــل طلبـــدارنه وي | داغياروبـــــــه بـــــــالکل خريدارنه وي |
| کـه ئي مـال کـه ئي مثـال کـه ئي ځوانـي وي | همه واړه بـــي معشـــوق ته قربـــاني وي |
| تن بـــدن اوتوله وينه بـــي معشـــوق ســـي | تش کالبوت بي دمعشوق بخچه صندوق سي |
| زليخاچه دعشـــــق لوړمنبــــــرته خيژي | خودپه وينه ئي يوســـــف نوشـــته کيږي |
| دمنصورچه ددي عشـــق پرځان منل ســـوه | خودپه وينه ئي الله الله ليکل ســـــوه |
| که موږ وگوروو سِرته دقـــــــــــرآنه | دامضمون بـــــــه ځني درک کړوده آنه |
| چه کاته کړودشـــــغف اشـــــدوخواته | دغه سربـــــه ســــي ښکاره وماوتاته |
| په دي عشق کي چه هرڅوک صادق مصدوق سي | زړه وخوله سترگي غوږونه بي معشوق سي |
| نی[(۱)] حريف هرکه ازياري بريد | پرده هايش پرده هائی مادريد |
| نل ملگري مصاحـــــب دهغه چاوي | چه ده ياره جلاســوي يکتنهاوي |
| ولي دواړه په يوه غم شــــريکان دي | لامحـــاله يووبـــل اند يوالان دي |
| مگرنل چه په نغموســوركي شهبـــازه | دملگري ئي ښکاره کړي سِرو رازه |
| دفراق غم ئي په جوش راغلی هرگوره | دپخواصبرپياله ســوه نســکوره |
| هغه پټ ســرئي وهرچاته ښکاره ســو | دزړه ســرئي وعالم ته نند اره ســو |

(۱) ربط وتعلق ددي بيت دسابق بيت سره په دي خاطردی چه په دي بيت کښي بيان داثربعد العلة دی . راغلو معني ته دبيت نووايو که چيري مراددنله څخه ظاهرسي نومعني داده چه نل ملگري ؤ مصاحب دهغه چادی چه دياره جداوي په دي خاطرچه ددوي په مابين کښي مناسبت په جدائي کښي دی نويودبل سره ملگري په جداي سوبناپردي نومراددحريف څخه ملگري نی اوده اولوپردوڅخه په مصراع ثاني کښي پردي دســـروزاونل دي يعني نغمي واوازونه دنل اوضميرداش ونل ته راجع دی اوددهمو پردوڅخـه هغـه پردي مراددي چه دســـري رلز نـي پوټ کـړي وي نـو معنـي داســوه چه نغمو واوازدنل زمليږدي دراز وسِرخبري کـړي لوزمـا رازوسِرني ښکاره کړي په دي معنـي چه ماخـو پرفرقت ديارد مجبوری وناچاری په خاطرصبـر ښکاره کړي وروقـت چه نن خيلي نغمي ســـاز وبـازکړي غم ده دفراق زمانـــي په جـــوش رلوروســـت لختيارمي دلاســـه ورکړي دصبـر پياله مي نـسکوره سوه سِرورازمـــي پرداگ ښکاره ســودفراق دغم رغ مي پورته ســـو . اوکـه مرادد نلـه څخـه انســـان کامل اومرشـد واصل ســـي نومعني دبيت داده چه انســـان کامل اومرشـــد واصل حـريف وغمخوار دهغه چادي چه دمعشـوقـــه جداوي اودهجر په حالت کښي وي يعني عاشق مهجوروي نه نه خالي دعشقه بناپردي حريف په معني دغمخواردي زماوروره په دي کښي شک نسته چه انسان کامل اومرشدواصل عاشق مهجور وصل ته رسوي اودحجاب پردي څيري اوورحق ته ئي وصل کوي نوگويامولناقدس سره داسي وايي چه مرشد کامل چه عالم په مراتبـودي ســالک ته ارشاددمراتبوروحـانيه وجسـمانيه کوي اووده ته کشـف دحقيقـت دهرمقـام کوي لوڅريده دپردوي ظلمانيه ځني کوي ځوچه ومشـاهدي ته محبوب ني رسـوي . اللهم انزل علينامن بـركاتهم وتجلياتهم وجعلنامن الســالکين يارب العلمين .

ابوالحفاظ : مولوي صالح محمد ( الارغستاني )

(۱) قوله دمهجورعاشق الخ . داخبره بايدزده کړوچه عاشق پردوه قسمه دي يوعاشق واصل هغه دي ته وايي چه دخپله خانه فاني وي اودحق جل جلاله سره باقي وي دنفس اوطبيعت بشري دقبضي اواقتداره څخه بالکل ازاداودحق سره په مکمل طورواصل وي چه دغه نوپه نامه دصوفي حقيقي اوانسان کامل اومرشدواصل هم يادېږي اوبل عاشق مهجوردي هغه ودي ته وايي چه په رياضت اومجاهده کښي دادرجه دوصول غواړي اوپه راه طلب کښي خپل ځان دصوفي پرصفاتو درست اوقائم ساتي خولاره دوصول ورته پاته وي دغه په نامه دمتصوف اوسالک مهجوريادېږي نوربيان ئي په خپل مقام کي هم سته ۱۲

چه پرزړه يه وه صبــــري پرده هواره       هغه خيري سوه ښکاره يه سوبرهاره

داخوخوي خاصيت دنـل دی زمـاورورہ       اوس دابـيت دمولنايه ستر گوگوره

مراددله ســه عاشق دپاک وهاب دی       هم کامل هم مکمل عالي جناب دی

دی بيشــکه دی غمخوردســالکانو       دمهجورووبـي وزلوعاشقـانو

دمهجورعاشـق دزړه دارودوادی (۱)       دهجرانـه ئـي وصـال تـه رهنمـادي

موانع بـه ده وصال کړي ځني ليري       دحجاب پردي بـي تـوله کي ورخيري

چه دشمس شغلي ځلانده پرقمرسي       داقمربـه خودبـه خوده منورسي

دامقـام دعاشقـانو دالله دی       دجملي ځخي يوهم زموږ مولنادی

کم دي شمس کم دی قمرزموږ په زمان کي       ماواروبي علمه داحالت حيران کي

ســرگردانه لالهانه مي ژوندون دی       په طلب مي ددي رازبوخ اندرون دی

شايدزماسترگي ړندي وي سربسره       چه نه شمس گورم نه وينمه قمره

خدايه شمس تبريززماد کورميله کي       مولنامي همجواره همسـايه کي

څوک چه ووايي آمين پردي بيانه       رب دي دی کړي بهره وريه دوه جهانه

(۲)

## هيچونی زهروترياق که ديد       هيچونی دمساز ومشتاق که ديد

چاليدلی دی يوشئ مثل نله       چه هم زهرهم دواوي سره مله

(۲) ددي بيت ربط وتعلق دسابق سره په دي خاطردي چه پدي بيت کښي بيان دحال واثرآخردنـل دی يادمرشدکامل پراختلاف ده ايرادي معني دبيت داده چه چاليدلـي دی مثل دنل زهرقاتل وهالک دي وي اوچاليدلي دي مثل دنل چه شفاز درادي وي هيچانه دی ليدلی همدارنگه چاليدلی دي مثل دنل چه موافق ومصاحب دي خپل ناني وي هره نغمه چه پکښي پوکي هغه وايي هم دلرنگه مشتاق دخپلو مجلسانو وي هيچانه دی ليدلی نواستفهام انکاري دي يعني نل زهرقاتل دي اهل هوالره ترياق اکبر اوشفاء ده اهل ولايت لره تفصيل دمقام دادي که ني پرخپل ظاهرحمل سي نوئي معني داده چه نل په خپلو نغموحال دخپل هجرو وصال بيانه وي نوزهرسوپه اول ترياق سوپه ثاني همدارنگه موافقه کوي دناني دساسره چه داشتياق په نغموږغ کوي نومشتاق دمجلسانووي نوهم دمسازهم مشتاق سواوکه دنله څخه انسان کامل اومرشدواصل مرادسي نوئي معني داده چه انسان کامل عشق ته حرکت ورکوي چه زهردي بدن لره اودوا ده روح لره هم دارنگه عشق موجب دفنائي موهومي دي نوزهرسوهم دغه عشق دي چه سالک ته بقابالله وربه برخه کوي نودواسوهم دارنگه انسان کامل موافقه دخپل معشوق جل جلاله سره څه چه معشوق ورته فرمائي هغه ارشادوسفارت په نغموکښي سالکانوته بيانه وي نودي مشتاق دسالکانووي هم دمسازهم مشتاق سي ۱۲

ابوالحفاظ : مولوي صالح محمد ( الارغستاني )

بنه ملګري مناسب چادی لیدلي ــ ترنل بنه دمساز مشتاق چادی لیدلي
نل دی زهر دهر چاچه ځان پسندوي ــ چه دنفس ودهوا په لومه بندوي
په غوږونو دهوا په اسماع وي (۱) ــ هم په لهوو په لعب ئي اجتماع وي
دغه نل متفکر لره دواده ــ هم خاوند ته دعبرت لو یه شفاده
ولي نل دجدایي ووصال درس دی ــ دغه پندنو دکامل دپاره بس دی
په یوه نغمه وهي پر فراق ساندي ــ په داغه نغمه طلب دوصال کاندي
هغه څوک چه وي عاقل عارف هوښیاره ــ دعبرت په سترګو ګوري نل ته یاره
نو ځان بولي مسافر په ژړاژاړي ــ دوطنه جلا سوي وطن غواړي
نل شفا سوخامخا ده دپاره ــ ورپیادئي کړه وده ته خپله لاره
شنه بلګونه په نظر کښي دهوښیاره ــ پره دفتر دمعرفت دکردګاره
مولنا چه مثال وایي هر زمانه ــ حقیقت ئي ځني مرادوي طالب جانه
مراددنله سه عاشق رباني دی ــ هم عارف واصل صادق حقاني دی
کم په خوب کم په خوراک کم په چښل وي ــ دهمه واړه لذتو ئي شکیدل وي
ژړي رنګ نري بدن لکه دنل وي ــ ددنیادمصائبو سره مل وي

(۱) داخبره بایدزده کړوچه مسئله دسماع داهل تصوف په مابین کښي یومسئله مختلف فیهاده خودامسئله ډیرطول و عرض لري همه جانبه بیان ئي زمایه دي حاشیه کي ګنجائیش نلري نولهٰذاموږپه قدرضرورت کفایت کوونو وایوچه یوه هغه سماع ده چه بنلرلهوولعب وي مجردهولو هوس پکښي مقصدوي اودنفسي خواهشاتواودلذت نفساني په خاطرغوږ ورته نیسي وحقائقوومعاني ته نظرنه لري څه معارف وعبرتونه نه پکښي لټوي داقسم سماع په اتفاق حرامه ده بله هغه سماع ده چه منظورپکښي الفاظ ولوآزنه وي بل نظرئي وحقائقوته کماهي وي اوفکرئي ومعاني ومعارفوته په داسي استغراق وي چه زړه ئي دحق دولرلوتومحل وګرزي پدغه قسم سماع کښي صوفیه کرام مختلف دي یوه ډله دصوفیه کرامو دغه سماع ته په ښه سترګه ګوري ذوالنون مصري (رحمة الله علیه ) فرمائي کوم بنده چه سماع په حق سره کوي دحق لاره به مومي څوک چه په هوا وهوس نفساني کوي په بي دیني کي به پریوزي حضرت شبلي (رحمة الله علیه ) فرمائي چه دسماع ظاهرفتنه ده اودي باطن سرلسر عبرت دی کوم خلق چه اهل باطن وي هغوته دسماع څخه عبرت حاصلیږي دهغونه علاوه دسماع شائقین عموماً دنفس وهواپه فتنوکښي مبتلاکیږي بعضومشائخوویلي که سماع په خپلوشرائطواوآدابوباندي وسي نوهغه داسرارالهي طرفته رهنماي کوي چه په هغه سره به دحق سره حاضروي نورحکایتونه هم ډیردي خوزموږحاشیه ئي متحمله نسي کیداي بله ډله دصوفیه کرامو وایي چه خوش الحاني دقرآن اوریدل واورول جائزدي علاوه بله هره نغمه وترنم په غنائي رنګ اوریدل جائزنه ګني ځکه چه دهغوي په نیزنورڅیزونه هواوهوس دانګیزه لودفتنوباعث جوړیږي هغوخپل مریدان دسماع څخه منع کول اوخپله ئي هم پرهیزځني کاوه لودائي دلیل وچه دسلفوصالحینوپیروي په هرڅه کښي ضرورده مثلاحضرت رسول کریم (صلي الله علیه وسلم ) دحسان بن ثابت ( رضي الله عنه ) مینځه دنغمي اوسروزه منعه کړه اوحضرت عمر( رضي الله عنه ) یوصحابي دنغمه ږغیدوپه وجهه په درو وه واهه اوحضرت علي ( کرم الله وجهه ) دحضرت معاویه ( رضي الله عنه ) په دي بناانکار وکړي چه دهغه کورنغمي ویونکي نژدي وي اوحضرت حسن ( رضي الله عنه ) دهغه ښځي دکتومنعه وکړه چه په نغمه لوسروزکښي مشغوله وه اووي فرمایل چه دشیطان ملګري ده اوحضرت جنید( رحمة الله علیه ) خپلومریدانو ته نصیحت په ترک دسماع کاوه اودایي ورته ویل چه دالٰهي څیزونوسماع کوي نوحکایتونه نورهم ډیردي بالاادي پرخداي پاک سپارم والسلام ۱۲

ابو الحفاظ : مولوي صالح محمد ارغستاني .

خلص دنیاوده تـه تولـه جیل خانـه ده | کـه څه هـم وماوتاتـه میخانـه ده
نوظاهره داحـــالت زهربنکاريږي | نودزهروســه هم دامضمون مراديږي
خوشـک نسـته چه کامل دسـالکانو | دالله پروردګاردعاشقـانو
بـــي پرواتل ددنیادایـن وآن دي | مسـتغرق په تجلوکنبي دسبحـان دي
درهرڅه نودخپل ځان په غرقاب خوښ دی | دادعشق په بي پایانه درياب خوښ دی
په نغموبه دوصال شـيرين ژوندون وي | بـل دهرڅه سـخي خلاصه اندرون وي
روحاني خوشحـالي فوق ترجسـماني ده | ولي دايوه تحـفه ئي رحـماني ده
تـردي پورتـه نـودواچاده ليدلـي | هيچادارنګه شـفانه ده ميندلي
زهردواچه دي په خپل ځان كنبي قياس كړه | دغه رنګه ځان وبـل چاته مقـياس كړه (1)

## نی حدیث راه پرخون میکند قصهای عشق مجنون میکند

په نغمه كنبي نل بـيان كوي سـرداره | ماوتاتـه نبيـي دادوينـولاره
نل چه تل په زيروبـم كوي فرياده | دمجنون دعشق قـصي بـه كړي راياده
سامعان به خوددعشق په اوركباب كړي | خودورګډبـي دادوينوپه درياب كړي
مولنـاپه نـل مثـل وموږتـه وايـي | مرادئي بـل دي لكن فهم موږته نبايي
مرادعاشق لاره دوينوئي عشق وروره | دغه لاره دزحـمت تكليف هرګوره
هميشـه دزماني پرده بـدلون وي | دمعشوق په امتحان كي ئي ژوندون وي
دفراق پرصحـراتل كوي مزلونه | دوصـال تمنـاوي ځګرخونـه

(۱) ربط وتعلق ددي بيت دسابق سره په دي خاطردي چه په اوسني بيت كنبي بيان دجز، دبيت سابق دی . اوس نوداخبره بايدزده كړوچه ني كه چيري پرخپله ظاهره معني دنل پاته سي نومعني دبيت داده چه نل بيان دپرخونه لاري كوي چه هغه لاره دعشق ده هم دارنګه قصي دعشق دمجنون كوي پدي معني چه نل په خپلونغمووسامعينوته عشق دمجنون وريپاده وي نودوي په وجدوشوردعشق راځي ولي دايومنل سوي حقيقت دی چه انسان په خوشګواره اوازونواونغموپه بنورراځي اودشوق وذوق سطحه ئي بلندي كوي انسان لاڅه پروحوشووطيورهم اثركوي نه ګوري وخوشګواره اومبارك اوازته د داؤد عليه السلام چه دده داوازپه خاطرد ځنګلوجناورانواودهوا مرغانوخپل طبـعي صفات هيرو ول . په دي كنبي شك نسته چه شور وعشق اودخپلوطبـعي صفاتوهيربدل يومعمولي لاره نه ده بلكه پرخونه اودتكليف لاره بـه ني بـولو . اوكه چيري مراد دنله څخه انسان كامل اومرشـدواصل سـي نو معني دبيت داده چه مرشد كامل بـيان دپرخونه لادي كوي چه هغه نولاردعشق وسلوك ده ولي شك نسته چه لاره دتجريددماسوي الله ده اودترك دلذاتو طبـعيه اوخواهشـات نفسـانيه اودمصائبو ومتاعبومهالكولودكاملي تشنګي لاره ده نوبـه ولي خونينه لاره نـه وي لوولي بـه نودتكاليفومتاعبو ډكـه نـه وي همدارنګه مرشد كامل بـيان دعشق دعاشـق الهي كوي چه هغه په نامـه دمجنون يادبږي مولنا خپله فرمائي نيست ازعاشق كسي ديوانه تر: په يوروايت حديث راغلي ( اذكرالله حتي يقولوامجنون ) همدارنګه عوام ومجانينوته دالله جل جلاله ليونيان وايي معاذالله څنګه بـه دفينه داسراروم‌جنون اوساحروي لكن كوم وقت چه ارازلوانبياواولياء مخالف دخپلي طبعي وليدل نوپه ورطه كنبي دغفلت وظلمت وليوي ده اوس به داخبره زده كړوچه عشق مجنون كلمه په بيت كنبي ياپه اضافت دد معني ني داچه مرشد كامل قصه دمجانينودالله وطالبانواوسالكانوته بيانه وي يابلااضافته معني داچه قصي دعشق سري مجنون كوي يعني سالك ناقص كامل ګرزه وي ۱۲

ابو الحفاظ : مولوي صالح محمد ( الارغستاني )

ددنیالـــذات وي تولــه څنــي پاتـــه ‍ ‍ هیڅ وقـت نه گوري داین وآن وخواته

هغه څوک چه دمعشوق په مینه مست وي ‍ ‍ بي معشوقه ئي دهرچاسره دربست وي

په نظر کــــښي دعواموليونيــــي وي ‍ ‍ ولــي دي خودهرچاڅخــه پردې وي

چه بـــيان کوي دعشـــق په يومضمونه ‍ ‍ نوپرده بـــاندي ايږدي نوم دمجنونه

دهجران لمبـــوئي ســـوي وي بشــــره ‍ ‍ دعشـق اورئي وربوخ کړي وي څگره

دادوينودرياب نه بــــــونو نوڅه دی ‍ ‍ چه اوبازئي غرقاب نه بـولونوڅه دی

دمجنونــــه مرادکامـــل ذکملانـــو ‍ ‍ دی بيشـــکه دي رهبردســـالکانو

محرم این هوش جز بیهوش نیست[(1)] ‍ ‍ مرزبان را مشتری جز گوش نیست

ددي عشــق محـــرم هغه عقــل داناوي ‍ ‍ چه بــي هوشـــه بـــي فروادبــله چاوي

همجوره بـــه دعشـــق هغه باخبـــروي ‍ ‍ چه دنياومافيهاســــه لاس پرســــروي

پرمعشوق باندي خرڅ کړي مال وځان وي ‍ ‍ دمعشـــــوق له خواوده ته دااعلان وي

مااخيســــــتي دومنه ځان مالونه ‍ ‍ په عــوض کــښي ورکومــه جنتونــه

هغه څوک بـه خوداوبـازددي درياب وي ‍ ‍ چه همـــه واړه اغياروتـــي جـــواب وي

خوددي ميني غوښتونکي هرڅوک نه دی ‍ ‍ بي عاشقه ئي زغمونکي بل څوک نه دی

دښي ژبــــي طلبــــدارهراندام نه دی ‍ ‍ بـــيله غوږه ئي بـــل يوخريدارنه دی

دسروزروقـــــــــدرغواړه دزرگره ‍ ‍ مه ئي غواړه دبـــــــازاردآهنگره

دتشبــيه ســـره خوته بـــلدئي وروره ‍ ‍ دبـــيان په ســـترگوښه ورته گوره

(۱) وقت چه مولٓناپه سابق بيت کښي دارازده کړه چه عشق دوينوکوردي اوس په دي بيت کښي محرم وکوربه ددغه کور رانيبي دائي وجهه دارتباط وتعلق سوه . معني دبيت داده چه محرم اوکوربه ددي لاري پرخون چه عشق دی غيردهغه چانسي کيداي چه هغه به بي شعوره اوبي فروادغيرالله څخه گرزيدلي نه وي بلکه په هرڅه کښي به الله ويني خلص داچه ليوني نه سي پرهوش به نه سي ملاحسن ( رحمة الله عليه ) په دي باره کښي څه وايي . **چه جهدن وني ته خي خبل سربه بايلي: دهغي مارانوخاي دجهدن سوري** : دوهمه مصراع دبيت تمثيل داولي معـراج دی . يعني لکه خريدارچه دژبي بي غوږه بل څوک نه دی همدارنگه محرم اوکوربه دعشق دکوره بيله بي هوشه داغياروڅخه بـل څوک نه دی که څه نورپســـي ورغيږونوبـه دلوايوچه محرمين دعشق نه دي مگرهغه کسان دي چه دوي ليـدل کـوي په مشاهداتوانسـيه واوړه واورداتوقدسـيه وهغه حقائق عينيه اودقائق غيبيه لودوي مدهوشين په رحيق کښي دعشق وي لکـــه دوي چه په غوږونودبـــدن متاع دژبي رانيولي همدارنگه په غوږونودعقـولوني جواهردنکات قلبيه و اوزواهردحقائقورحنيه ورانيولي زړه وحـواس نـي تولـه دماعداڅخـه فـارغ ددنياوامورورتـه هيڅ کانه نه کوي بـلکه سـکاري په شرابودشـوق وي لهذاپيغمبـر( صلي الله عليه وسلم ) فرماني ( انتم اعلم بامورِدنياکم ولي حکمة الهي هرشـي ديوشــــي دپاره لائق گرزولي وي حضرت بايزيد ( رحمة الله عليه ) وايي الله عالم په استعداداتودخپلوبندگانو دی. بعض دبندگانو صلاحيت دعشق نلري نو الله دوي مشغول په خدمت کښي وگرزوي دانوعابدون وزاهدون دي بعض بندگان بياصلاحيت دعشق ومحبت لري دانوعاشقان دالله دي نودوي پرفحوي ددي قـول دخداي جل جلاله دي ( ان الله اشتري من المؤمنين انفسهم واموالهم بان لهم الجنة ) ۱۲

ابوالحفاظ : مولوي صالح محمدارغستاني

| گر نبودی نالۂ نی را ثمره [(1)] | نی جهان پر نہ کردی از شکره |
|---|---|
| که دنل ژړا بې ځایه بې ثمروای | نو به ولي جهان ډک ددي شکروای |
| دشکره مراددنل شیرین اوازدی | په خوږو نغمو دمیني سور شابازدی |
| سامعان ئي په زړه ابل په لکهادي | هم په ښار هم په قریه هم په صحرادی |
| داخوخوشي مسخره نه ده زماووره | بلکه لویه ننداره ده ورته گوره |
| چه جهان ئي ننداره کوي نیک ذاته | نو ژړائي بې ثمره نه ده فاته |
| مولٰناخو په تشبیه ډیرډیرغیبږي | ولي زماوستاوذهن ته بنه رسیږي |
| مراددنله سه داعي دعشق دی یاره | چه مرشد کامل ئي نوم دی ای سرداره |
| په حکمت وبه تدبیرباندي دعوت وي | هم خاوند دشفقت هم درحمت وي |
| داپیشه ده دالله دعاشقانو | چه مرشد وي هم رهبر دسالکانو |
| په رقم رقم نغموراته چونیږي | په عجب عجب لهجوراته رغیږي |
| څه گوروددعشاقو دفترونه | پکښي وینوداسراراو مرکزونه |
| دخواجه عبدالله شیرین نعتونه | دجامي وسنائي دسوزبیتونه |
| دحافظ ودسعدي دعشق شعرونه | پرقابل زړه اوره وي دعشق اورونه |
| دادعشق په مدرسه کښي شاگردانه | په زړهاؤ په لکهادي سالکانه |
| چه دانه بولو ثمرنونوم ئي څه دی | چه دانه بولو شکرنونوم څه دی |

(١) وقت چه مولٰناقدس سره په سابق بیت کښي محرم دعشق رازده کړي پدي بیت کښي اثرددغه محرم رانبیي نو به : غه خاطرتعلق وربط دسابق ودلاحق سره جوړسواوس به راسومعني ته دبیت که ني پرخپل ظاهرباته سي نومعني دبیت داده که چیري ژړالره دنل اثرنه واي نوبه جهان په خوږو نغمو دنل ډک نه واي مگرزه وته وینوااوروچه دنل خوږي نغمي په جهان کښي خپري دي داپرهغه تقدیرچه دشکرڅخه خوږي نغمي دنل مرادسي داهم رواده چه شکرپرخپله ظاهري اوحقیقي معني باته سي مگرداسوال نودطالب په زړه کي ورگرزي چه دغه ژړاکونکي اونغمي ویونکي نل نوکله جهان دشکري ډک کړي دي هغه نل چه په جهان کښي شکره خپره کړي هغه نل خوبل نل دی چه موږ وتلسي گنی ورته وابوهغه بیاژړا کونکي نه دی نوبه دفعه دسوال پداسي ډول کوو چه کوم وقت چه ادوونلانو به نامه دني کښي شرکت سره درلودی نووظیفه دهر یوه وبل ته مجازاسپارل کیږي اوکه چیري دنله څخه مرشد کامل مراد سي نومعني دبیت داده چه که چیري دعوت وتوجه لره دمرشد کامل اثروثمره نه واي نوبه مرشد کامل جهان په خوږونغمودعشق الهي نه واي ډک کړي . اوزه وته ئي وینو چه مرشد کامل په خوږو نغمودعشق اوپخپله حکیمانه توجه وُدعوت ډیرسالکان دحضیضه دنقصان واوج ته دکمال رسولي دي اوجهان توله دسالکانو اوخانقاؤ په درشل کښي گورو داثرنه بولو نوڅه دی . دامنم چه زموږ په موجوده وقت کښي مقلداوناقص شیخان ډیردي دثمرپرځاي دزهروپیغام راوړي خودابیله مسئله ده هروقت شیطان دښو په مقابل کښي دبدوتخنیک کوي نه گوري چه په مقابل کښي دباثمره اوبااثره اوازدداؤد علیه السلام شیطان دمزامیروتخنیک فعال کړي نوبه ولي په مقابل کښي دبااثره اوباثمره دعوت دمرشد کامل یوباخطره اوبي ثمره دعوت دمقلدوناقص نه فعاله کوي . والسلام ١٢

ابو الحفاظ : مولوي صالح محمد ارغستاني

| | |
|---|---|
| درغم ماروزهابيگاه شد (١) | روزهاباسوزهاهمراه شد |
| چه مي سپينه ورځ په غم کښې اوس بيگاه سوه | زمانه مي دزړه دردسره همراه سوه |
| مراددورځوځخه احـــوال دســـالكانو | مراددشپې سي تيريدل دي طالبانو |
| داحوالوســـه هغه امورمراديږي | چه سالک مبتدي ته وربنكاريږي |
| احـــوال نه لري بقاخودبـــه تيريږي | په دي رازمتصوف شخص پوهيږي |
| كه وتاته مغلق ســي دابـــيانه | دحاشــي اســتفاده وكړه زماجانه |
| يايـه مـراد دی عـم دعمـرچه تيريـږي | ختني ولاړي وآخرته اوس رسيږي |
| غم پردي دی چه مي تيرســوروزگاره | خاوندنه ســومه دعشــق دكردگاره |
| مولناكـــوي تعريــض پرماوتـــا | ځكــه دی خومولنــادی مولنــا |
| دتعريض نمونه راغلي په قـــرآن كښې | دحبيب نجارنقل پدي شان كښې |
| ځكه دی وايي مالي لاعبـــد | خومقـصدئي دی دقـوم ان تعبـد |
| كه نظركړي وحاشـــي ته اي مجنونه | درته حل بـه سي همه واړه مضمونه |

(١) وقت چه مولنا عشق ؤاشتياق اوپيشه دمرشد كامل په بيت سابق كښې بيان كړه اوس نوهم په دغه باره كښې دخپل ځان بيان كوي هم په دغه وجه دسابق ؤلاحق ترمابين تعلق وارتباط پيدا سو معني دبيت داده چه په دردكښې دعشق زموږ احوال تيرسوه اوزمانه مي دد دسره دعشق ملگري اويوځاي سوه يعني عشق دخپل محبوب راسره پاته دی اوس نوبايدسمدستي احوال وپيژنوداسي . احوال په اصطلاح كښې داهل تصوف هغه اموردي چه وسالک ته بلااختياره عارضيږي ده لره نه په راتلوكښې اونه په تلوكښې اختياروني نيْ ده خپله زړه ليري كولاي سي ني خپل زړه ته راوستلاي سي لكه كشف كرامت لستغراق قبض بسط الهام رؤياصاحله نرلست صادقة اجابت دعادلسي ....رخودا احوال په نيزاكثراهل تصوف دوام وبقا . نلري تيريدونكي اوتلونكي دي حضرت جنيدبغدادي ( رحمة الله عليه ) وايي احوال دبجلي په شان دي دهغوپه نمودكښې همېشه وقفه راځي اوتسلسل پكښې نشته خوداحوال مقصودنه دي بلكه قرب الهي محبت الهي رضاء الهي فنا . في الله لستقامت شرعي مقصوددی نه احوال داحوالومثال داسي دی لكه يوسړي چه يومقصدته پرلاره روان وي اودلاري پر يوه خواوبله خواي دگلانوباغچي وي چه مزل وتگ په وقت دده په نظرورځي نودگلونوليدلودپاره دتگ معطل كيدل دمقصود فوتيدل راولي نوهوښيارهغه ځوک دی چه خپل مزل كوي اوومقصودته ځان ورسوي ځكه چه مقصوددلاري قطعه كول اومطلب ته ځان رسول دي گلونه په لاره كښې مخي ته راځي كه نه راځي خلاصه داچه دسلوک په حقيقي كوركښې مقصود په حق كښې فناكيدل دي وبس . چاداسي ويلي چه معني دبيت داده چه په غم وحسرت كښې زموږ دعمرروځي تيري سوي اوس مي نوروځي دعمردسوڼگ سره مخامخ سوي آخري نيتي ته ورسيدي غم وحسرت پردي چه خاوندان دعشق نه وگرزيدوخو بناپردي معني دطالب په ذهن كښې داورگرزي چه پرمولناخوروځي پردغه دول نه دي تيري سوي بلكه دی په لوړه مرتبه كښې دعشق ؤ نودي ځنگه غم وحسرت پردي كوي چه خاونددعشق نه سوم خوداسي جواب كيداسي چه كلام دمولنابناپر تعريض دی يعني مولناچه غم وحسرت پرنه عشق دخپل ځان كوي مرادئي تعريض پرماوتادي پدي معني چه تاسي بايدپرتيرسوي عمرغم وحسرت وكړي په پاته عمركښې ځانونه دعشق الهي خاوندان وگرزوي لكه حبيب نجارصاحب چه نسبت دعدم عبادت وخپل ځان ته وكړي اومرادئي تعريض پركفارودخپل قـوم وونه گوري چه الله جل جلاله په قرآن شريف كښې دده ځخه ځنگه حكايت كړي دی داسي ( ومالي لااعبد الذي فطرني واليه ترجعون ) ولي داخومعلومه چه دی خپله مبارک په لوړه درجه كښې دعبادت وو خوددي جوابه سره سره اوله معني دقبول وړده په دي خاطرچه موږ وتاسي آينده بيتونه وگوروپه هغه كښې مولناصراحة حال دخپل ځان بيلنه وي نبه فكرپه كښې وكړه نوردي پرخداي سپارم والسلام ١٢

ابوالحفاظ : مولوي صالح محمدارغستاني

روز ها گر رفت گو رو باک نیست[1] — تو بمان ای آنکه چون تو پاک نیست

که احوال تو له فاني وي باک مي نسته — دمحبوب عشق چه باقي وي باک مي نسته
ولي زمانظر پرحـال هيڅ مقصـورنه دی — چه محبـوب راسره وي حـال منظورنه دی
يادروځوســه شــيرين عمرمراديږي — تگ به دادي چه آخرته اوس رســــيږي
خوداعمرکه مي تيرسي خوددي تيرسي — چه محبوب مي راسره هرڅه بـه هيرسـي
زه بـــه وايم چه تريږي ځه تيريږه — چه ملگري مي وي عشـــق ځه مه دريږه
ددي پاک عشق ملگري مي ده مختاره — ته دريږي که تيريږي ســـــتااختياره
ماوتاته مولّنادااشـــــــاره کړه — چه آخرعمربه عشـــق کښي نندازه کړه
دغفلت[1] خوبـــونه پريږده نن دي واردی — دصبـــــاروځي راتگ به ډيرتلواردی
درنجوخال به دي شين خال کړي دورانه — بيابـــه نه کوي فائده افســـوزارمانه
چه دکوچ نغاره ووهل ســــي ياره — کامياب هغه چه ترلي به وي بـــــاره
چه غافل اوناخبــــره به کاروان وي — خجل پاته بـــه يوازي پربيبــــان وي
چه دلمرشـــغلي ځلاندي وي پرواره — ته ســوچ وکړه څه بـــه پاته ســي زماياره
زماوستاعمردبـــادپه شـــان تيريږي — بــــــــادهيڅکله ماوتاته نه دريږي

(۱) وقت چه مولّنابيان دخپل ځان په سابق بيت کښي په داډول وکړي چه احوال مي تيرسوه خوعشق الهي راسره باقي دی په دي بيت کښي دلسي خپل حال بيانه وي چه په بقادعشق دخپل محبوب راضي يم داحوالوپرتيرواړمان نه کوم نوارتباط وتعلق دسابق ودلاتق واضح دی . معني دبيت داده که احوال لماڅخه ولاړاوتيرسي ولاړدي سي باک مي نسته ځکه چه زماپه نيزاحوال اعتبارنلري خوته پاته سه اي عشقه دمحبوب حقيقي يعني ته زمامشهودا وسه احوال که تيرسي تيردي سي نوپه دي مضمون کښي اشاره سوه ودي ته چه علم ومشاهده فوق ترحال دي لکه داخبره چه مصرحه په کتاب کښي داهل تصوف ده . نوخلاصه داچه اصل مقصودرضاء الهي اومحبت وعشق رباني دي وبس حتي په طاعت وعبادت کښي بايدبي رضاء الهي بل شئ منظورنه سي . داسي يوحکايت راغلي چه دبي بي رابعه بصريه څخه چاپوښتنه وکړه چه ته چي دادومره ډير عبادت کوي ددي دپاره چه جنت په پيداکړي دي مبارکي په جواب کښي ورته وويل ناداخو کاردطامع دي زه طامعه نه يم بيلـــائل وويل ته چه دادومره ډيرعبادت کوي ددي دپار، چه ددو زخه څخه خلاصه ســي دي په جواب کښي ورته وويل ناداخوکاردبيريد ونکــي اوډارن دي زه ډارنه اوبيــريدونکي نه يم بيلـــائل نفوس خني وکړي چه نودڅه دپاره دادومره عبـــادت کوي دي ورته وويل داالله درضاء دپاره جنت ودوزخ گوښي شيان دي بايدالله په عبادت کښي دوي نظراندازســي اصلي رضاء . ده هم په دغه مضمون کښي شاعراديب ملامحمدعيســي آخندقندهاري داسي وايي . که اشنامي لاس په لاس کښي راکړي په جهان پروانسته : په جنت وپه دوږخ وپه اسمان مي پروانسه ۱۲

ابوالحفاظ : مولوي صالح محمدارغستاني

الراقم : سيدمولوي عبدالهادي

| | |
|---|---|
| هر که جز ماهی ز آبش سیر شد[1] | وانکه بیروزیست روزش دیر شد |
| ماهي كله ددريابــــه ســــه اوبـــيږي | خويوه جرعه دبحـــره زموږ بـــس كيږي |
| طائفه دانســـــــان دارنگه ترميم ده | چه منحل ئي كړي پردري ډلي تقسيم ده |
| يوه ډله تشــــــنه لبــــــه هرزمان وي | هميشـــــه دداســـي تندي خاوندان وي |
| په درياب دمعرفت كښي نه اوبــــيږي | تل مدام ئي هل مزيددخولـي جگيږي |
| دماهي په شـان په بحـر كښي لمبووي | پرهغه ســـره بـــيره تږي دابــــووي |
| بـــله ډله دســـالک چه واصل نه وي | خودډلي څخه بـــالكل دغافل نه وي |
| دتولـــي دغافلانـــــووي ممتــــازه | مگرنه وي ددي لوي درياب اوبـــــازه |
| خودتندي ئـي يـوه جرعـه كافـي وي | ددريابـــــه ئي يوه چمچه شـــافي وي |
| بــله ډله بـــي نصيبـــه بـــي خبـــره | په غفلت كښي وقـت تيريږي سربســره |
| په لذاتو كـــــښي راگرووي ددنيـــــا | دالله دعشـــــق څخه گرزي بــــي فروا |
| دغه بنه فرصت چه ده نن دي ميندلـي | خوبخپله ئي په لوي لاس وي بـــايللي |
| بـــي نصيبـــه دربـــدره خاک بســـروي | شـيرين عمرضائع حـال ئي بـــد تروي |
| په دي بـيت كښي مولَناتول كړه عيانه | مگريوبه اشــــاره دوه په بـــــيانه |
| يااولـــــــه ده دعامؤمنانــــــــو | دادوهمه ډله ده دعاشقـــــــــانو |
| دريـم هغـــه ډلــه ده چه كافـــران وي | دالله پاک دمبـــــين دين دښمنان وي |
| دعشاقـــوډله وي په لوي درياب كښي | دماهي غوندي اوبازوي په چرخاب كښي |
| په درياب دمعرفت كښي دي غوټه وي | پرهغه سربـــــــيره تږي چولاوه وي |
| دعوامومؤمنانو داســــــــي كاروي | ددريابــــــه دعشاقوبـــــر كناروي |
| په جرعـه ئـي دايمـان وي تنـده ماتـه | بـــــالانه گوري دلوي درياب وخوانه |
| كافران چه دالله څخه ناخبـــــــــردي | بـــي نصيبـــه دربـــدره خاک بســـروي |

(۱) لكه په سابق بيت كښي ئي خپل حال په بقادعشق بيان كړي په دي بيت كښي بيان دخپل حال په نه مرتباپه عشق كوي دايه وجهه دتعلق ولرتباط ده . معني دبيت دلسي كيدلاي سي چه مولَناقدس سره انسان وددروطائفوته تقسيمه وي اوله طائفه دعارف كامل ده چه لكه ماهي په درياب دمعرفت دي مگرهروقـت دتندي خاوندوي اوهردم دابـــود معرفت طالب وي لودم په دمه دهل من مزيدنعري وهي څكه چه تجليات دحق لاتقف عندحددي داطائفه په طوردمفهوم مخالف دهركه جزماهي څخه وفهميده دوهمه طائفه دغيرعارف كامل ده هغه داچه دمعرفت ددرياب ماهي نه وي لكن طالب دمعرفت الهي وي دانو متوسـط په ملبين كښي دعارف كامل لودبــــي نصيبـــه دي خودغه متوسـط لره جرعه ولنده دابــوڅخه دمعرفت كافي ده لوبه دلغه قدرقـــانع وي پرخـــلاف دعـــارف كامل دريمه طائفه دبـــي نصيبـــه ده هغه داچه روڅي دعمرئـــي ضائـــع كـري وي هيـــڅ تمتـــع د معرفت ئي نه وي حـاصله كړي كـه څه هم دجملي څخه دعامومســلمانانو وي همدارنـــگه معنـــي دبيت دلـــي هم كيدلاي ســي چه مولَناقدس سره انسان پردروطائفوتقسيمه وي اوله طائفـــه دعامـــو مســـلمانانوده چه دوي دابــوڅخه دحـق يعني دكلامه څخه دحـــق چه ودوي ته په واسطه درسل عليهم الصلوة والسلام رسيدلي دي ســيراب ســوي لولوبـــه ســوي وي لوبدلغه قدرقـــانع گرزيدلي وي لودعشقـــه دالله خالي پاته ســوي وي نلره دطلب دمشـاهده ئـــي په دي دلركـښي نـــه وي جـــگه كـــري هغـــه نجـات اخـروي غـواړي لوبه مشـــاهده موعوده ددارالجزاء قـــانع وي چه ده دي طائفي څخه مولَناقـــدس ســـــره په جزء ماهي تعبـــــير كړي دويمه طائفه هغه ده چه په مفهوم مخالف ده جزء وفهميده چه هغه نوطائفه دعارف كامل اوعاشـــق الهي ده هغه نولكه ماهي په هغه قدرابودحـــق نه دي قـــانع بـــلكه هغه څه غواړي چه تلوپيژندي دريمه طائفه هغه ده چه بـــي نصيبـــه ده آب حـــق څخه وي چه هغه نوطائفه دكفارده راغلوترجمي ته دبـــيت ضمير په ابـش كښي وهركه ته راجع دي سيرپه معني دلوبه روزي په معني دبي نصيبه دتمتع په معرفت الهي پرلوله معني اوكنايه دغروره پردومه معني : ديرپه معني دليري يعني دخراب وضائع ۱۲

(١) وقت چه مولنا قدس سره په بيت سابق کښي بيان دطوائفوراته وکړي اوس په دي بيت کښي بيان دعدم مجانست ددوي راته کوي دلسي هم ويلاي سوچه وقت چه مولنا قدس سره په سابق بيت کښي بيان دطوائفووکړي اوس په دي بيت کښي طرز وطريقه دمکالمي داعلٰي دادني سره راته ښه يي ، داهم ويلاي سوچه وقت چه دسابق بيت څخه معلومه سوه چه عارف کامل لره سيري نسته نوخام وناپوخته لره حق ددي سوال سته چه ووايي چه عارف کامل لره ولي سيري نسته سره ددي چه نوموري په دومره عالي مقام کښي دي نو مولنا قدس سره اوس په جواب کښي ورته وايي چه خام ناپخته درک دحال دعارف کامل نه سي کولاي څکه چه دده فکر وفهم ته چه دعارف کامل په برخه دي نه رسېږي لکه تجليات لاتحصى لوسيرفي الله چه پلي نه لري نو څنګه خپل شغلات وخپله نه سيري ودغه خام ناپخته ته بيان سي نو ښه داده چه وده ته جواب په کوتاهي دکلام اوپه سلام ووايي څکه چه متکلم بايد کلام په قدر دمخاطب داستعداد اتفاق وکړي داوي وجهي دتعلق اوارتباط دلاحق دسابق سره اوس نور لغلو معنى ته دبيت تحفه داچه حال دعارف کامل هيڅ نوي سالک ته نه سي پيدا کولاي دجنه څخه دعلم جنسيت په مابين کښي ددوي نو دعارف دخوا ورته پکار دي کم کلام اورخصت په سلام نو لفظ ددي بيت کښي زائد دي دتحسين دپاره زيات سوي دي ١٢

| پس سخن کوتاه باید والسلام | درنیابد حال پخته هیچ خام[1] |
|---|---|
| کم کلام دي په سلام ورته ياديږي | دپاخه حال داومه نه پيداکيږي |
| درباب غوندي شاباز دربط نه دی | دماهي غوندي اوبازخونوبط نه دی |
| مه ئي غواړه دنوخطوسالکانو | معنى حال دعارفانوکاملانو |
| په انداز دطريقت ورته ګډيږه | په مقدادظرفيت ورته ږغيږه |
| بيارخصت يه په سلام ښه دی زماوروره | واوته کم کلام ښه دي زماوروره |
| كلم الناس علي قدر العقول | داشوق منه طبعي مه کړه ورملوله |
| ته بليغ چه لاندي نه سي ترخطابه | مقتضي دحال مرعي کړه اي جنابه |

| چند باشی بند سیم وبند زر | بند بگسل باش آزادی ای پسر[2] |
|---|---|
| مولنائي طريقه اوس راته وايي | ماوتادواړه شوق منده پخته والي |
| دحصول دپختګي داطريقه ده | دزوال دخامي داسي شريطه ده |
| ځوبه بندئي په سودادسيم وزره | دتقليدپري ازادکړه دخپل سره |
| حرازادځان دالله سره بسته کړه | ددنياده مري توبه ځان ګوبنه کړه |
| په ظاهره خال وخط موخطاباسي | دادنيااصلي بوډي ځان ناوي باسي |
| حقيقت کښي تکه توره مکاره ده | په تزيين دشيطان ډيره ښائسته ده |
| په باطن کښي ده دزهرونکه ياره | په ظاهره ښائسته ده لکه ماره |
| زُين للناس حب الشهوات | په قرآن کښي دی راغلی داآياته |
| په حديث دپيغمبربه مي زړه ښادسي | تعس عبدالدرهم چه راپيادسي |

(٢) چونکه دسابق بيت دمضمون څخه وسالک ته دا سوال پيدا کيدي چه دپخته والي لاره به څه وي مولنا قدس سره ئي په دي بيت کښي لاره وطريقه ورښيي نووايي بندبگسل الخ . معني دبيت داده اي زويه پري دمحبت ددنيادغاري وشکوه ازادوجربنده دخداي جل جلاله لوسه ترڅوبه په قيد کښي دسپينووسروزروبندئي نه ګوري وقول ته دالله جل جلاله ( زين للناس حب الشهوات من النسآ. ) الاية نه ګوري وقول ته درسول الله صلي الله عليه وسلم تعس عبدالدرهم والدينار الحديث نه ګوري وديته چه دزراصل خاوري اوخاوري ملعبه دصبيانودي لکه مولنا قدس سره چه ودغه مضمون ته اشاره په لفظ داي پسر کړيده نوفکروسوچ وکړي چه پاخه وګرزي اودالله دهداياتولاره پيداکړي والله عنده حسن المآب ثم ذکردسيم وزردبابه دذکردجزء مراد کل وي ولي قيودخونورهم ډيردي خودابدقيددي څکه ئي تخصيص ودته ورکړي ١٢ ابوالحفاظ : مولوي صالح محمدارغستاني

دغماشـــي تروزرتيته دنياده — دالله دپيغمبـــــر دغه ويناده
که مونږ وګوروحالت دپيغمبره — ددنياسره عادت زمونږ دسروره
نوبه نه سوګرفتارددي په لومه — هم پيدابه کړونجات ددي دشومه

## گر بریزی بحر را در کوزه (۱) — چند گنجد قسمت یک روزه

مولنااوس په عجيب طرززوبيـــانه — دحـــرص منعه راته ښيي دازمانه
وايــي مکـــوه طلـــب دټول دنيـــا — نه ځاييږي په وجودکي بالکل ستا
ولــي تاايښي دريـــاب تــه ير ـــزه ده — ځوبه ځاي کړي ديوي ورځي توښه ده
دمطعوم دپاره ســـتالوښي يونس دي — وقت چه ډک سوبيادنن دپاره بس دي
دصبـــــادپاره هيڅ نه کي ځاييږي — حـاجت پره نوردزائدبه نوم ياديږي
چه اوس موږسوم جوال مي ډک سولدي واره — دصبـــــادپاره ظرف نه لرم ياره
نـوښه داده چه طلـب کـړي لـه دنيـا — هغه قـــدرچه حـــاجت دي کړي روا
هغه قـــدرچه په جوال کي دي ځاييږي — څه فائده چه پريبيان بـاندي پاتيږي
نودځه دپاره ســـتړي ســـرګردان ئي — ددنياپه پسي پشت پسـي روان ئي

## کاسۂ چشم حریصان پر نشد (۲) — تا صدف قانع نہ شد پر در نشد

مولنااوس دحـرص وايي شـناعته — ماوتابـــاعث کوي پرقـــناعته
دحارص سترګي بي صبره نه مريږي — چه صدف نه سي بسته کله درکيږي
دحارص ستونځي پخوادي هرزمانه — هم په زړه هم په بدن ستړي ستومانه
چه يوه شـــيله ئي ډکه وي دماله — ددوومي طلبـــداروي لامحـــاله
تــل مـــدام په ذکروفکرددنيــاوي — ددوستانواقربـــاؤ ځخه جلاوي

(۱) ځرنګه چه مولناقدس سره په سابق بيت کښي مطالبه دانقطاع دمحبته ځخه ددنياوکړه په دي بيت کښي وجهه ودليل دنوموړي مطالبي راته بيان کړي همدارنګه په دواړوبيتونوکښي تنبيه پرمنعه دحرص ده بدي خاطرنوتعلق وارتباط دلاحق بيت دسابق سره قائم سو ، راغلومعني دبيت ګرمخفف داګراداتت دشرط دي جواب ني مصراع ثاني ده يعني ددنيامطعومات وغيره په مثل ددرياب دي په وسعت وپراخي کښي اوبطن ونس دانسان په مثل دکوزي دی په ډکيدلوکښي په لږ شي باندي نومقتضي دعقل خوداده چه هرځوک ددرياب ځخه بايددخپل ظرف په اندازه اخستل وکړي مثلاظرف زماسره کوزه ده بايد دکوزي په اندازه ددرياب ځخه اخستل وغواړم نه داچه په يوه کوزه کښي دټوله درياب اخستل غواړم همدارنګه نواوس زماسره ظرف نس دی مثلانوبايد دمطعوماتوځخه مثلا دهغه قدردراخيستلو تقاضاوکړم چه زمانس ني ځايه وي نه بالابود. داخومعلومه ده چه زمانس ديوي روځي ترمړتيا بالابودني ځايه ولاي نومطالبه دبالامقتضي دعقل نه ده نوبايدانسان دتن په مړتياقناعت وکړي بلاظرفه دمظروف مطالبه ونکړي بلکه هغه وقت دمظروف مطالبه دياوکړي چه ظرف ني خالي سي نو په دي بيت کښي کامله تنبيه پرمنعه دحرص راغله ۱۲

(۲) مولناقدس سره په سابق بيت کښي ماوتانه تنبيه پرمنعه دحرص رلوښووه اوس په دي بيت کښي تنبيه پرشناعت دحرص لوباعث توب پرقناعت راته بيانه ړي نوماوتاتعلق وربط په مابين کښي دبيت سابق ولاحـــق وپيژندي . معني دبيت داچه سترګي دحارصانوپه مال نه ډکيږي ځونازنينه پرده دصبرورباندي هواره نه سي چنانچه صدف دماهي پريوه قطره باندي بسته نه سي دُريکتانه ځني راوزي . نولازمه داده چه سترګي دحرص ځـه دمال ولورته دلايزال راواړه وي اوقناعت دځپل خان پيشه وګرزه وي اوصدف دزړه داغياروځخه خالي کړي اودالله پرمحبت ني قلف کړي چه صندوق دولرداتودمعارفو الهيه وو وګرزي ۱۲ ابوالحفاظ : مولوي صالح محمد ارغستاني .

دالله يادئـي وزړه تـه نـه رالويـږي[1] | په داړک زړه کـښي دوهـم کلـه ځايـږي
اوږد امل لنډئي اجل وربـاندي راسـي | هم داينه هم دآنه ئي وباســــــــي
ياجوجي فوج دحرص هله بـه ماتيږي | چه لښکر دقـــناعت مي راپاســـيږي
داباغي فوج ته شکست ورکړي باداره | داصبـري فوج ته نصرت ورکړي بـاداره
قـــناعت وصبــــرخوي دانبـــياوو | دالله دنـــــــازه ولواوليـــــــــاوو
قناعت دي مونصيب کړي رب مدامه | پاک الله دي موکړي خلاص دحرص ددامه
آمين واياسـت طالبـانولوي علت دي | دادحـــــرص لومه هرګوره لوي ذلت دي

## هرکرا جامه ز عشقي چاک شد[2] | اوز حرص وعيب کلي پاک شد

اوس علاج دحــــــرص وماوتاته بنايي | مولانايه راته بنه يي داســـــي وايي
چاچه واغوســـته جامه دعشـــق اي ياره | دکلي عيبوبــه دی ســـي بـــرکناره
عشــــــق دجلب دفضائلودريعه ده | هم دســـلب درزائلووســــيطه ده
تخلي وتحــــــلي دواړه په ده دي | هم فناووهم بقـــــــاواړه په ده دي
عشـــق کفيل دی دکلي عيبـــودوره کي | هم به حرص هم به غيره وهي دمځکي
په تخصيص کښي دحرص دانکته فهميږي | چه اقبــــح دقبائحوشـــميرل کيږي
ځکــــه دی مانــــع دډيروفضائلـــو | هم سبــــــــب دی داکثره رزائلو
خلص حـــاصل چي ســـي وجودحقــاني | نوبــه ځيري ســـي وجودنفســـاني
حـــرص ځاي نه لري په دارنګه وجودکښي | نه ځايږي هم په دارنګه موجودکښي

(۱) نوهرمؤمن مسلمان بايدبيدارسي اوورحرص ته دمال اومحبت ته ددنياپه خپل وجودکښي ځاي ورنه کړي اوداپه نامه دراس کل خطيئة وپيژني ځکه دامحبت دمال ودنيادی چه سړی دالله دياده غافل ګرزه وي دامحبت دمال ودنيادي چه سړي مانع دزکوة ګرزه وي دامحبت دمال ودنيادی چه سړي تارک دحج ګرزه وي دامحبت دمال ودنيادي چه سړي قاطع دصلة رحمي ګرزه وي دامحبت دمال ودنيادي چه په سړي دروغ رايي دامحبت دمال ودنيادي چه سړي رباواوفاسدي معاملي احـدوغيبت وعداوت کوي دامحبت دمال ودنيادي چه به مخالفت دوعدي کوي هم دارنګه نورلوي لوي ګناهونه چه دمحبته دمال ودنيا سرچشمه اخلي ۱۲

(۲) ځرنګه چه مولنا قدس سره په سابق بيت کښي بيان دحرص رانه وکړي لوس بيان ددفع وعلاج دحرص راته کوي نوډيدي خاطرسابق ولاحق سره مربوط سوه راغلو ومعني ته دبيت هغه داهرچاړه چه جامه دعشق چاک سوه يعني په هرچاچه جامه دعشق واغوستل سوه نودتولوعيبونوپاک سوځکه عشق الهي د رزائلومحو ، کيدونکي دی لوس داخبره بايدزده کړوچه طريقه دسلوک دوه قسمه ده لول داچه سالک بايدلولاً درزائلو لونواقصوڅخه پاک سي چه مستعددمعرفت الهي وګرزي ولپس دي معرفت الهي لوعشق رباني ورته حاصل سي بعضولولياؤ کرامولومرشدانوعظامو داطريقه په تکميل کښي دطالبانولوسالکانومناسب ګڼلي ده ځکه نودوي وايي تخلية مقدمه پرتحليه ده دوهم داچه سالک اول بايد عشق حاصل کړي دحصوله دعشق به تولو رزائل ونواقص خودبه خوده زائل سي بعضومکملانوداطريقه په تکميل کښي پسنديده اوخوبنه ګڼلي ده نودوي سالک صادق اول ومنزله ته دعشق رسوي خوزموږ مولنا قدس سره الاقدس دواړه طريقي موږ وتاسي ته بيان کړي اوله په دي قول ، بندبګسل ترآخره ددروبيتودوهمه په دي قول هرکراجامه الخ ، خوودیته بايدموږ وتاسي خيرسوچه زموږ وستاسي دمولنا قدس الله سره الاقدس دطبعي شريفي سره دوهمه طريقه موافقه ده ځکه ئي په بيان کښي مبالغه اختيارکړه لکه موږ وتاسي چه په آينده بيتوکښي ګوروااووينووالسلام ۱۲

ابوالحفاظ : مولوي صالح محمد ارغستاني .

## شاد باش ای عشق خوش سودای ما (۱) — ای طبیب جمله علتهای ما

مولْناکوي خطاب په خپل لسانه — په تنزيل وبه تشبيه کوي بيانه
وايي تل دي خوشحالي تاته عشقه — هميشه دي سوکالي وي تاته عشقه
خوبن خوشحاله دي وي عشق مطلوب زمادي — دهمه دردودواووطبيب زمادي
عشق بيشکه زمامعلجي حقاني دی — سرطبيب مي دمرضي روحاني دی
ماوتاعشق پيژندلی په دي حاله — چه ني مخ سته نه ئي قلب نه ئي اقباله
منادي ده دتنزيل په وجهه وروره — دسماودجبال په سترگي گوره
دحکمي منادي درس دی تاويلي — په باربار دي داپه نحوه کبني ليدلی
چه عشق بولمه طبب دغه تشبيه ده — دبيان فن هم راکړي داتنبيه ده
هرطالب دخپل مطلوب خوشحالي غواړي — هرقاصددخپل مقصودسوکالي غواړي
مولْناخوبه دعشقه برخه يوسي — ماواروبه ددنياځه ميوه يوسي
ياالله ته مي ددي حاله پيرون کړي — ستاپه عشق مي منوره اندرون کړي

## ای دوای نخوت وناموس ما (۲) — ای تو افلاطون وجالینوس ما

داخطاب دمولْنادئ عشق ته وروره — په تشبيه کبني افلاطون جالينوس گوره
يونکته ده په تشبيه کبني اي سروره — ورته ځيرسه ترمعني وروسته دلبره
ته طبيب دزړه ايني اوسرورزمائي — افلاطون وجالينوس دخوږ وزمائي
دهرعيب دهرعلت دوامي ته يي — دهردرد دهرمرض شفامي ته يي
مريض زړه چي وي په تاباندي جوړيږي — نړيدلي کورپه تاباندي جگيږي

(۱) وقت چه عشق په سابق بيت کبني دکلي عيبودصيقل په نامه يادسونوېدي بيت کبني اظهاردخوشحالي اومبارکی ددغه حالت کوي دايه تعلق وارتباط ، راغلومعني دبيت هغه داچه اوسه په سبب دمشاهدي دجمال الهي اي عشقه ته بنه مطلوب زمايي هم ته طبيب دټولوامراضوزمايي نواطلاق دطبيب پرعشق باندي دتشبيه په نگاه دي داسي چه مولْناقدس سره تشبيه دعشق دطبيبه سره کړي ده وجه دشبه په مابين کبني ددوي ازاله دامراضو ده لکه طبيب چه ازاله دامراضوجسمانيه ووکوي هکذاعشق ازاله دامراضوروحانيه ووکوي ، همدارنگه نداوخطاب وعشق ته دتنزيل دنگاه څخه ده داسي چه مولْناقدس سره عشق نازل کړي پرمنزله دذي روحه وذي اقباله دشرف په خاطرنوندااوخطاب وده ته دبلبه دندااوخطاب دسماوجبال ته دي چه دلنوپه نامه دنداحکمي بلابيري تفصيل ئي په علم نحوکبني گوره ۱۲

(۲) وقت چه په سابق بيت کبني دلبيان وسو چه عشق دټولوامراضو باطنه وطبيب دی په دي بيت کبني هم مولْناقدس سره ددغي مدعي تقرير کوي لکن دلته ني تخصيص ددوومرضو وکړي په دي خاطرچه دوي لئدواقبح داخلاقو ذميمه ودي راغلومعني ته دبيت نوراپوچه نخوت په فتحه دنون په سکون دخاء معجمه نازوتکبر وخان لويي ومستي وناموس عزت وجاه طلبي دخلقوڅخه لود پټ مکروحيله په معني هم راغلي لوبه حمل کبني دافلاطون وجالينوس پرعشق باندي تشبيه بليغه ده وجهه دتخصيص ددوي دولړوبه دي خاطر ده چه افلاطون خاتمه دحکما. اشراقيون واجالينوس زبدة دحکماومشائيون و بل داچه دوي په طبابت جسماني کبني نهايتي شهرت درلودی. اوهم دوي دواړه په ازاله کبني دامراضوصوريه ؤ حاذق طبيبان وه همدارنگه عشق په ازاله کبني دامراضومعنويه حاذق طبيب وزبده منشادکمال دي نومولْناقدس سره په بيت داافاده کړه چه امراضي قبيحه اوخصال ذميمه بيله عشقه اندراس ؤ زړوالي اوورکيدل نه پيداکوي نوعشق مقدم ترتخلي دی. داخوطريقه مرضيه دمولْناوه لکه تاچه مخکي وپيژندل ۱۲

ابو الحفاظ : مولوي صالح محمد ارغستاني .

افلاطون وجالينوس كه طبيبـــــان وه — دخپل وقــت په طبابـت كنبي ماهران وه
خوددوي طب پرظاهر بـدن مقـصوروو — هم حكمت ئي پراين آن باندي محصوروو
دبـاطن مرض ئي نه ووتشـخيص كړي — ني ددي مرض علاج ووتخصيص كړي
بـل بـه خپله مريضان وه سربسـره — په دي بـاب كښي نه درلودې څه خبـره
واقعي طبيب چه دې يكتنهاعشق دې — روحاني طبيب چه دې يكتنهاعشق دې
عشق زماداروودرمان دې بل څوک نه دې — عشق زمادزړه ارمان دې بل څوک نه دې
افلاطون وجالينوس په طب مشـهوردي (۱) — لدي وجهي په تشبيه بـليغ مذكوردي
ورنه فرق دطباب‍ـــــــت داين وآنه — مخفي نه دې پرناظرددي بــــــــيانه

جسم خاک از عشق بر افلاک شد (۲) — کوه در رقص آمد و چالاک شد

مولّنابه اوس دعشـق قدربـيان كړي — په دليل سره بـه دامقـصدروښان كړي
پاک الله چه دادعشق نوررا خرگند كړي — دعشاقو دسينوســــــــــــري پيوند كړي
عشق بـدن پراسمانوبـاندي بـالاكى — عشـق دروندغرپه زلزله رقـص والاكى
زموږ رســـول الله بالاســولامكان ته — هم عيسي عليه السلام ولاړي اسمان ته
نو اسمان قابل دخرق غيرمسدوددې — دحــكيم قــول نوسراســـرمردوددې
چه دې وايي فلک هيڅ نه دي قابـــله — نه وخرق نه التيام ته دې قـــــــــائله
چه دطورسره دعشـق نورسوپيوسته — لامحــال په تجلي ســره سومســته
داشــــــراب چه په انده كړه زماووره — خودبــه رقــصوچالاكي كوي ضروره
دغه دري خبــري واړه منصوصي دي — ماوتاته ښودل ســوي چه شـــرعي دي

(۱) غرض زموږ لدي بيتونوڅخه دفعه دهغه سوال ده چه په دي مقام كښي وارديږي هغه داچه تشبيه بليغه خوهغه ته ويل كيږي چه مشبه به پرمشبه باندي حمل سوي وي اواتناسي دتشبيه راغلي وي نوبه مبالغه حاصله سي چه مقصودپه دغه تشبيه كښي ده داخوهغه وقت راځي چه وجه دشبهي په مشبه به كښي اقوي واتمه وي ترمشبه اوحال داچه دلته خوطبابت چه وجه دشبهي ده په عشق كښي چه مشبه دي اقوي واتمه ده ترداغه طبابت چه په افلاطون ۇ جالينوس كښي دې چه مشبه به دې نوڅنگه تشبيه بليغه صحيح سي حاصل ددفعي دادي چه افلاطون ۇ جالينوس دشهرت په لحاظ په طبابت كښي داسي برولو گوياكي وجه دشبهي په دوي كښي اقـوي واتمه ده نه دواقعيت په منظور ۱۲

(۲) دسابق بيت مضمون داوو چه عشـــق موجب دتخلي درزائلودي ددي بـيت مضمون دادې چه عشـق موجب دتحـلي په فضائلـودې هـم دارنگه په اول بـيت كښي بـيان داثر دعشـق په دي بـيت كښي بيان دقـدر دعشـق نوتعلق وارتـباط قـائم سـو. راغلومعني ته دبــيت هغه داچه د خاوروجوړسـوي بـدن دعشـق اومحبـت الهي په واسطه پراسمانوبـالا سولكه نبيناعليه الصلوة والسـلام همدارنگه كوه طورپه عشـق موسـوي عليه الصلوة والســلام په رقـــص وجدجذب بـاندي راغلي خوقبـول دتجلي دعشـــق الهي په محـل پوري لره لري بيدلره لوسه له دي شرعي مضمونـه څخـه هغـه خبره دحكما، ودحكمت طبـــعي چه دوي وايي چه فلک قابل دخرق والتيام نه دې دخاوروسره برابره سوه اوس بايدداخبره زده كړوچه پدي مقام كښي يوسوال وارديږي هغه داچه غره لره دطورخوروح نه وو نوتن لره بي جانه څنگه رقص وحركت پيدا سوحاصل دجواب به داوي چه كوم وقت چه تجلي دعشق الهي موسوي عليه السـلام پرطورباندي نازله سوه نودغه عشق روح دطوروگرزيده لهٰذانودغه غرپه رقص وحركت باندي سولكه په دغه خبره چه مولّناقدس سره په آينده بيت كښي تصريح كړي ۱۲

ابو الحفاظ : مولوي صالح محمد ارغـــتاني .

(۱) دابيت جواب دهغه سوال دی چه ناشي دبيت سابقه څخه رو تقرير دسوال وجواب دوارو تاپه سابقه حاشيه کښي وپيژندي نوپه دي خاطر ربط وتعلق په مابين کښي دسابق و دلاحق حاصل سو . راغلو معني ته دبيت هغه داچه عشق روح دطورسواي عاشقه څکه چه الف دعاشقا په آخر کښي دندا دپاره دی وقت چه عشق روح دطورو گرزيدي نو طوردي عشقي روح په طفيل مست اودسکر په حالت کښي سو څو توته توته سو اسيدنا موسيٰ عليه الصلوة والسلام دسطوي څخه دتجلي دعشق الهي پر مخکه ولويدی په داسي حال کښي چه بيهوښه وسکران دلذت څخه دعشق وو الله فرمائي (( فلماتجلي ربه للجبل جعله دکا وخر موسيٰ صعقاً )) ۱۲

| | |
|---|---|
| عشق جان طور آمد عاشقا[1] | طور مست وخر موسی صعقا |
| تجلي دعشـــــق پر طور چه نازليږي | طور توته توته کليم پر مځکه لويږي |
| چه موسي عليه السلام بيهوښه کيږي | طور به کله پر خپل ځاي باندي دريږي |
| عشق هم دارنگه شراب دي اي سروره | مستقر به ئي خودمست وي سربسره |
| چه جبل مدکوک کوي شغله دعشق ده | چه نبي مصعوق کوي شغله دعشق ده |
| عشق به روح بولو دطوراي پرماگرانه | نومشهور سوال به واردنه سي زماجانه |
| هغه داچه طوربي روحه دی بي جانه | نو په رقـــص څنگه راغلي دازمانه |
| حـــرکت ومســـتي دواړه يو خاصه ده | دژونـــدي دپاره دغــه نښانـــه ده |
| با لب دمساز خود گر جفتمي[2] | همچو نی من گفتنيها گفتمي |
| مولناوايي جواب دداســـي ســـواله | چه وموږته کړه بـيان اسراراحـواله |
| واي وماته چي په سرويل خطاب وي | وهغوته بـه نوزماداسـي جواب وي |
| که هرچيري زه دسِر محـــرم پيدا کړم | وهغه ته بــه دنل په شـــان ويناکړم |
| که مجلس ته دامزلوور ســـــــيږم | لکه نل په ښو نغموبـــــــه وږغيږم |
| مگر هغه سائل چه عاشـــق نه وي | وهغه ته سرويل بــــــه لائق نه وي |
| بـــتږ کله وبـــل چاته وايي رازه | پټه خوله وي په سراوركي وي گدازه |
| دحـــــکمت ويل هغه چاته پکاروي | چه په فهم وتفهم وي بـــرخوردار وي |
| علمادبـــــلاغت ايږدي دســــتوره | رعايت دمقـــام بـــالکل دی ضروره |

(۲) ((دارتبـــاط وجه)) وقت چه سلطان العاشقين برهان الواصلين حضرت مولٰنا قدس الله سره الاقدس په لوړه درجه کښي د کمال ووصال دکثرت پردي نـي تولـه څيرلـي وي لوبه دريـاب کـښي دوحـدت غوټه سـوي وو اودانـسي زړه غوښتـه چه سلاک دطريقت لوطلاب دحقيقـت دحـضيضه د درکاتو دنلـــوت ولوج نـه دملکوت وخيژي وي نوبه ودوي نه دلـــــرلرو څخه دعشـــق هغه څه بـــيان کړه چه ماوتلولور يـــدل دپاره ددي چه دوي په شـــوق : شرلبـودولرداتو ســي خوعلم دمولٰناقـدس ســـره پدي بـــاندي ووچه ديرسلاک دطريقـت اهل ددلـسي اسرارودبيان نه وي ولي حـــــال دپخته خو دخامـــه نـــه پيدا کيـــږي نوئي دبلابدلســـرلروويلو څخه معتذراً دلـــــي رويل بـــالـب دمـــسازالخ لوس ثورزه گمان نـــه کـــوم چه نه دي په وجه دارتبـــاط وتعلق دسابق ودلاحق نه ئي پوه سوي راغلو ومعني ته دبيت هغه داچه که زه دخپل هم لب اوموافق سره يوځاي سوي وايي اودمحرم سره داسراراواودمفارق سره داغيارو . مرافق سوي واي نوبه مي تاسي ته لکه نل ديري خوږي وپناوي کړي واي اوديرجواهر به مي دخزانو څخه دسِر تاسي ته ښکاره کړي واي مگر خوچه ټول مستمعين په يوه رنگ رنگيدلي نه وي مجال داظهار دنفحاتو ورته نسته نه گوروقول ته دعلماؤ کراموچه وايي تاسي مه ورکوي حکمت وغير اهل ته ولي دادحکمت سره ظلم دی اومه منعه کوي حکمت داهل څخه ولي داهل سره ظلم دی ۱۲

ابو الحفاظ : مولوي صالح محمد ارغستاني .

| بینوا شد گرچه دارد صد نوا | هر که[۱] او از همزبانی شد جدا |
|---|---|
| دسابــــق دپاره موږ ته رهنمادی | په دي دوبـــــیتو تمثیل دمولنادی |
| گنگ بي بولودی دوي شیرین ی بانه | همزبـــان چه ســي جلا دهمزبـــانه |
| دغه شان دی دبلیغ بلید عاطل ته | همدارنگه عاشق گنگ دی وغافل ته |
| وغافلو زړوتـــه نــه راځي پکـــاره | چه عاشق بیانه وي دعشــق اسراره |
| وخاوند ته دعشــق نه دي بهره وري | چه غافل کړي ددنیادسنج خبـري |
| وبـلید ته ئي فائده نستــه بـالکله | چه بـلیغ نکاتي راوړي کل بـه کله |
| وبـــلیغ ته نوڅه شـــئ مائده کړي | دبلید غسـیل کلام په څه فائده کړي |
| چه تفیهـم ؤ تفهـم نـه ځلـه کیـږي | نو هر یو گنگي په دي خاطر نو میږي |
| نو ته مکوه اصرار زما پر اســـــراره | گنگ بـه څه واوري دگنگ اي سرداره |
| مه څه غواړه نه څه وایمه زماگرانه | نوبـه داســي فیصله وکړو زماجانه |
| دهوښیار په نیزنو دغه قـضاوت دی | دپوهـان په نیزنو دغـه عدالـت دی |
| نشنوی زان پس ز بلبل سرگذشت | چونکه[۲] گل رفت و گلستان در گذشت |
| بــــیانو کله پر کړیږي بلبــــلانه | چه گل ختم ســي خزان گلســتانه |
| نوبـه څنگه ســخن گوي ترؤتازه وي | همدارنگه چه سامع غافل خازه وي |
| گین وهل پکښي باطل دی عبث کاره | چه فراخي دمیدان نـه وي زمایاره |
| چه بـوراپرواز کوي نو گلشــن غواړي | چه بلبــل اواز کوي نو چمن غواړي |
| چه نغمي ؤ اســــــراروایي دلاهو ته | همدارنگه دی بـــاغوان دملکو ته |

(۱) دابیت دسابق بیت دپاره تمثیل دي یعني لکه یو سړي چه دخپل همزبانه څخه جلاسي اودمخالفي ژبي په ډله کښي واقع سي لودده دویلو څوک استفاده نسي کولاي نوگنگي بي بولوکه څه هم دی سل نغمي اودیره خوش گفتاري لري همدارنگه مولناقدس سره وایي زه چه دخپل دمساز اومحرم اومسلک شریکه څخه جلاسم اودخامو په ډله ورداخل سم چه دوي هیڅ درک داسرارونه سي کولاي نوبه زه دویلو پس پاته یم دگنگي په شان به پټه خوله یم که څه زماسره هم خزانه داسراروي ، خلاصه غرض دمولناقدس سره داچه صاحب داسرارو که څه په سلونغمو بیان داسرارو کولاي سي خو په ډله کښي دخامو سلاکو گنگي دی فصاحت ئي فائده نه لري ، څکه چه وږي په لذت دطعام پوهیږي تږي په لذت داوبو بس ، نوانوم دیو مقام دمقاماتو سره دموسیقۍ دی .

(۲) تعلق ز لرتباط دسابق بیت سره په دي خاطر دی چه دابیت تمثیل ثاني دی لکه سابق چه تمثیل اول وو ، راغلو معني دبیت هغه داچه کوم وقت چه گل ختم اوگلستان خزان سي بیابه نو دبلبل څخه هغه قصه وریزونه چه د ده په وقت دبهار کوله ولنه وري همدارنگه باشندگانو په باغونو کښي دملکوت چه نغمي داسرارو دلاهوت وغوي دادرک کړي چه هغه څوک چه په زړه کښي مرض وي قـلیل الاذعانه تبـیع الفعاله داهل ناسوت وي زموږ داسرارو نغمي نه اوري نه ئي په زړه قبلوي نو ودوي ته دبیان داسرارو څه فائده نسته نو لهذا دغه بلبل داسرارو دلاهوت ودوي ته دغه سرگذشت نه بیانه وي همدارنگه هغه مسترشد چه په ده کښي قصوروي اوادراک داسرارو دکلماتو دکملو نسي کولاي نو ونغمه ویونکي ته داسرارو دلاهوت پرځاي داسرارو دویلو جبیره دقصور پکارده همدارنگه هغه مسترشد حاذق فهیم چه ده لره کمال سلامتي دعوارضو بشري وو څخه نه وي راغلي لکه حرص جاه طلب الاموال مثلانو دغه باغوان ته پکارده چه پرځاي داسرارو ویلو ددغه امراضو بشریه وو علاج په شرابو دمحبت اوپه محاسنو دمعرفت وکړي چه دامراض خلاص اودرجي ته دکمال ورسیږي نو خلص داچه اواز دبلبل گل غواړي ویل دسر قابل ۱۲ ابو الحفاظ : مولوي صالح محمد ارغستاني .

(۱) پس تر بيانه د تمثيل ئي شروع وکړه په بيان کښي د بعض هغه څه چه ومحرم او امزولو ته ويل کيږي د اسرار و څخه نو ئي وويل سر پنهان است الخ . هم دغه وجه د تعلق وارتباط په مابين کښي د سابق ود لاحق ده پس لدي بايد دا خبره راپياد کړو چه مذهب د صوفيته کرامو چه يو د هغو څخه مولنا قدس سره هم دي . دادی چه موجود حقيقي حق سبحانه و تعالي دي ماوراشيو نات و تعينات وپردي ومراياد حق سبحانه و تعالي دي او دغه ماورا . لره وجود نسته وجود د دوي وجود د حق سبحانه و تعالي دي چه د دغه مضمونه صوفيه کرام تعبير په وحدة الوجود لوپه همه اوست باندي کوي عارف خسرو (رحمه الله) وايي هرچه آيد در نظر غير تو نيست: يا تو ئي يا بوي تو يا تو: يعني څه چه موږ ګورو يلو نو هغه يا ستا ذات يا ستا صفات يا ستا افعال دي نو بل څه موجود نسته د دي مهمي مسئلي تفصيل وتوجيه موږ وتلـي په شرحه وبيان سابق کښي وپيژنده خو اوس مو د دي دو بيتو نو معني د پاره داخه لږ مضمون ذکر کړي نو حاصل د معني دا چه حق سبحانه وتعالي يو سر اظهار دي لکن پرژبه د انسان کامل لکه مولنا قدس سره مثلاً چه دغه انسان کامل يو تعين لو پرده ده لو دغه اظهارئي پرپرژبه د انسان کامل هم په ټيټ اواز هم په جګ اواز کړي ولي حق سبحانه د ااظهار پر ژبه د انسان کامل وکړي هغه پدي خاطر چه که چيري حق سبحانه تعالي دغه سر خپله بيله دغه تعينه وپردي اظهار کړي نو جهان به درهم برهم سي هيڅ ممکن به وجود د بيلو نه لري ځکه چه ممکنات عبارت د تعيناتو خاصه ومظاهر و پر وڅخه دي وقت چه تعينات د واقع څخه پورته سي او ذات د بلا تعين ورناکوي ممکن به کله پاته نو خود به جهان برهم ودرهم سي او قيامت کبري به برپا به سي . هغه سر نو توحيد او وحدة الوجود و همه اوست دي ، يا خلاصه معني د بيت دا ده چه حق سبحانه سر د انسان کامل پر ژبه بيانه او وايي چه زه خپله بيان کړم جهان به خراب سي پدي خاطر چه ويل د هر ويونکي پقدر د حال د ويونکي دي په اثر کښي دا خو يقين ده چه په مانحن فيه حال ديوه ګوينده تر بل په مراتبو بالا تر لو زياده تر دي نو اثر د زيادت ئي خرابي د جهان ګرزيداي سي نور دي پر خداي سپارم ۱۲

| | |
|---|---|
| نه ئي اوري بد فعاله د ناسوته | چه په زړه کښي وي مرض وي تش کالبوته |
| غوږئي کوڼ سترګي ړندي ژبه ئي ګنګه | پردي وچ باغ سر ګذشت د بلبل څنګه |
| سر پنهان است اندر زير و بم (۱) | فاش اگر گويم جهان برهم زنم |
| حق پرژبه د کامل انسان بيان کړي | ماوتاته ښه تعليم په داسي شان کړي |
| زماپټ سر په زيروبم تل بيانيږي | د کامل انسان پرژبه تل چليږي |
| مراد له سره څخه دا مضمون مراديږي | چه پرژبه دفاني في الله ياديږي |
| الله يو په داسي شان چه ممکنات | همه واړه دي پردي تعينات |
| چه موجود دی هغه حق دی بل څوک نه دی | حقيقي ذات مطلق دي بل څوک نه دي |
| څه چه وينو ماوتا اي زما دوسته | دفاني پر مذهب ټوله همه اوسته |
| مراد د زيره ټيټ اواز د عاشقانو | مراد د بم جګ اواز د کاملانو |
| هم په سر هم په جهار د دوي دعوت وي | نه ستړيانه ستوماني نه ئي غفلت وي |
| واي د سر هنداره ټوله ممکنات دي | برملا په دي ګويا ټول کائنات دي |
| خلص د حق سر د پردي پر مخ معلوميږي | کي ښکاره واي عالم به نو ختيږي |
| که وتاته مغلق سي دا مضمونه | په کتو د حاشيي به سي ممنونه |
| آنچه مي ګويد اندرين دو باب (۲) | ګر بګويم من جهان ګردد خراب |
| اوس چه نل کوي بيان په دي دوه بابه | کي زه ووايم جهان به سي خرابه |
| که نل نه سي ترجمان په دي باره کي | بلکه حق په خپله دغه سر ښکاره کي |
| نه به کون نه به مکان نه به مکين وي | نه به دا ښکلي اسمان نه به زمين وي |
| که د باندي تر پردي د حق دعوت سي | سمدستي به نو هغه ګړی قيامت سي |

(۲) مضمون د دي بيت مضمون د لول دي غير لدي چه په لول کښي تصريح په سرسوي ده په دي کښي تصريح په انسان کامل چه مراد دني څخه دی دا يه لرتباط خلاصه معني ئي دا ده چه هغه څه چه انسان کامل ئي پدي بابه کښي د زيروبم وايي لو لزد حق دي کي حق بي دغه پردي ووايي جهان به خراب سي ۱۲

ولي سراسر پردي تول ممکناته ‖ چه داتولي سي نوڅه شئ بسي فاته

مراد دنله سه کامل انسان يادېږي ‖ ددوه بابه څخه زيروبم مراديږي

که پدي مضمون کښي تاته گم نامي سي ‖ په حاشيه کښي به دي ورکه پريشاني سي

## جملہ معشوق است عاشق پردهٔ (۱) ‖ زنده معشوق است عاشق مردهٔ

معشوق ذاتي حقيقي هميش زنده دی ‖ عاشق هسي يوپرده اصلي مرده دی

په ظاهرچه عاشق گورويو منظردی ‖ حقيقت کښي دمعشوق دنورمظهردی

نوظاهره يوپرده اصلي فاني دی ‖ يومعشوق دی تل تله چه باقي دی

عاشق څه بلکه داتوله ممکناته ‖ مظاهردي ديوه معشوق دذاته

څه چه وينو تول اظلال وشيونات دي ‖ همه واړه دمعشوق تعينات دي

مظاهرومراياد حق جليل دي ‖ پروجوب وو پرتوحيدباندي دليل دي

دامذاهب دصوفيه وصفهاوٌ ‖ مقابل دشريعت دعلماوٌ

لکن تاخوپخوانی حاشيه کتلي ‖ دانزاع دي په لفظي ده پيژندلي

نوتشويش به دي سي پورته سربسره ‖ توهم به دي سي رفعه دتکره

## چون نباشد عشق را پروای او (۲) ‖ او چون مرغی ماند بی پروای او

دامعشوق چه خپل عاشق نن لاوبال کړي ‖ افسوزکله به مرغه بي پره بال کړي

چه مرغه البوتل کړي نووزغواړي ‖ خپل زالی ته چي ورځي بال وپرغواړي

ومقصودته رسيدل دمرغه ياره ‖ بي وزره هيڅ ممکن نه دی سرداره

نووزرئي وسيله ده دوصوله ‖ ومقصودتي ذريعه ده دحصوله

(۱) وقت چه مولناقدس سره په سابق بيت کښي داراته وښوده چه تولہ موجودات تعينات وېږدي دي ، موجودحقيقي يوذات حق جل جلاله دي خودلسِرحق جل جلاله پرڅه دکامل دانسان په زيروبم موږ وتلسي ته بيان کړی څکه کي پخپله راته بيانه وي جهان به خراب سي نوپدي بيت کښي تقريردغه حکم سابق اوتتميم ددغه کلام سابق راته کوي نووايي جمله معشوق است الخ ، نوتعلق وارتباط په مابين کښي دسابق ودلاحق حاصل سو ، راغلومعني ته دبيت هغه داچه مراددمعشوقه حق جل مجده دي نو معني داسوه چه تولہ موجودات عين حق عزمجده دي پدي معني چه موجودحقيقي فقط وفقط حق جل مجده دی موجودات مظاهروېږدي دظهوردذات حق دي وجودحقيقي و متاصل دوي لره نسته بلکه فاني وبنيني في ذاتهادي باقي فقط وفقط ذات حق دي نومعني دهمه اوست چه صوفيه کرام قول په کوي همه ازوست ده نو اتحاددممکن وواجب همدارنگه نورمغلدچه پرظاهرعبارا تودصوفيه کراموولرديږي مندفع سوه لکه دامضمون چه تازموږ څخه په سابقه حاشيه کښي په مفصل دول اوريدلي دی درپيادئي کړه لوس دلخبره زده کړه چه تخصيص دعاشق په پرده وولي پدي خاطردچه سفيرومبين ددغه سردی يلپدي خاطرچه دی اظهردمظاهرودي په دي معني چه ظهوردحق په ده کښي اظهرترنوروومظاهرو لکه داچي پرماهرخفي نه ده والسلام ۱۲

(۲) وقت چه په سابق بيت کښي عاشق دپردي ومحتاج په نامه وپيژندل سولومعشوق دغني ومحتاج اليه په صفت وپيژندل سو په دي بيت کښي مولناقدس سره دتوجه وعدم توجه دمعشوق وغني وعاشق ومحتاج ته بيانه وي نووايي ، چون نباشد الخ ، دايه وجه دتعلق وارتباط سوه په لنډه توگه ويلاي سوچه دابيت تائيددسابق دی راغلومعني هغه داچه عشق په معني دمعشوق دي وپرواي مجموع المرکب په معني دتوجه وضميراوراجع دی وعاشق وسالک ته ولي په مصراع ثاني کښي اداة نفي وپرېه په معني دوزر ، وواي اداة تضجع وضميراو راجع وعاشق وسالک ته خلاصه معني داکه چيري معشوق وعاشق اوسالک ته توجه ونکړي اودترقی اراده ورته ونکړي وصول به ومعشوق ته حاصل نکړي لکه مرغه چه وخپلي زالجدته بي وزاووصول نه سي کولاي نوافسوزچه دغه عاشق وسالک دقيده بشريته خلاص نه سواوومرتبي ته دوصول ونه رسيدی ۱۲

(١) دابيت لولاحق متصل په ده پوري دوله، تفسير ددوو سابقو بيتو دي هم دا يه وجه دتعلق وارتباط ده راغلو معني ته دبيت هغه داچه ملبه څه ډول هوش وادراک په خپل فناوبقادرلوداي که نوردتوحيد دمعشوق زماسره ملګري نه واي هيڅکله به مې نه درلوداي يعني که چيري مشاهده دحق جل مجده زماپه وجود کښي نه واي زه به ددفناڅخه ووجود وبقاته نه واي راغلي نوبه هوش په پيش وپس يعني په فناوبقاله کومي خواواي مقصد داچه نوردتوحيد الهي په تولو کائناتو کښي ساري اومشهود دي اوهمه کائنات مظاهرومرايا دغه نوردي لوحکمت دحق جل مجده په وجود کښي ددغه کائناتو هم اظهار ددغه نورو سِردي، ((کنت کنزاً مخفياً فخلقت الخلق لاعرف)) نوکه چيري مشاهده دحق په دغه کثرت کښي نه ولي نوبه دغه کائنات زماسره سره دفناڅخه بقاته نه ولي راغلي لودعدمه به وجود ته نه ولي راوتلي لوديهوشي څخه به وهوش ته نه ولي رسيدلي وقت چه زه وساتر کائنات دمشاهدي دحق مظهروو لودغه مشاهده زموږ همنفسه لوملګري وه نوزه وساتر کائنات دعدمه روجودته دفناڅخه وبقاته ديهوشي وهوش ته راغلونودي بيت مضمون دا دي چه عاشق همدارنګه تول کائنات مظاهروپردي دي موجود حقيقي فقط وفقط معشوق حق دي لودائو معلومه ده چه که معشوق حق دعاشق حفاظت ونه کړي عاشق وپرده به محفوظه لومطلوب ته وصل نه سي نودابيت دسابقو دوو بيتو دپاره تفسير سونودي پر خداي پاک سپارم والسلام ١٢

| | |
|---|---|
| که وزردي مرغه څخه مسلوب سي | افسوز کله به واصل دخپل مطلوب سي |
| همدارنګه عاشق بوله مرغه واره | هم وزرئي توجه دخپل بادارة |
| هم په دغه ذريعه به دي کامل سي | لامحاله به معشوق خپل ته واصل سي |
| که نعوذبالله داتوجه نه وي | بي وزره به نوکله البوته وي |
| دمعشوق په توجه واصل واصل دی | دمحبوب په تجلو کامل کامل دي |
| که سي قطعه توجه دحق في الحاله | نه وجودنه به کمال وي نه وصاله |
| بي پرواکه سي معشوق سبحان له ما | لاابالي ته به څه توان وي زما |
| وه لي زه ممکن محتاج مخلوق نوميږم | نوپرخپل سربه په څه باندي پوهيږم |
| من چگونه هوش دارم پيش وپس (١) | چون نباشد نوريارم همنفس (٢) |
| زه به څرنګه سانبال کړم پيش وپسه | چه ياري ديارمي نه وي همنفسه |
| زماتدبيروتشکيل نه راځي په کاره | چه ياري مي دمعشوق نه وي همکاره |
| دتدبيرو حُراکت که لوي کاروان دی | وتقدير ته دالله ستړي ستومان دی |
| هرسالک بايدلا ريوسي ومطلوب ته | دنصرت په اميد اوسي ومحبوب ته |
| داسطحي معني دي وپيژندل وروره | اوس اصلي معني ته غوږسه راته ګوره |
| که دانوردمعشوق نه واي ځليدلی | په وجودکښي زمانه واي چليدلی |
| که موجود هندا ره نه واي والله نه | دفنابه بقانه واي ماوتاته |
| که دحق مشاهده نه واي په ماکښي | دفنا سه به بقانه واي په ماکښي |
| که دازموږ کثرت دحق نه واي مرأته | نوبه څه خاطربه واي وجودوماته |

(٢) په بعض نسخوکښي دلسي راغلي چه نوريارم پيش وپس پرده نسخه نوقافيه دارم ويارم ده مابعدئي رديف دي که موږ وتاسي په دقت وګوروداولي نسخي صحت به راته ښکاره سي اوددومي نسخي په ضعف ورکاکت به اقراروکړو ١٢

ابو الحفاظ : مولوي صالح محمد الارغستاني .

زماوجوددي دپاره سو اظهره — چه دپوتي خزاني سمه مظهره
چه معشوق سي راظاهرزماپه وجودکښي — هم دارنگه سي باهرپه کل موجودکښي
که دانه واي نه به زه نه به جهان واي — که دانه واي نه به داکونومکان واي
نوبه څنگه واي زماهوش په پيش وپسه — چه ظهوردیارمي نه واي همنفسه
مراددپيشه سه فناسه پس ئي بقاده — همنفسه دملگري په معني ده

نوراواز يمن ويسر وتحت وفوق[1] — برسر وبرگردنم چون تاج وطوق

نوردعشق دی چارچاريرزماپربدنه — پرسرتاج اوښه حميل زماپرگردنه
نوردحق په تول جهاتوکښي موجوددی — هم په تولو کائناتوکښي مشهوددی
نوردحق زماپه اعضاووکښي ساري دی — هم په واړه موجوداتوکښي جاري دی
مخلوقات ټوله مرآت دحق جليل دي — ممکنات ټوله هنداره ودليل دي
ممکنات ټوله هنداره دالله دي — هم په دي حکمت دنيسته سه پيدادي
نوالله پاک ښکاره کيږي زموږ په ځان کښي — هم په يمن وتحت وفوق ټوله جهان کښي
که داسِرنه واي نه زه نه بي ځان واي — نه جهت نه به دامځکه واسمان واي
چه هنداره سوم نوزه نه يم مقصوده — بل مرئي دی په هنداره کښي مطلوبه
خدايه مه مي کړه ددي سِره غافله — شيرين عمرمي عبث مه کړي باطله
داشمه دصوفيانودمذهب ده — يونمونه داصفياوودمشرب ده
تاپخوالادی زده کړي دابيانه — گمان نه کوم چه اوس به يي حريانه

(۱) وقت چه مولّناقدس سره په سابق بيت کښي په موږ وتاسي داخبره وپيژندل چه نوردتوحيددحق جل مجده زموږ ملگري دي پدي معني چه موږ مظاهرويردي ددغه نوريو ، نواوس پدي بيت کښي دول واندازه ددغه ملگري راته بيانه وي يعني دغه ملگري په کامل اندازکښي ده نوفرمائي نوراوازيمن سِرالخ ، داوجه دتعلق وارتباط سوه راغلومعني ته دبيت هغه داچه نور دحق په تولوجهاتوکښي اوزماپه اعضاوکښي جاري دي مقصدداچه په تولوکائناتوکښي ساري وظاهرمشهوددي موږ لوس بايديوه شمه دهغي فنازده کړو چه هغه صوفيه کرام دفنائي علمي په نامه يادوي څکه چه موږ ته په هغه مقصدکښي چه موږ په کښي لگياوريکار راځي نوراپسوچه فنائي الله په اصطلاح کښي دصوفيه کرامو داده چه سالک غيرالله په مرتبه کښي دعلم دزړه څخه وباسي هيڅ التفات و لستحضاردغيردده سره نه وي پاته داقسره دومره رلسخه اومحکمه گرز يدلي وي چه دی دغير الله څخه دذهول په درشل کښي وي بدون الله دده فکروخيال ته بل شئ نه راځي داکيدلاي سي چه يوشي موجودواقعي وي بيادي هم ديوچافکر ته هيڅ نه راځي مثلاً زيدزمافکرته نه راځي که څه هم دي موجودپه واقع وخارج کښي وي نو لدي څخه دانه لازميږي چه زيددي نوپه واقع کښي معدوم وی خلص داچه اغياردفنائي دسترگو نظراندازه کثرت نه مشهود کوي خوبياهم بعض با لستعداده سالکان او دکامل لستعدادخاوندان دبعض احوالودتکميل دپاره يادنورودتکميل دپاره عودورجوع دنظر خپل وکائناتوته کوي هم دغه کثرت مشهودکوي لکن دغه کثرت مرآت دحق شميري اوحق په دغه کثرت کښي مشهودگني نوودغه کائناتومتکثره وته دوي دمراياووااومظاهروپه سترگوگوري وقت چه دازموږ وينا پرصحيفه دخاطرنوشته کړه نوتا دلازده کړه چه مولّناقدس سره په دي بيت اوپه سابقوبيتوکښي حال دمشهوديۀ دحق په مرآت دخلق اوکثرت بيانه وي اوديو بالستعداده سالک ومرشدپه ژبه راته رغيږي شکرالله سعيه ۱۲

ابوالحفاظ : مولوي صالح محمدالارغستاني .

| عشق خواهد کاین سخن بیرون بود (۱) | آئنه غماز نبود چون بود |
| --- | --- |
| معشوق غوښته چه خپل پټ سر کړي اظهاره | په هنداره کښي ښکاره کړي خپل اسراره |
| دتوحيد دســــرهنداري ممكناته | پردي سربـــاندي شـــاهد ټول كائناته |
| معشـــــوق پټه خزانه وه تل ترتله | په هنداري سرښكاره نسو ځلوبـــــله |
| ممكنـــات لكـــه هنـــداره زمـــاوروره | دتوحيدشـــغلي ځلاندي پكښي گوره |
| داهنـــداره چه غمازنـــه ده نـــوڅه ده | په دي فن كـښي ممتازنـه ده نـوڅه ده |
| صوفيه واي موجوديو دمعشـــوق ذاته | ممكنات ټوله اظلال وشــــيوناته |
| دوي مظهرونشــــاني دهغه ذاته | چه نظيرئـــي ماوتاتـــه دي مرآتـــه |
| صوفيه كرام په دي ژبـــــه دغيږي | خومضمون ئي ماوتاته ښه معلميږي |

| آئنه جانت چرا غماز نیست (۲) | زانکه زنگار از رخش ممتاز نیست |
| --- | --- |
| په دي بيت كښي دى جواب دهغه سواله | چه هنداره دي غمازه كړه في الحاله |
| مگرزمـــادزړه هنـــداره نـــه غمـــازه | نه خبــــره نه هتره پدي رازه |
| مولّنااوس دابـــيت وايي په شــــرنگه | ماوتاتـــه جـــواب وايـــي پدارنـــگه |
| ســــــتادزړه هنداره ځكه غمازنه ده | چه زنگوودچركـــه ممتازنـــــه ده |
| كه دچركه څخه پاكه ســــــي هنداره | خامخابـــه غمازي كوي ســــرداره |
| زنــــگ غفلـــــت دى دالله پروردگاره | بـــي فروابـــي تفكربـــي بندوبـــاره |
| ودي دومره لوي نظام تـــه نظرنـــه كړي | وبقاووقـــــــوام ته نظرنه كړي |

(۱) دابيت جواب دهغه سوال دي چه دسابق بيانه پيدا سو حاصل دسوال داچه مولّناقدس سره ته ويل كيږي چه بيان ددغه سر سره ددومره دقته به لازم ومناسب دحال ومقام سره نه وي نو تادڅه نكتي دپاره بيان كړي ، حاصل دجواب داچه معشوق غوښته چه داسِر فاش وبيان سي نوځكه مابيان كړي راغلو ومعني ته دبيت هغه داچه عشق په معني دمعشوق دي يعني حق جل مجده غوښته چه دغه سِر دتوحيدلودوجودحـــق په خلق كښي فاش اوپه كائناتو كښي ښكاره كړي چه مقـــتضاد كنت كنزاً مخفياالخ ظهور پيدا كړي كه داحكمت نه واي مخلوق به دبسره پيدا سوي نه واي مصراع ثاني تمثيل دي يعني كه هنداره ښكاره كيدونكي دعكس دخپل كتونكي نه واي نوبـــه داهنداره څنگه وجودته راغلـي واي لوڅه فائده بـــي په وجودكـښي واي هيـــڅ نوحـتمي غمازه لوښكاره كيدونكـي دعكـــس د كتونكـي دهمدارنـــگه كائنات كه ښكاره كيد ونكي دسِردتوحـــيدلود وجودالحـــق في الخلق نه واي نودڅه حـــكمت دپاره بـه پيدلـــوي واي لوكومه فائده بي په وجود كښي واي هيڅ نوحـتمي ښكاره كيدونكي ددغه سِردي . داهــم كيـــدلاي سي چه عشق پرظاهرپاته سي نومعني داچه لـــند عادعشـــق داده چه اظهار ددغـه كلماتوكـړي چه كائنـــات مظاهرومرايـــا دتوحيدلودوجودالحـــق في الخلق دي اوداوه وايي چه لكه هنداره چه غمازه نه ســي نوبـه څنگه وجود ولري همدارنگه كائنات ۱۲

(۲) وقـــت چه ســـائل د مولّناقدس سره څخه دا ســـوال كوي چه تاخوبـــار بارځان بلكه ټوله كائنات غمازه هنداره دسِروبـــلل مگرزماهنداره خو هيڅ غمازي نه راته كوي دانوڅنگه مولّناقدس سره جواب وايي آئينه جانت الخ . دائي وجه دتعلق وار تباط سره راغلو ومعني ته دبيت هغه داستاهنداره چه تاته غمازي نه كوي سِرداچه ستادزړه هنداره دزنگ وچركه پاكه نه ده بلكه خير نه په افكارو دماسوي الله ده اومستغرقه په درياب كښي دنكثراتو كوم وقت چه مصقله بذكرالله سي نوته به ترقي وذكرحقيقي ته وكړي نويه معني دمن الملك اليوم الواحد القهار وفهمه وي ۱۲

ابو الحفاظ : مولوي صالح محمد الارغستاني .

(۱) وقت چه په سابق بیت کښي مولناقدس سره دزنګیني اوخیرني هنداري بیان وکړي اوس په دي بیت کښي دصافي اوپاکي هنداري بیان کوي نووایي آئنه کزالخ ، دایه وجه دارتباط اوتعلق سوه راغلومعني دبیت نووایوچه مولناقدس سره په مصراع اول کښي وفناء جسمي ته اشاره کوي چه ودي فناته فناء واقعي اوفناء حسي هم ورته وایي هغه داچه بنده افعال ذمیمه اوملکات ردیه زائل کړي مثلاً ظاهري معاصي پریښول سي اودزړه څخه حب دمال وجاه حرص طول الامل کبر عجب ریاوغیره وایستل سي لوپه مصراع ثاني کښي وفناء علمي ته اشاره کوي هغه فناء علمي چه تاني له موږ څخه په سابقه حاشیوکښي بیان واوریدي دریادني کړه وقت چه دادوي فناوي په به بنده کښي موجودسي نوخامخا هنداره وده ته غمازه شي اوتوحید ووجود الحق في الخلق به وده ته په څان اوپه کائناتو کښي مشاهده سي ۱۲

(۲) وقت چه مولناقدس سره فائده دپاکی دهنداري دزنګو څخه ماوتاته په سابق بیت کښي وښودل اوس پدي بیت کښي ما وتاوغه فائده ته دامر په ډول هڅه وي نووایي روتوزنګارالخ . دایه وجهه دتعلق وارتباط ،راغلور معني ته دبیت نوداسي وایوچه مولناقدس سره موږ وتاسي ته دابه یي چه تخلي دمخه ضروري ده یعني اول به سړي څان درزائلوپاکه وي چه چه هغه موږ وتاسي په نامه دفناء جسمي پیژندلي وه پس به نومتحلي ومتجلي په تجلیاتوالهیه وباندي وګرزي اوزړه به ئي دالله دنورمرکزوګرزي نوبه وده ته څان اوکائنات مرآت و هنداره دتوحیداودوجود الحق في الخلق وګرزي خولدي مضمونه ماوتا

یوقدم چه دلیل بولي پرمسیره — نظام ولي دلیل نه دي پرقدیره
دااسمان ذات الابراجه ته وګوره — دازمین ذات الفجاجه ته وګوره
دابه ولي مظهرنه وي دمعشوقه — دابه ولي منظرنه وي دمعشوقه

آئنه کز زنګ الایش جداست [1] — پرشعاع ازنورخورشیدخداست

که دي زړه دزنګ وچرکه څخه پاک سي — داﷲ دعشق ومینه ته به چاک سي
تخلي خومقدم پرتحلي ده — داخبره کتابوکښي برملاده
چه دي لاس دخیروپاک نسي بالکله — په نکروخوښائست نه کوي هیڅکله
چه دي زړه دزنګ پاک سي سربسره — دشعاعودتوحیدبه سي مظهره
هغه مخکه چه وي پاکه دخوزانو — خودبه ګرزي ښائسته به ښوګلانو
همدارنګه چه زړه وه مومي صیقله — په شغلوبه دتوحیدسي څلوبله
نوبه تاته داخپل څان جوړسي مرآته — هم هنداره به سي تاته کائناته
نوبه بیاوه لي هنداره غمازه وي — پدي فن کښي به نووه لي ممتازنه وي

روتوزنګارازرخ اوپاک کن [2] — بعدازان آن نوررااداراک کن

مولناوایي په امرماوتاته — ماوتادعوت کوي دحق وخواته
زنګ دزړه دمخه پاک کړه سربسره — چه دعشق په تجلوسي منوره
تخلي درزائلوخپل پیشه کړه — دهمه واړواغیاروڅان ګوښه کړه
وجسمي فناته خپل څان اراسته کړه — په علمي فنادي خپل زړه ښائسته کړه

دازده کړه چه شریعت اصل دطریقت دی ۱۲

ابوالحفاظ : مولوي صالح محمدارغستاني .

| | |
|---|---|
| چه صافي صفاسي زړه داین وآنه | په انواروبه دعشق دی سي روښانه |
| نوبه تول ممکنات ورته مرآته سي | حق ظاهره ظل به واړه کائنات سي |
| د توحید نوربه په دوي کښي تل ځلیږي | داحد احد کښتي به کي چلیږي |

## (1) حکایت بادشاه و عاشق شدن بر کنیزک وخریدن بادشاه آن کنیزک را ورنجور شدن آن کنیزک وتدبیر ومعالجه بادشاه بهر کنیزک

| | |
|---|---|
| دسابق سره تعلق دحکایته | غوږ پرونیسه بیامکړه شکایته |
| هغه زړه چه مستولي وربان دي زنګ سي | باید پاک سي چه ښکاره ئي صفارنګ سي |
| لکه زنګ چه وه چارپیر پرمنځه یاره | دزرګر به محبت وه ګرفتاره |
| خوباچادزنګو پاک کړي دابشره | چه بیان بي درته راسي سربسره |
| هو طبیب الهي ئي واسطه وو | هو طبیب روحاني ئي ذریعه وو |
| خو اصلي سبب باچاچه په ژړاسو | له دي رویه الهي طبیب پیداسو |
| اوس قصه ده دباچا پرعشق روانه | هم دمینځي وزرګر کوي بیانه |
| خودپښو نصیحت یو خزانه ده | دعبرت وداسرار وپیمانه ده |
| ورداخل سه په نوبه نوبه رفتار کړه | داپاشلي ملغلري جم په تار کړي |
| پکښي زده به کړي انجام دغافلانو | ناکامي وعاجزي دطبیبانو |
| هغه خوک چه متکي پرخپل ځانه | په نصیب بي رنګ زردي وي هرزمانه |
| هرحکیمي الهي تل برخورداروي | په الهام الهي چه کاروباروي |
| چه باچاکړي تواضع فائده ئي مومي | خوښ خوشحاله دمطلوب وخواته رومي |
| داراښه یي په ظاهریو کارعقاب وي | خوهغه کاردحکیم پرلاس صواب وي |
| هغه کارچه نفعي عامه وي هرګوره | معقول داچه داکاروسي بالضروره |

(1) ددي حکایت ربط وترون دسابق بیت سره په دي ډول دی چه مولٰنا قدس سره په سابق بیت کښي وفرمائل چه، روتوزنګار الخ. یعني ته اول زړه دزنګو پاک کړه دپاره ددي چه دلسرارو جوګه وګرزي ځکه چه زنګ پرزړه مستولي او غالب سي نودلسرارو فهمیدل نه سي کولاي لکه باچاچه اول دخپلي معشوقي منځي شخه دزنګ دمریضي دلیري کیدو هڅه وکړه دپاره ددي چه صحت پیدا کړي ځکه چه دداسي مریض شخه دحسن معاشرت اودعشق درمزونو استفاده نه سي کیدلاي. راغلو ددي خبره ته چه داحکایت په ظاهر کښي یو قصه ده خو په حقیقت کښي دپندونو اونصیحتونو اودلسرارو دحقیقت لواشاراتو دطریقت یوه لویه خزانه ده لودمولٰنا قدس سره هم دمجردي قصي بیانه ول مرادنه دي بلکه غرض ئي موږ وتلي ته اګاهي پردغه لوړو رسالتدي ده لودموږ وتلي ته ددغه ملغلرو دملکیت لراده لري نمونه دهغه شه چه مولٰنا قدس سره ئي په حکایت کښي موږ وتلي ته بیانه وي دلاده چه تواضع ورجوع والله ته دمطلوب دحاصلیدلو لاره ده ورس لوغرور ورسي نروایي دناکامي لورنګ زردي موجب دي لولاب دعزت ددارینو سبب دی. لوبي لابي وانسان ته ذلت وحرمان ورپه برخه کوي لودنیکانو ملګري ونوازش وسري ته سعادت ددولرو جهانو په لاس ورکوي لودلسشتا سره جفت کیدل اعني دانشا الله تعالي ویسل دکاردپوره کیدلو ذریعه ده لواعتماد پروسائلو والبابو هیڅ پکارنه دی همدارنګه نور په اشاراتو ولسرارو کښي دنموني په ډول دلسي ویلاي سو چه دباچا شخه په قصه کښي روح مرادي لودمنځي شخه نفس اودزرګره شخه دنیا اودطبیبانو شخه مزور شیخان اودطبیب الهي شخه شیخ کامل ومکمل تناسب وتشبیه دتولو په مابین کښي ښکاره ده هم داسي نوربشارات چه په خپلو مواقعو کښي به ئي زده کړي خلاصه داچه مولٰنا قدس سره یو عجیبه اوغریبه ملغلري په دي حکایت کښي پرځاي کړي دي ماوتاته پکار ده چه دغه ملغلري دجواهرو په تارو پییو اودغه مزین جمیل دخپلي غاړي غارګی وګرزه وو اوخپل ځان په ښائسته کړو. اوس داخبره بایدزده کړو چه داقصه مخکښي درسول الله علیه وسلم ترظهور واقع سوي ده شاهد پردغه آینده بیت دي چه مولٰنا قدس سره فرمایي .بودشاهي درزمان پیش ازین الخ. وقت چه پردي مضمون به آینده بیت په صفحه ۱۰ اي مراتو مصطفي الخ سوال وارد یږي جواب بي هغه ځاي کښي راسي انشاء الله تعالي ۱۲

(۱) مقصد دمولٓنا قدس سره په دي بيت کښي دادی چه دغه ماجري په حکايت کښي عين خلاصه دحال زموږ ددلي دسالکانو ده
څکه چه خلاصه دقصي خوداده چه باچاعاشق سوپرمنځه مملوکه باندي غوښته ئي چه دخپل معشوقه څخه دحسن معاشرت
استفاده وکړي خومقصدئي حاصل نه سوڅکه چه منځه په خپله په عشق دزرگرگرفتاراوپه دغه خاطرمريضه وه خوباچابالآخر
طبيب حاذق اوکامل پيداکړي هم په دغه واسطه ئي دمنځي دمرض علاج وکړي نوئي مقصدحاصل اوخبره جگه جوړه سوه
همدارنگه روح دسالک باچاعاشق سوپرعقل جزئي باندي چه هغه مملوک وغلام دروح وونوروح غوښته چه ددغه عقل څخه
استفاده داکتساب دکمالاتو دحسن معاداودمساعدي دحق وکړي خودغه عقل په خپله کندکښي دنفس پردنياعاشق اولذائذددنيا ئي محبوب گرزه ولي وه هم په دغه خاطرمريض وونوروح ته دسالک پکار چه ددغه مرض علاج او ازاله بواسطه دمرشدکامل ومکمل وکړي چه مقصد ئي حاصل اوخبره جگه جوړه سي ،نوروح دسالک مشابه سودباچاسره په تصرف کښي په خپل مملوک کښي اوعقل جزئي مشابه سودمنځي سره په مملوکيت وتابعت کښي اودنيامشابه سوه دزرگره سره په ظاهري تزيين کښي نويشکه دادلستان نقدحال دسالکانوسوپس زموږ تردي تقريره زه گمان نه کوم چه تاسي دي په وجهه کښي دتعلق وارتباط په مابين کښي دبيت اوحکايت شک پلست نورموپرخداي پاک سپارم والسلام ۱۲

(۲) وقت چه مولٓناقدس سره په سابق بيت کښي نقدحال بيان کړي اوس په دي بيت کښي ثمره دتگ پرمقتضي دنقدحال بيانه وي نووايي نقدحال خويش راالخ . دايه وجه دتعلق وارتباط دسابق ودلاحق راغلوومعني ئ: دبيت نووايوکه چيري موږخپل نقدحال ته قدم بوسويعني وخپل خالص حال ته څان ورسونوبه ددنياوعقبٰي څخه ميوه وخورويعني نفعه به څني واخلومراددنقدحاله څخه دلته عبودية ياعشق ياروح يامرشدکامل دي يعني که موږچيري خپل څان په عبودية وعجزوفقر لوالله (ج) په ربوبيت اوقدرت وغني وپيژه نواوياعشق الهي مختاره کړواوياداروح په قول وکړواوياداعرشدکامله اخذوکړونوبه ددنياوآخرت کاميابي په لاس راوړو ، داهم کيدلاي سي چه مراددي دنقدحاله څخه عشق سي اوغرض دمولٓناقدس سره دي په راوړلو کښي دشرط کسردخپل نفس وي نومعني داکه چيري وعشق الهي ته ورسيږم يقيناخوورسيدلی نه يم نوبه دنياوعقبٰي الخ پردي تقدير نومراددمولٓنادبريم څخه فقط خپل څان دی ۱۲

| | |
|---|---|
| نوحکیم به خودکوي دغه کارداسي | که څه هم ضررخاص ورسره راسي |
| دباران نفعه وهرچاته رسیږي | دغریب کمزوري خونه نړیږي |
| دادب ووبي ادب بیان به زده کړو | په قصه کښي به نورهم ډیرشیان زده کړو |

## بشنوید ای دوستان این داستان (۱) — خود حقیقت نقد حال ماست آن

| | |
|---|---|
| بنه ئي واوري داعجبه داستان دی | حقیقت کښي زموږدحال لوي ترجمان دی |
| څکه زموږ روح په مثال دیوباچادی | پرهمه واړه بدن حکم فرمادی |
| عقل په قید کښي دنفس منځه بوله وروره | دادنیالکه زرگربنه ورته گوره |
| مزوراوناقابله چه شیخان وي | بنه مثال بي بي وقوفه طبیبان وي |
| هرمرشد پیرکامل بنه رهنمادی | په مثال دالهي حکیم دانادی |
| مرادله ماڅخه تولی دسالکانو | چه علاج کوي دزړوپه کاملانو |
| مکمل مرشد کوي دزړوعلاجه | ازاله دمرض کاندي له مزاجه |
| کلمه دمانوعامه ده عاقله | ومفیدومستفیدته ده شامله |

## نقد حال خویش را گر پی بریم (۲) — هم ز دنیا هم ز عقبی برخوریم

| | |
|---|---|
| که دروح پرمقتضي سمه روانه | خودکامیابه به زه سم په دوه جهانه |
| که دعشق په میخانه کښي پیره دارسم | ددنیاودعقبٰي به برخوردارسم |
| که په خپله عاجزي باندي بنه پوه سم | ددنیاودعقبٰي به برخه یوسم |
| دحکیم الهي که زه نوکرسم | په دنیاوپه عقبٰي به بهره ورسم |
| دامکن چه مولٓناکسردڅان کړي | لدي رویه نوپه شرط دغه بیان کړي |

(١) وقت چه په سابق بيت کښي بيان دنقدحال وکړه سو اوس پدي بيت کښي امرپه اوريدلو ددغه حقيقت دزړه په غوږ باندي کوي همدارنګه ثمره ددغه اوريدلو راته بيانه وي نووايي . اين حقيقت راشنو الخ . داوجه دتعلق وارتباط دسابق ودلاحق ده راغلو ومعني ته دبيت نووايو چه مرادد حقيقت څخه نقدحال دي لوتاسي په سابقه حاشيه کښي نقدحال په څلورو معناو باندي وپيژندی لوس بي يوه معني دپاره دتوضيح ددي بيت راواخلو هغه نوعشق مثلانو به پوره معني دبيت داسي بيان کړو . چه دغه حقيقت دزړه په غوږو باندي ولوره يعني عشق الهي قبول اواختيار کړه چه دګله څخه ددنيائي لذاتو اونفساني خواهشاتو هم دارنګ دتولو

واي که چيري رسيدلی واي وعشق ته — دادلويي کاميابـوي وسرمشـــق ته

نويــه زه واي بــری داره په دنياکښي — هم به زه واي برخورداره په عقبٰي کښي

مګرهغه حقيقــي عشـــق چه منلی — يقـــين نه کوم چه مادي وي مندلی

دغـه څومـره هضـم نفس دمولنـادی — پيژندلی په سردارد عشـــق هرچادی

اين حقيقت (1) را شنو از گوش دل — تا برون آئی بكلی زاب گل

تـه دزړه په غــوږو واوره دامضمونـه — چه دختوؤ ابوســـــي را بـــــيرونه

اوبـــه ختي کنايه دتعلقـــــــاتو — ددنياووهمه واړوخواهشـــــــاتو

بـــــدترين ګل ددنياواړه لذات دي — همدارنګه نفســاني ټول خواهشـات دي

راوتل ددي ابـــــــوؤ ختو ياره — پرينبودل دخواهشـــــــاتو په دلاره

خوددي شـــي پرينبودل اســـانه نه دی — هم دده ســـه خلاصيدل اســـانه نه دی

مګرروح په خپل عمل کښي مقتداکړي — ولوله دعشق په خپل ځان کښي پيداکړي

تواضع ؤ عاجزي خپله پيشــــــه کړي — هـــم لمـــن دکاملانوتـــه تکيـــه کـــړي

دخلاصون ئي بــله هيڅه لاره نستـــه — بــي نوموړي ئي بــل هيڅه چاره نستـه

فهم گر دارید جان را ره دهید (2) — بعد ازان از شوق پا در ره نهید

فکرجم که ســــوچ دروح دپاره پريږده — بيانوپښه دشوق وعشق پرلاره کښيږده

که مي نفس سرکښه لاندي ترحساب کړي — اودعقـل کلي ماکسب اکتسـاب کړی

نويه شـوق وواشـتياق بــه زماګذرسـي — هم بـــه سرِدقـــصي ماته رابهرســـي

که غافل عاطل دنفس په لومه بندســـم — دقـــصي په سربـــه کله سربلندســـم

پکښي وه بـــه نه وينمه هيڅ اســـراره — نه نکتي نه بـــاريکي زماســـرداره

داقصه ددي هم وړده چه کامله توجه ورته وسي اودهره لوره فکرورته جمعه سي څکه چه داپرډ پرو پندونواونصيحتونو باندي مشتمله ده اوډيرو اسراراواونکاتولره متضمنه ده اودسختو الفاظو اودقيقو معاني خاونده ده نوخودکامله توجه ورته پکار ده والسلام ١٢

ابوالحفاظ : مولوي صالح محمدارغستاني .

رزائلو څخه رلابلندي سي څکه چه تلسي په سابقه حاشيو کښي زمويږڅخه لوريدلي چه مرضي طريقه دتکميل په نيزدمولنا قدس سره دلوه چه لول سالک بايدعشق حاصل کړي چه دحصوله څخه په ددغه عشق توله رزائل لونواقص زائل وګرزي هم دارنګه عبوديت وروح ومرشدکامل سری دګله څخه رلبلسي ١٢

(٢) دلبيت تاثيدوتاکيد دسابق دی نو تعلق وارتباط تاتم سو ، معني دبيت دا چه فهم جمعه کړه لوبه زړه متوجه سه لوروح ته لاره ورکړه لوخپل مقتضي ته ني پرېږده پس له دغه څخه دشوق وذوق دلاري پښه په رکاب کښي دعشق کښيږده چه دحقيقت لو نقدحال خاوندوګرزي يادا معني چه پس ترتوجه کاملي دشوق سره سره پښه په لاره کښي دقصي کښيږده چه اوس شروع کيږي راحکامو وفوائدو واسرارو ته ني متوجه لو ددي پرميوه بوستانه څخه ميوي يوسه لوددي پر شګونه ګلستانه څخه د ګلانوګيډي جوړي کړه

ماوتاخوده زده کړي داخبره — چه قصه دسربسره ملغلره
نوبه ولي زه وته اوسوغافله — نوبه ولي ورته ځيرنه سوعاقله

**بودشاهی درزمانی پیش ازین (۱) — ملک دنیابودش وهم ملک دین**

داقصه دباچااوس شروع کيږي — مولناپه عجب نمط مورته رغيږي
په پخواکښي يوباچاووکل اختياره — هم ملک دباچهۍ هم وودينداره
دپخوامرادمقدم دی نيک فرجامه — ترزمان دمحمدعليه السلامه
هرباچاچه وي خاوندديانته — خودکامياب دی په دنياواخرته
کاميابي په دقصي ښه معلوميږي — مولناچه په ورو وروموږته رغيږي
مولناچه په خوږه ژبه تشريح کړي — په عجبه امثله وويه توضيح کړي
ماوتاته ده پکاره چه سوبيداره — چه دده په مضمونوسوبرخورداره

**اتفاقا شاه شدروزی سوار (۲) — باخواص خویش از بهر شکار**

يوه ورځ باچادښکارپرلورروانه — ورسره وه دخپل ملک ټول وزيرانه
عادةً باچادښکاروي مينه داره — هم درنګ منظرو، وي طلبداره
داامن وامان لونښانه ده — درضادرعيت لوعلامه ده
هرباچاچه وي عادل خودبه ګرزان وي — خوظالم به پخپل کورکښي هم لرزان وي
ياروح سپوردعزيمت همت پرآس دی — دتحصيل دمراتب په التماس دی
دخواصوفوځ ئي ټوله ورسره وو — هم علمي هم عملي قوت ئي پره وو
په دي سيرکښي دنفس منځه ګلفامه — وليدله سم دستي به سوغلامه

(۱) داخوږته نه ده چه ابيات سابقه تمهيدوقصه ته وه نوکوم وقت چه مولناقدس سره له تمهيده فارغه سونوئي شروع په قصه وکړه نوفرمائي بودشاهي الخ . نوارتباط په مابين کښي دسابق ولاحق حاصل سو . راغلومعني ته دبيت هغه داوويوباچامخ کښي ترزمانه درسوالله صلي الله عليه وسلم هغه داسي باچاووچه باچهي ددنيايه هم لرله اوددين داهم يعني حمايت ددين مبين ئي کاوه . اوس داخبره بايدزده کړوچه پدي حکايت کښي بيان دباچامينځه حکيم الهي طبيبان زرګرکيږي نوبعض علمادمعشره دصوفيئه کراموپدي بيت کښي رنګ رنګ اراذي لري لکه داچه مراددباچاڅخه عقلي جزئي دي اودحکيم څخه عقلي کلي دي لودطبيب څخه ناقص لومزورپيردی لودمينځي څخه نفس جزئي دي او دزرګره څخه دنيادہ لکه تاچي په سابقه حاشيوکښي هم زموږڅخه ونوريدہ مګرپه دي لراده ؟ ښي دا سوال کيدلاي سي چه عقل خوهروقت ممدوح دی څکه چه مناط دتکليف دی او دعقل څخه اکتساب دکما لاتومير کيږي نودلته مذموم په څه خاطرسوجواب به دلسي وايولک موږچه مغ کښي هم لشاره ورته وکړي .کوم وقت چه عقل په قيدکښي دنفس رلسي لوتابع دده وګرزي اومشتغل په دنيوي لذاتولونفسي خولهشاتوسي نوهم مذموم بلل کيږي پدغه خاطردعقلي جزئي لوعقلي ناقص په نامه يادېږي داخوزده سوه مګراصل حقيقت دادي چه لراده ددغومجازي وکنايي معناوپدي ځاي کلام مختل ګرزه وي او زيات عسرت پکښي سته توبه خبره داچه کلام پر خپلومعاني حقيقيه رر پاته سي اوشرل دقصي کماهي وه سي ارهغه څه دکلامه لراده سي چه هغه مفهوم دکلام اوسوق دقصي وي لکه عبرت پند نصيحت وغيره .

(۲) وقت چه په سابق بيت کښي بيان دباچاوکړي اوس په دي بيت کښي بيان دحال دده کوي نووايي اتفاقاً الخ . دايه تناسب وارتباط دی معني داچه ناڅاپه باچاسره دخپلوخواصواووزيرانويوه ورځ سپوسودښکارپرلور .دصوفيه کراموپه ژبه ئي دلسي معني کوچه روح انسانيه مخ کښي ترخروج دبدنه سپورسوسره دخپلوخواصوچه قوة علميه دي چه دی نتيجه دحواسوظاهره لوباطنه ودي داسپورسوپرآس دعزيمت وهمت دپاره دتحصيل دمراتبودمعارفوخوناڅاپه ئي په دغه سيرکښي نفس دجاريه وليده څوغلام ددغه جاريه وګرزيدی ۱۲

ابوالحفاظ : مولوي صالح محمدارغستاني .

| | |
|---|---|
| که دااوس مضمون وتاته څه مجمل سي | حاشیه گوره دستي به مفصل سي |
| بهر صیدی میشد اندر کوه ودشت (۱) | ناگهان دردام عشق اوصید گشت |
| چه وښکارته روانیږي دابـاچادی | چه دعشق په دام کي لویږي دابـاچادی |
| اراده یه وه دصید پخپله صیدسو | په محکموزولنو کښي دعشق قیدسو |
| په طلب پسي دښکارئي وورفتاره | ناگهان دعشق په دام سو گرفتاره |
| ده طلب کاوه دښکارپخپله ښکارسو | دناڅاپه عشق په لومه گرفتارسو |
| دده خیال ووچه دښت غربه لتومه | دښکاري غوندي مقصدبه پره کومه |
| نه وغره ته نه ودښته ته ورتیل سو | خوېدي خواپه کمند کښي دعشق شکیل سو |
| تدبیریو تقدیر پربل باندي چلیږي | ومخفي حکمت ته فکرنه رسیږي |
| یک کنیزک دید او بر شاه راه (۲) | شدغلام آن کنیزک جان شاه |
| چه باچاوښکارته تلی پرلویه لاره | بل خیال نه ووورسره بسیله دښکاره |
| پریوي منځي پردغه لارنظرسو | سمدستي ئي روح غلام ددي بشرسو |
| عشق تعلق نلري هیڅ په تیټ وپاسه | نه مربوط دی په بنائست نه په لباسه |
| چه محمودغزنوي ته عشق رسیږي | سم دلاسه دی غلام دغلام کیږي |
| دمجنون عشق ماوتاته بیانیږي | لیلي کله په بنائست باندي یادیږي |
| هرڅه لوړچه سي عاشق رتبه نه غواړي | غلامي دمعشوق تل ترتله غواړي |
| هم هرزړه چه سي مین بنائست نه غواړي | هرسړي چه سي بدخواب بالښت نه غواړي |

(۱) وقت چه په سابق بیت کښي سواري دباچاوزیرانو دښکاردپاره بیان سوه اوس پدي بیت کښي هغه ځاي بیانه وي چه دښکار نیت ئي پکښي کړي وویعني ښکارگاه راته بیانه وي نوربط وتعلق حاصل سوراغلومعني ته دبیت هغه داچه باچادپاره دښکار تلی په غره ودښت کښي ناڅاپه په دام کښي دعشق دی په خپله ښکارسو ، اوس نوداخبره بایدزده کړوچه ظاهردبیت دامعنی ورکوي چه باچامینځه په غره ودښت کښي ولیده ځکه چه میشد په معني دمیرفت دي واندرظرفیه دي حال داچه واقعیت دغه سي نه ځکه چه باچامینځه په غره ودښت کښي نه ده لیدلی بلکه په شاه راه کښي مخ کي ترسیدووغره ودښته ولیده لکه آینده متصل بیت چه پردغه باندي شاهدي ورکوي نوبه توجیه داسي کوروچه اندربه ظرف دصیدگرزوو نه دمیشدنوبه معني داسي چه باچادپاره دښکارتلی چه هغه ښکاربه غره ودښت کښي وو یالفظ داندرزائد دی معني داچه باچادپاره دښکارتلی وطرف ته دغره ودښت والله سبحانه اعلم . به معني کښي ددي بیت به ژبه دصوفیه کرامودلسي ویلاي سوچه روح دپاره دښکاردمعارفوومراتبو په تیه کښي دمعرفت سیر کاوه خوناڅاپه ئي پرنفس جزئي سترگي ولگیدي لو پدلم کښي دعشق وملگري ئي ښکارسو ۱۲

(۲) وقت چه مولناقدس سره په سابق بیت کښي وقوع دباچاپه عشق کښي بیان کړه لوس ئي پدي بیت کښي معشوق راته ښیي نوتعلق وربط حاصل سوراغلومعني ته دبیت هغه چه ولیده باچایوه مینځه پرشاه راه باندي یعني پرلویه جاده باندي اوپرلویه عامه لارباندي نودسمدستي روح دباچا ددغه مینځي غلام وگرزیدی ځکه چه عاشق تل دمعشوق دغلام په نامه یادیږي که څه هم عاشق باچاوي نه گوري ووینا ته دمصلح الدین الشیرازي چه فرمائي ، محمودغزنوي که هزاران غلام داشت :. عشقش چنان گرفت که غلام غلام شد:. دصوفیه کراموپه ژبه په معني کښي دبیت داسي ویلاي سو ، چه روح نفس اماره پرفراخه جاده دمعارفوولیدي لوپه تزیناتودنفس یه گیره دده راغلي لوغلام وتابع وگرزیدی ۱۲

ابو الحفاظ : مولوي صالح محمدارغستاني ۔

## مرغ جانش در قفس چون میطپید[1] — داد مال وان کنیزک را خرید

چه د روح مرغه ئي بندپدي قفس سو — خريدار په مال ورزردي نفس سو
عاشق نلري فروادسيم وزره — ترمعشوق قربانه وي خپل مال وسره
دعاشق مال وزرهيڅ پتمنده نه دي — ترمعشوق ورته هيڅ شئ قدرمندنه دي
دمجنونه تابل څه شئ دی ليدلی — دليلي ليلي اوازدي اوريدلی
زليخابه دبل چاوي طلبداره — بي يوسفه به دچاوي خريداره
چه په وينه ئي يوسف نوشته کيږي — نووزره ته بي بل څنگه نژدي کيږي
نوپه مال بي څه فرواوي اي سروره — خوددزروبه تاله اخلي دلبره

## چون خریداورا و برخوردار شد[2] — آن کنیزک از قضا بیمار شد

چه په خريد دخپل معشوق دی برخوردارسو — په قضاء الهي معشوق بيمارسو
تجربي موږته نبوده لي دااسراره — چه دعشق په لارکښي ستونځي دي بسياره
دمجنون ستونځي دي وه لي هيري کړي — څه سري وڅه تودي په تيري کړي
څه چه گوروعشاق ودفترونه — عاشقان پکښي معلميږي ځگرخونه
دخپل عشق په مسئله کښي سرگردان وي — هميشه لمبوسوه ځلي دهجران وي
خوپه مانحن فيه کښي يوحکمت وو — په بغل کښي ددي ستونځولوي رحمت وو
پرياچاوه دالله پاک پيرزوينه — چه دده زړه ئي پرمينځه کړي مينه
ولي دامينه په څه باندي بدليږي — منتظرسه په قصه پيژندل کيږي

(۱) وقت چه په سابق بيت کښي عاشق ومعشوق ذکرسوه اوس په دي بيت کښي معامله دعاشق دمعشوق سره بيانه وي نووايي مرغ جانش الخ ،راغلومعني ته دبيت هغه داوقت چه روح دباچاپه بدن کښي ولرزيدی اودمينځي دعشق مقهوروگرزيدي نوئي مال وپيسي وبښندلي اومينځه ئي په قيمت باندي رانيوله اوغوښته ئي چه دحسن معاشرت استفاده ځني وکړي خوداسي ونه سوه ځکه چه هغه مريضه اودبل په عشق گرفتاره وه ،دصوفيه کرامو په ژبه داسي ويلاي سوچه روح په قفس کښي دوجودانساني په لرزه راغلي اودخپل ملگري نفس اماره ترتاثيرلاندي سواودده دخواهشاتو تابع وگرزيدي اوپردغه جاريه دنفس عاشق سو اوددغه عشق مقهورجوړ سونوئي مال داستعداد الذاتي هم دارنگه مال د عهدوميثاق په روحاني کښي وښاندي اودغه مريضه اوپرخواهشاتو عاشقه جاريه دنفس ئي په رانيوله اوخپل تولـه راس المال تردغه مريضه مينځه قربان کړي کمه استفاده اوحسن معاشرت لوسعادت به ځني حاصل کړي هيڅ ۱۲

(۲) وقت چه دسابق بيته څخه حصول دمقصود متوهم کيدی داسي کوم وقت چه باچامينځه رانيوله نوبي مراددحسن معاشرت حاصل سوي وي مشکل به نوبالانه وي نومو ناقدس سره په دي بيت کښي ددغه توهم دفعه کوي داسي چه سره ددغه رانيوله دباچا مقصدحاصل نه سوځکه چه مينځه مريضه دحسن معاشرت صالحه نه وه دايه لرتباط دلاحق دسابق سره راغلومعني ته دبيت هغه داکوم وقت چه باچاپه رانيولو دمينځي خوشحاله اوکاميابه وگرزيدی لوراحت سبب ئي وگانه خودغه مينځه په حکم الهي مريضه وگرزيده دراحت نه بلکه دزحمت موجب سوه نودا خبره حق ده چه نه کوي حبيب څه به وکړي خوارطبيب داخواصل حقائق دالفاظودي چه تاوپيژندل اوس به معني په ژبه دصوفيه کرامووپيژنو هغه دا چه روح په بښندولودخپل مافي اليدهغه مريض نفس دمعشوق په حيث ځان ته واخيستي چه مقدمة دذلت اوزحمت دی اوهغه دنيايه اختيارکړه چه صورت ئي سراب معمورئي خراب اميدونه ئي هباء فنائي نوم هکذا ۱۲

ابو الحفاظ : مولوي صالح محمد ارغستاني .

**آن یکی خر داشت پالانش نبود[1]** — **یافت پالان گرگ خر را در ربود**

دبـاچاه‌مثال دهغه ســرګردان ســـو
دي په تپ وپه تلاښ دپالان اوســــي
نه باچاسوبــــهره وربخپل مقـــصوده
په تشبـيه كنبي هم داغه قــدركافي ده
كه تشبــيه كامله نه ده په بــيان كنبي
كه تشبــيه ســـي مركبـــه زماووره
مولاناچه مثال وايي په دي بــاب كنبي
چه په لاس كنبي شي مي ځي عجبه نه ده
دغـــاډ ودراځ مضمـــون دريادكـــړه

چه خاوندديوه خره ورك ئي پالان سو
خوليوه ئي خربه تيښته ځني يوسـي
نه خاونددخره اندول سودمطلوبـــه
دبيان په اصطلاح كنبي هم شـافي ده
خوداهم لازمه نه ده په بـــيان كنبي
دامضمون بـه نواسـانه ســي هرګوره
اشـــاره كړي ماوتاته په كتاب كنبي
چه نايافت لاس ته راځي عجبـه نه ده
پرداغه خبــره بــالكل اعتمادكړه

**کوزه بودش آب می نامد بدست[2]** — **آب را چون یافت خود کوزه شکست**

دادوهم تمثيل دحـال دباچابــوله
دخاونده دكوزي كړي حـــكايته
زه به ولي پدي حال سرګردان نه يم
چه كوزه مي وه اوبـه نه وي وماته
نه يوازي په كوزه مرادحـاصليږي
نوخاونددكـوزي خـوددي لالهانـه
هم دارنګه باچادي هوك وحيرانه
دتشبيه حـال تاپخوادي پيژندلي

حــــكايته دمولنابه ژبــــه لوله
همجوره ئي دابـــوكړي شـــكايته
په خپل ځان پوري بـه ولي حيران نه يم
چه اوبـه مي كړي پيداكوزه سـو. ماته
نه تنهااوبـــه دځان ســـره ورل كيږي
نامرادي ده په بـــــــرخه دازمانه
دمعشـــوق په مريضي دي ســر ګردانه
په سابق كنبي دي تفصيل دي اوريدلي

(۱) دادوه بيتونه تمثيل وتشبيه دحال دباچادي په حال پوري دهغه دوونفروچه بيان به ئي راسي نوتعلق په مابين كنبي دسابق ودلاحق حاصل سو. راغلومعني ته دبيت هغه داچه حال دباچاپس ترراتيولواومريض كيدلودمينځي داسي جوړسولكه حال دهغه سړي چه خرئي درلودي خوپالانه ئي نه وه وقت چه يه پالانه پيداكړي بيائي خرليوه په تيښته ځني يووړي نولكه دغه نر والاچه پردي ډول دخپله مقصده څخه بي بهري پاته سوهمدارنګه باچادخپله مقصده څخه ميوه نه وخوړه بي قراري ئي برطرف نه سوه اګركه په خريد برخوردارسولكن ذوصالي بهره ئي كامله نه واخيسته دغه قدري تشبيه كافي ده كه څه هم كامله تشبيه نه ده، لكه تاچه ددي مضمون تفصيل په فن كنبي دبيان زده كړي دي بياهم دلوايو چه كه تشبيه مركبه سي امربه سهل سي بيدالرلوسه شايدچه په دي مضمون كنبي دي وتاته دلمتحان پيغام هم وي داخوتحقيق دمعاني دالفاظوسورلبه سومعني ته دبيت دصوفيه وكرامويه ژبه دوي داسي وايي ملاقي سوروح دمركب سره دبدن چه پرشاه دعزيمت ني پالانه داطاعت نه وه وقت چه: بـه پالانه پيدا كول داجل ليوه ني مركب وتښتاوه لودمرګ ميلمه سو ۱۲

(۲): بيت تمثيل دي حال لره دبچالكه سابق بيت چه تمثيل وهغه لره دايه وجه دتعلق ولرتباط ده راغلو معني ته دبيت هغه داچه حال دباچادلسي وولكه حال دهغه سړي چه كوزه ئي درلوده خواوبه ئي لاس ته نه ورکلي وقت چه اوبه لاس ته ورغلي خوبيائي كوزه ماته سوي وه نولكه دغه سړي چه دخپله سامانه مستفيدنه سوهمدغه رنګه باچادخپلي مينځي بهره مندنه سودلخوبيان دحقائقو دالفاظوروچه تازده كړي اوس به راسو ومعني ته دصوفيه وكراموپه ژبه هغه داچه روح خوكوزه پيداكړه چه بدن دي لكن لوبه دمحبت لوشراب دمعرفت نه وه ورسره وقت چه به ده اوبه دمحبت پيداكولي بدن ني په ډبره داجل مات سودقبرميلمه سو ۱۲

ابو الحفاظ: مولوي صالح محمد ارغستاني.

(۱) وقت چه مولٓنا قدس سره دتمثیل څخه دحال دحیرانی دباچافارغه نوئي بیرته رجوع وبیان ته درواحوالودباچاوکړه چونچه ترمثال په سابق بیت کښي دباچادحال داسي بیان سوي ووچه دی بهره مندپه خرید دمینځي سولکن خومینځه مریضه وه نوباچا ومرادته نه رسیدي نودلته وسائل ته سوال پیداسوچه ددغه مریضی سره دباچاحال څه وو اوڅه عمل یي اختیارکړی نوپدي بیت کښي جواب ورکړه سوچه شه طبیبان جمع الخ ،یعني باچادا عمل اختیار کړي چه دپاره دعلاج دمریضی ئي تپ وتلاښ شروع کړي نوتناسب په مابین کښي دسابق ولاحق پیداسوراغلو ومعني ته دبیت هغه داکوم وقت چه باچادخپل معشوق مریضی ولیده نوئي طبیبان داطرافو دخپل مملکت راجمعه کړه اوپه دبرجد بست ئي دخپل معشوق دعلاج مطالبه ځني وکړه اودلي ورته وویل چه زماد معشوق مزاج انحراف کړي اومریض گرزیدلي اوزماروح ، معشوق په روح پوري مربوط دی نوموږدولږه ستاسي په حذاقت کښي یوعلاج په تلسي لږه لږي نوله دي مضمونه څخه داحکم معلوم سوچه مراجعه ومتاهل ته مطلوب کاردی دلوه معني دبیت په حقائقو دالفاظو خومعني ددي بیت اوآینده بیت به په ژبه دصوفیه کرامو په شرحه کښي دآینده بیت غبرگ سره زده کړو انشآء الله تعالی ۱۲

(۲) پدي بیت کښي خطاب دی دطرفه دباچاواطباؤ ته لکه په سابق بیت کښي چه خطاب وودوي ته دایه وجه دارتباط راغلو ومعني ته دبیت هغه داچه باچا په کمال عجز واحتیاج وطبیبانو ته وویل چه زما روح څه مسئله نه ده خوزما دروح دروح چاره وکړي

| | |
|---|---|
| شه طبیبان جمع کرد از چپ وراست[1] | گفت جان هر دو در دست شماست |
| باچاجم کړه طبیبان تول تیټ وپاسه | چه علاج ددوور حانوستي په لاسه |
| ولي زماروح دمعشوق دروح سایه دی | زمادروح دپاره دغه سرمایه ده |
| زوملولي روح په روح دیارپوري مربوط دي | هر دیوال په خپل اساس باندي مضبوط دی |
| که اساس دبیخه ځي دیوال نړیږي | دختلي درختي هم سایه تولیږي |
| اي توبه توبه دعشق دزورره | دباچاسه گداجوړ کړي بالضروره |
| که محمود دغلامانو وبادار و | خوایازئي قبول کړي په سالاره |
| که مجنون هم څه ادیب دخپل زمان وو | دلیلي په عشق کښي خاوري دبیابان وو |
| جان من سهل است جان جانم اوست[2] | دردمند وخسته ام درمانم اوست |
| زمادروح روح دیاردامي ارمان دی | یم دردمند په زړه خوږ مند درمان مي یاردی |
| دعاشق دزړه دوابل هیڅ شي نه دی | بي معشوقه ئي شفابل هیڅ شي نه دی |
| په دارو هیڅ نه رغیږي دطبیبه | په یوه نظر جوړیږي دحبیبه |
| دعاشق زړه دمعشوق په لومه بندي دی | دایو سردي چه دروح سره پیوند دي |
| زمادځان مریضي هروقت درمل کیږي | خودروح دروح مرض نه زغمل کیږي |
| هرعاشق دخپل معشوق په ژوند پایږي | خودپه زړه کښي ئي بل هیڅ شي نه ځایږي |
| که غوټه وي په دریاب کښي دوصاله | بیالاهم وي تشنه لبه لامحاله |
| دمجنون زړه دلیلي ددیدن کوررو | بیایه هم په زړه کښي بل مبني اوررو |

یعني زماروح پرمنزله دبدن دی اوروح ئي روح زمادمعشوق دی نوزه دځان دتداوي مطالبه نلرم بلکه تاسي زمادروح دروح تداوي وکړي وبس داوومعني دحقائقو دالفاظو . راغلو ومجازي معانیوته ددي بیت ودسابق بیت غبرگ دصوفیه کرامو په ژبه هغه داچه مرادباچاڅخه روح دمینځي څخه نفس دزرگره چه پس راځي دنیانومعني داسوه چه کوم وقت چه روح جفت سودنفس سره په مملکت انساني کښي نودنیاونفس ته حظوظ عاجله مزین کړه اونفس ئي په فتنه ښي ولویدي اومزاج ئي مختل سو دکدوراتو طبعیه وڅخه اوروح ته داختلاله دنفس ملل وغمگین پیداسوه پدي خاطرچه زه به هم ددي دلاسه مختل سم قدرت به دعروج ودرجاتو روحانیه وته پیدانکړم نوروح مراجعه واطباؤ روحانیه وته وکړه اومعجون دخلل ځني وغوښته پداسي حال کښي چه ځان تربیه ئي ددوي په قبضه کښي ورکړه اوخپل ځان ئي دتلمیذوشاگردپه حیث ورته ښکاره کړي اوتولو طبیبانو جواب په خپل حذاقت وقابلیت ورکړي مگردغسي نه وو بلکه ته چه بي وپیژني ۱۲

| | |
|---|---|
| **هر که درمان کرد مر جان مرا** (١) | **برد گنج و در و مرجان مرا** |
| څوک چه زما د روح مرض دارو درمان کړي | خزاني و ملغلري بــه دځان کړي |
| هر عاشــق چه یه په مینه پوخ ځګروي | بیابــه کله په ســود ا د مال وزروي |
| کــه څه زر څه ملغلــري و مرجــان وي | همه واړه بي معشـوق ورقربـان وي |
| دعشــق مینه ده بــالاتر مال وزره | تجربــي موږ ته ښودلي سربســره |
| دمجنــون خزانــه چیــري تالیدلــي | په کم کنج کښي دي دچاسه اوریدلي |
| خصوصاچه دي عاشــق دپاک الله وي | برابــــره ده ته پچه ووتلاوي |
| چه تمام سو دباچاعجز وخطابــــه | اوس به ګوروهر طبیب وايي جوابه |
| **جمله گفتندش که جانبازی کنم** (٢) | **فهم گرد آریم انبازی کنیم** |
| تولو وویل ســعیه کړوېر دي مزاجه | په ګډون بــاندي بــي وکړو موږ علاجه |
| موږ به ټول په مشوره نن داسي کار کړو | دا مریض بــه دمرضه بــر کنار کړو |
| موږ به ستا دمریض داسي تداوي کړو | ناقــراره زړه بــه ستابــالکل راضي کړو |
| ولي موږ خود دي وقت لوي ډاکټران یو | په دي فن کښي یو تربــله ماهران یو |
| ته غم مکړه موږ بــه جوړ کړو دامزاجه | سمدســتي بــي دمرض وکړو علاجه |
| مطمئن اوســه داکار موږ ته اسان دی | ني تشخیص نه ترخیص وموږ ته ګران دي |
| خوږه لافو شافو ګډ ســوه طبیبــانه | یوه داچه مولٰناکوي بــــیانه |

(١) همدارنګه لکه سابق خطاب دی اطباؤ ته لکن به انعام دادن په زیات مال باندي دایه ارتباط ، راغلو معني ته دبیت هغه داچه مرجان په مصراع اول کښي مرکب دي دمرو دجان څخه نو مر په فتحــه دمیم په ســکون درا. په معني دلام جاره وجان په معني د روح ومر الصل ئي من را وقت چه را. په نون پوري متصله سوه نو نون دتخفیف دپاره حذف ســو اوپه مصراع ثاني کښي مرجان لفظ واحد دي یو نوع دجواهرو څخه دی. نو معني دبیت داسوه هرچاچه علاج وکړي خاص روح لره زما نو ئي خزانه ملغلري مرجان دخانه سره یوو ړه یعني وي ګټل مراد داکه چاز ما دمعشوق او ملګري علاج وکړي او دمریضي چاره ئي وکړه مال به ځني ونه دریغه وم دلو، حقــائق دالفاظو راغلو وژبــه ته دصوفیه کرامو دوي دبیت په معني کښي دلــــي وايي روح وروحاني طبیبانو ته وویل چه هرچاکه زما علاج وکړي اودخلله دنفس ئي نجات راکړي نوزه به خپل استعداد دده شــکرانه کړم یعني هر چاکه زما د بــدن دملګري نفس لماره عــلاج وکړي او دخپل طبــعي مرضه څخه ني خلاص کړي لوزماتبــع ني وګرزلو نوزه بــه خپله خزانه دلــستعداد اتورده ته تسلیم کړم چه دي څه تصرت په کښي کوي هغه بــه کو لاي ســي خو متاسفانه هغه ســي څوک پیدانه سو بلکه پر ناقابلــه طبیبــانو ئي مغ ســـولکه پس چه بــي زده کړي والسلام ١٢

(٢) وقت چه خطاب دباچا وپاي ته ورســیدی لوس نوبت دجواب دطبیبــانو راغلــي چه مولٰنــا ددوي د جوابه څخه دلسي حکایت کوي جمله گفته الخ ،نو تناسب ولرتباط قائم سو راغلو معني دبیت هغه داچه کوم وقت چه باچا دخطابه فارغه سو طبیبانو تولو بالفور وویل چه موږ به علاج کښي دمریض کامل کوشــش کوو او خپل فکرو تو سره جمعه کوو په ګډون ددغه مریض علاج کوو دغه کله موږ ته اسانه دي او موږ ددغه علاج اهل یو لکه ددوي وروسته وینا چه داغه راته ښکاره کوي راغلو معني ته دبیت دصوفیه کرامو په ژبه هغه داوقت چه روح پر هغه په نامه روحاني طبیبانو چه هغو ددعوا دکان خلاص کړه ایه چوکی کښي دحب الریاست ناست وو خیال دکاملینو کړي نو ئي لدوي څخه معجون دوصلت دفرقته څخه وغوښته دوي په یوه پلا دروح وغوښته ته جواب په نعم ووایه مګر دوي اهل ددغه منصب نه وو ١٢

ابو الحفاظ : مولوي صالح محمد ( الارغستاني ) .

| | |
|---|---|
| **هر یکی از ما مسیح عالمی ست[1]** | **هر الم را در کف ما مرهمی ست** |
| هر طبيب سو مدعي دلو نښانه | په غفلت بساندي وکړي دا بيانه |
| هر يوز موږ خونن مسيح ددي عالم دی | په لاسو کښي زموږ دهر مرض ملهم دی |
| دمريض علاج په دوه سببه کيږي | يو طبيب چه په مرض بساندي پوهيږي |
| بسل دواچه دمرض وي موافقه | هم دارنګه دمزاج وي مطابقه |
| ډاکټري زموږ وعالم ته هويداده | هم په لاس کښي زموږ موجود هره دواده |
| نوبه ولي نه جوړيږي داوجوده | چه دادواړه سببه نه وي موجوده |
| په غفلت سره چه ګډ سوه طبيبانه | مولنا بي نواوس عجز کړي بيانه |
| **گر خدا خواهد نگفتند از بطر[2]** | **پس خدا بنمود شان عجز بشر** |
| مولنا اوس موږ ته بنه يي لبيبانو | افتخار و عجز غبرګ د طبيبانو |
| چه غافل دا ستثنا سوه طبيبانه | رب عاجزه کړه دوي ټول په هغه آنه |
| انشآء الله هيڅ طبيب نه وو يله | ني پر خوله راوړي دالفظ که خداي کوله |
| چه غافل دمشيته د الله سو | لامحاله ئي نو عجز وړ پخواسو |
| ته مه وايه چه صباکوم داکاره | مګر جفت دمشيت دخپل باداره |
| دافرمان دی د الله پروردګاره | خپل رسول ته راليږلي کردګاره |
| لاتقولن لشيءٍ ته بنه ګوره | استثنايه ده په ځنګ کښي زماووره |

(۱) مثل دسابق جواب دخطاب دی وقت چه طبيبانو وباچاته په سابق بيت کښي خپل کوشش بيان کړي اوس په دي بيت کښي خپل قابليت وو امکانات بيانه وي دايه ارتباط وتناسب راغلو ومعني ته هغه داچه طبيبانو ويل چه هر يوز موږ ځخه دخپل وقت مسيح دی يعني لکه مسيح عليه السلام چه واقعاطبيب اومعالج دامراضوو همدارنګه موږ دخپل وقت کامل طبيبان اوپوره علاج کونکي دامراضو يو همدارنګه دهر مرض دوا زموږ په لاس کښي موجود ده نو موږ قدرت دمعالجي دټولو امراضولرو ورابه سو معني ته دبيت په ژبه دصوفيه کرامو هغه داچه په جواب کښي دروح ناقصو مرشدانو دعوه دکمال وکړه اوو روح ته ئي دوکه ورکړه که ستازموږ وسابقو بيانو ته توجه وي نوبه دالنده مضمون درباندي مشکل نه سي نوردي پر خداي پاک سپارم والسلام ۱۲ (۲) وقت چه جواب د طبيبانو ختم سو وس مو لنا قدس سره ددوي غفلت په دغه جواب کښي بيانه وي نو وايي گر خدا هد الخ . دايه وجه دارتباط دلاحق دسابق سره دا غلو ومعني ته هغه داچه طبيبانو په خپلو خبرو لو دځانو په صفت کښي دلونه ويل که څيري لراده دخداي وه يعني انشاء الله نه ويل لودانه ويل ني دبطر په خاطروه ځکه چه دوي دباچاپه مطالبه ددوي ځخه په دومره فرح وخوشحالي کښي ولويده چه غافله دهرڅه ځخه سوه بطر په معني دشدة الفرح وانشاط دغفلته ځخه وقت چه دوي دغفلته ځخه انشاء الله نه ويل الله ددوي عجز ښکاره کړی چه دمينځي دمرض په تشخيص وو تدلوي کښي ناکامه اوشرمنده وګرزيده جهان هم داوليده وقت چه سليمان علي نبينا وعليه الصلوة والسلام په ترک دانشاء الله په خپل مقصد کښي ناکامه سوځه خيال دي پر طبيبانو دی ( عن ابي هريرة رضي الله عنه قال قال رسول الله صلي الله عليه وسلم قال سليمان عليه السلام لاطرفن الليلة علي تسعين امراة كلهن ياتين بفارس يجاهد في سبيل الله فلم يقل انشاء الله فطاف عليهن فلم تحمل منهن الا امراة واحدة جاءت بشق رجل وايم بالذي نفس محمد بيده لو قال انشاء الله لجاهدوا في سبيل الله فرسانا اجمعون ) نو لدي ځخه دامعلومه سوه چه انشاء په هر کار کښي لازمه ده لهذا نو الله پاک وخپل حبيب ته فرمائي (ولاتقولن لشيءٍ اني فاعل ذلك غداً الاان يشاء الله ) خلص داچه عادت الهي پر دي جاري دي چه غفلت سبب دناکامي ګرزه وي اوسري ناکامه ګرزه وي . راغلو ومعني ته دصوفيه کرامو په ژبه هغه داکوم وقت چه روح وهغه ناقابله مرشدانو ته مراجعه وکړه چه دوي په دکان کښي ددعوا اوسيدل لوړ کرسي دحب الرياست ناسته وه په کمال فرحت وغفلت ني داطمنان لاس وراوږد کړی هيڅ انشاء الله ني هم نه وويل ځود غرور وخجالت په کنده کښي ولويده ۱۲ ابو الحفاظ :مولوي صالح محمد ارغستاني .

| نی همین گفتن که عارض حالتیست | ترک استثنا مرادم قسوتی ست (۱) |
|---|---|

| | |
|---|---|
| تش په خوله وینافقط عرضي حالت دی | زما په ترک استثنامرادقساوت دی |
| مشـــیت په خوله ویل نوکافي نه دی | یعني دارمدارپرژبـــه بـــاندي نه دی |
| په حضورباندي دحـق لورته کتل دي | بـــلکه اصل مشـــیت په زړه ویل دي |
| دغه رنګ ویناپه ترک کښي به داخل وي | که په خوله مشیت وایي زړه غافل وي |
| کـــه په خولـــه نـــه وي پروانلـــري وروره | استثناکه وي په زړه کښي لوړدلوړه |
| پکارنـــه راځي څوزړه تـــه کـــوي لاره | کي په خولـه هرڅومره وایـمه زمایاره |
| خوپه خوله ویناغیرت هم زماوستادی | دامقـــــام عالي شـــــان دمولنادی |

| جان او با جان استثناست جفت | ای بسا ناورده استثنا بگفت (۲) |
|---|---|

| | |
|---|---|
| مګرزړه ئي استثناســــــره وي جفته | ډیرکســـان اســـتثنانه راوړي په ګفته |
| پرواضحـــه لارروان دطریقـــت دی | داپیشـــکه متثني بالحقیقـــت دی |
| هم پره کړي وجیبـــه داســــــتثناده | اداکړي وظیفه داســـــــــتثناده |
| چه په لفظ کښي مشیت نه غوښتل کیږي | خلـص کـلام دمولنـاپردي چلیـږي |
| چه آیات دقـــرآن بـــل رقـــم رغیږي | اوس نوماوتاته داســـــوال پیداکیږي |
| په قلبـــي حضوربـــه څنګه اکتفاکړي | هغه امرپه تلفظ داســــــــتثناکړي |
| په دقـــــت وځراکت بنه ورته ګوره | وجواب ته ســه بنه ځیردســـترګوتوره |
| دقلبـــي حضورســـره نوداجواب دی | نهي حـمل پرتادیب امراستحبـاب دی |
| خودمقام دتناقـضه سـه بـه خلاص سـي | که دي فهم دسابق بیت لاس پلاس سي |

(۱) وقت چه په سابق بیت کښي استثنا. په نه ویلو دطبیانو ذکرسوه لوس په دي بیت کښي مراددلستثنا. اوطرزوطریقه دویلو بیانه وي دایه تعلق ولرتباط دي .راغلو . ومعني ته دبیت هغه داچه دلوقول دمولنا قدس سره **مرادم** احتمال لوي ددي چه په ضمه دمیم اوپه فتحه درا. اوپه کسره ددال ئي ووایونوئي معني داچه مرادومقصودزماد ترکه داستثنا. قسوت وسختي دزړه ده یعني غفلت دده همدارنګه احتمال لوي چه په فتحه دمیم اوپه سکون درا. په معني دلام جاره لوبعدئي په فتحه دهمزه بعده الف سره دفتحي ددال ووایونوئي معني داچه ترک داستثنابني آم لره قسوت وسختي دزړه ده دادمصراع لول معني سوه دمصراع ثاني معني داچه استثنامجرد قـول په خوله بـاندي نه دی ولي دایوعرضي حـالت دي دقلبه ثاثـي نه دی نوویل په خوله سـره دغفلته دزړه په نیـت شـمیرل کیږي پرموجـب ددي چه ان الله لاینظرالي صورکم واعمالکم بـل ینظرالي قلوبـکم ونیا تکم) خلاصـه داچه ویـل تش په خوله سره دقسوت وغفلت دزړه په ترک کښي داستثناداخل دي لوقسوت وغفلت دطبیبانوددي د غروره څخه معلوم ســونو که څه هم استثناوي په خوله ویلي یایه ووایي په نیت شمارده ۱۲

(۲) وقت چه په سابق کښي اشاره ونه کفایت ته داستثنا ئي لسانـي وکړه لوس په دي بیت کښي اشاره وکفایت ته داستثنائي قلبـي کوي نووایي اي بـالغ . دلوو لرتباط راغلومعني ته هغه داچه ډیرخله یوسړي استثنا پرخوله نه راوړي مګرروح ئي داستثناسره جفت وي یعني روح یه دتفویضه سره دلموروجانب ته دحـق جل جلاله جفت وي لوشک نسته چه دغه شخص مستثني بالحقیقـت دی نومعلومه سوه چه دخوني ویل مطلوب نه دی قلبي ویل بسنده دي لوس بـه نوخودلسوال مخ ته راسـي چه داتقریرخودآیة کریمه دمضمونه مخالف سوچه الله جل جلاله فرمائي (ولاتقولن لشئ الخ) ځکه مخالف سوچه شان نزول دآیة کریمه خوداذي چه رسول الله صلي الله علیه وسلم یو وقت په یوکارکښي انشا. الله نه وویل الله ج .پرطریقه دعتاب ورته وفرمایل ولاتقولن لشئ الخ .لودانځوثابته خبره چه روح وزړه درسول الله صلي الله علیه وسلم طرفة العین دیاده دالله نه دی غافله سوي نومعلوم چه قلبي یادکافي نه لساني غوښت غولري نوجواب به دي وایو چه نهي په آیة کریمه کښي حـمل پرتادیب لکه قـاضي بـیضاوي چه پدغه تصریح کړي نوحـاصل داچه مشـیت په زړه که څه کافي دی خوشک نسته چه په خوله ویل دجناب سره دصحدیت لائق دي نوپه خوله ویل سره دجفت والي دزړه لولي دی نوپیغمبرعلیه الصلوة والسلام پترک لولي معاتب لومخاطب سوځکه چه حسنات الابرارسیئات المقربین ۱۲

| هر چه کردن از علاج واز دوا [1] | گشت رنج افزون وحاجت ناروا |
|---|---|
| طبيبانو چه وس وكړې پردوا | رنځ كم نه سو بلكه زيات سو ترېخوا |
| څه علت وو طبيبان وه ناپوهانه | تش غرور وُاتكاء يه پرخپل ځانه |
| څه مرض وو څه دوايه وركوله | په اصلي مرض خبر نه وه بالكله |
| هر طبيب چه مرض نه وي تشخيص كړي | دمريض مزاج ئي نه وي تخصيص كړي |
| نو تطبيق ئي ددوادې غلط كاره | په داغه عمل به دې وي بزه ګاره |
| دمرضه مخالفه چه دوا سي | خامخابه نو مرض باندي بالا سي |
| جهالت به دطبيب واضح ښكاره كړي | حماقت بي وعالم ته ننداره كړي |

| شربت وادويه واسباب او [2] | از طبيبان بريخت آبرو |
|---|---|
| داده مينځي شربتوُ دواګانو | يو مخ ختم كړي عزت دطبيبانو |
| چه دوا اثر نه كړي پر مريضانو | خود پايمال به سي آبرو دحكيمانو |
| هر اثر دخپل مؤثر دليل برهان دی | دعزت وذلت ئي ترجمان دی |
| چه پر علم مرتب نه سي عمله | دابي ځينه آس به وبولو همله |
| هر عالم چه بي عمله بي بنيادسي | نور واچه دجاهل نوم د پيريادسي |
| چه تقوٰي ملګري نه وي دفاضله | نو نداور ته رواده په جاهله |
| يا الله ته خو تقوٰي زموږ پيشه كړي | دنامه سه دجاهل مو ته ګوښه كړي |
| ربه ته موږ ته عمل په علم راكړي | يا الله ته مو قبوله دادعا كړي |

(۱) وقت چه په سابق كښي حال دطبيبانو په قولي دول باندي بيان سو لوس حال ددوي په عملي وعلاجي تو ګه بيانه وي دايه تعلق ولرتباط راغلو ومعني ته دبيت هغه داچه هرڅه طبيبانو په علاج كښي دمريضي مينځي ددوا وو او شربتو نو استعمال وكړي مرض ئي كم نه بلكه زيات ئي كړي ځكه چه دوا موافقه دمرضه سره نه وه دوي اصلي مرض نه وو تشخيص كړي نو ناپوهي دطبيانو ښكاره دبا چاحاجت پوره نه سو دمينځي علاج ونه سو بلكه مرض ئي ترېخوا ډير سو لا في ودعوٰي وي دطبيبانو په تزوير وپېژندل سو دلو وحقيقت دالفاظو صوفيه كرامو څه وايي دا، وقت چه روح دپاره دعلاج دنفس ومزورينو شيخانو ته لو جاه طلبو او دنيا پرستو ناقصو پيرانو ته مراجعه وكړه لو دوي سمدستي ودغه علاج ته په زيات غرور وفرح بيله استثنا ليک ووايه په دومره غفلت چه زړه بي دمشيت هيڅ جفت نه وو نو دوي په خپل ارشاد وعلاج كښي دلسي نه چه دنفس مريضي ئي دفعه كړه بلكه لرشاد وو علاج ددوي دمريض دپاره زهر سوه نو دروح حاجت پوره نه سو دنفس علاج ونه سو نو دسره مراجعه وحاذق طبيب لو مرشدي كامل ته پكار ده ۱۲

(۲) وقت چه حال دطبيانو په عمل وعلاج كښي بيان سو، لوس وقوع داثر ددوي دعمل وعلاج پر دوي بيانه وي يعني دطبيانو عمل وعلاج دوي آبرومندو ګرزه ول كي بي آبرو كړل نو وايي شربت ولدويه الخ، دايه تعلق ولرتباط، راغلو ومعني ته دبيت هغه داچه هغه شربتونو ودواګانو چه دغو ناقابلو حكيمانو ساخت وباخت كړي وي لو لباب دمرض دمينځي چه دوي تشخيص كړي وه لوپر تطبق دهغه ومدلواته متوجه سوي وه يو مخ آبرو دحكيمانو ختم او توي كړي ځكه چه ددومره لافو وشافو سره وبا چاته په علاج كښي دمريض ناكامه او وعالم ته شرمنده وګرزيدل نو ضمير داوړه بيت كښي ومرض ته راجع دی دلوه حقائق دالفاظو، صوفيه كرلم وايي چه هغه توجه ګانو او مراقبو چه مزورينو شيخانو ساخت وباخت كړي وي او هغه اسباب دمرض دنفس چه دوي په ادعا. تشخيص كړي وه او دهغه ومداواته په تزوير متوجه سوي وه يو مخ ني آبرو دمزورينو شيخانو ختم او توي كړي ځكه چه وروح ته ناكامه لو وتو لو سالكانو ته شرمنده او رسوا سوه ۱۲

ابو الحفاظ: مولوي صالح محمد ارغستاني .

## آن کنیزک از مرض چون موی شد (۱) ‖ چشم شاه از اشک خون چون جوی شد

هغه مینځه دمرضه تارونار ســـوه ‖ دبــاچاواوښکي واله دګل انارســوه
خودمنـــځي زړه زرګروو تبنتولــــی ‖ بــاچاخپل زړګي پرمنځه ووبـایللی
چه دعشق توده لمبه پردوي بلیږي ‖ یو تارناردبل بـه خودانبکي بـهیږي
دمعشوق بدن چه سي رنځوربیماره ‖ دعاشــــق پرزړه ایږدي داورپرهاره
چه توښونه ئي وسـرته پورته کیږي ‖ نوبـه ولي په سـرواوښکونه ژړیږي
دبدن زخم زغمل تحت الامکان دی ‖ خودزړه پرزخم صبربالکل ګران دی
ولي زړه خودبـــدن بـــاچانومیږي ‖ نوبدن بـه خودپه ده بـاندي لرزیږي

## چون قضا آید طبیب ابله شود (۲) ‖ آن دوا در نفع خود گمره شود

چه قضا راسي درب طبیب نادان سي ‖ دوانه کوي فائده حکیم حیران سي
په داروچه علاج نه کوي حبیبـــــه ‖ نوبـه خودناکامه پاته ســي طبیبـه
افلاطون دطبابـــتـه ســـره څه ســـو ‖ جالینوس دذکاوته ســـره څه ســـو
چه قـــــضائي الهي ګډومزاج کړي ‖ طبیبان به ئي نوڅه رنګه علاج کړي
نو تکیه بـــایدونه ســـي پراسبابـــو ‖ دانکته به یادکښي ولري احبابــــو
سبـــــب ډیرځله تاثیرنه کوي یاره ‖ ماوتادا پیژندلي ده باربـــــــــاره
بـــــلکه ډیرځله خلاف دخپل اثره ‖ بـــــــرملاوماوتاته کړي اظهره
راڅه وګوروه نبـــــــي خلیل الله ته ‖ همدارنګه یه وزوي ذبـــــیح الله ته

(۱) وقت چه په سابق بیت کښي دابیان سـوه چه علاج دطبیبانورنځ زیات کړي اودباچامرادحاصل نه سو اطبیبان بې آبروسوه نوسائل ته دلسوال پیدلسوچه پس تردغه نوحالت دمنځي اوباچاڅنګه سواوپرڅه حالت ئي زندګي وه نوجواب دلسوچه آن کنیزک ازمرض الخ .دایه تعلق وارتبـاط راغلومعني ته دبیت هغه داچه هغه منځه دمرضه دلسي ډنګرسـوه اوداسي نری وګرزیده لکه ییښته اوستر ګي دباچاپه سرواُښکوداسي بهیده کول لکه اوله یعني ډیره ژړاتي کوله ځکه چه ملګري اومعشوقه منځه ئي طبیب حاذق ته نه ورسـیده داوه حقائق دالفاظواوس بـه وګورو چه صـوفیه کرام څه وایي هغه داچه نفس دخواهشـاتوپه امراضوتربخوا زیات اخته ســوپه ضعف معنوي ودلسي حدته ور سـبدي چه تر ییښته نری ســـو اوروح په ژړلوفریاد ســوچه خپل بدني ملګري ئي دمرشـدکامل ته نه ور سـبدی دده مرض ولنهماک زملومقـــاصدوته خندور ګرزیدي والسـلام ۱۲
(۲) وقت چه په سابق بیت کښي لبـــاب دناپوهی دطبیبـــانولودعدم اثرد دولوزیادت مرض دمنځي اوزیاتي غمګیني دبـــاچا بیان کړل اوس په دي بیت کښي اصل علة حقیقــــي ددغه امورونـــیاته وي نو وایي چون قـــضاآید الخ. داوتعلق وارتبـــاط راغلو ومعني ته دبـــیت نووایو وقـت چه قـــضاء الهي پرنه شـــفاء دیومریض چلیدلي وي نوطبیب په تشـخیص وعلاج کښي ناپوه وګرزي همدارنګه دواپه دفعه کښي دمرض بـــي اثره وګرزي بـلکه منفي اثروښندي لکه دغه طبیبـــان چه دمنځي دمرض په تشـخیص کښي ناپوهان وګرزیده اودوائي بـــي اثره بـــلکه بـــداثره وګرزیده ددي سِراواصلي علت داووچه قضاء الهي پردي چلیدلي وه چه داعلاج به ددوي په واسطه نه کیږي بلکه داکاربه په سبب دطبیب مهمان اوحکیم الهي کیږي داوه حقائق دالفاظوهمدارنګه چه قضاء الهي پرتزکیه دیونفس نه وي چلیدلي نو مرشدئي په تزکیه کښي پاته راسي خلص داچه اسباب پروفاق دقضاء اثرکوي وبس ۱۲

ابوالحفاظ :مولوي صالح محمدارغستاني .
الراقم :سیدمولوي عبدالهادي الهاشمي .

| | |
|---|---|
| ازقضاء سرکنگبین صفراء فزود[(۱)] | روغن بادام خشکی می نمود |
| دقضاسه سکنجبین صفرازیاتیکړي | بادام زوني دخشکي هوازیاتیکړي |
| هرطبعي خصلت قضالره تابع دی | لامحاله خپل الله لره طائع دی |
| چه خلیل اورنه سوځي څه توجیه کیږي | داطبعي خصلت داورولي پاتیږي |
| په تیره چاړه ذبیح نه حلالیږي | داطبعي خصلت نوولي پاته کیږي |
| داقضاء الهي پردي روانه | چه نه این دغه کوي نه هغه آنه |
| چه خالدزهرچښي هیڅ نه په کیږي | بسته جام چه نوشوي هیڅ نه په کیږي |
| چه دزهروخپل طبعي خصلت پانیږي | داقضاء الهي ده چه چلیږي |
| ازهلیله قبض شداطلاق رفت[(۲)] | آب آتش رامدادشدهمچونفت |
| هریړه لړي شهرت په طب کښي وروره | چه دقبض ماتونکي ده هرګوره |
| چه قضاء دالله راسي پرمزاجه | هریړه به قبض پیښکي لاعلاجه |
| اوروژنه ښکاره وینوپه اوبوکښي | هم اثرئي په سکروتوولمبوکښي |
| چه قضاء الهي سي پریل لوره | تیل مانندہ به تازه کړي اوبه اوره |
| خلص اسباب ټوله مرهون په اراده دي | تاثیرات ئي دالله په اشاره دي |
| زماوستابه عقیده وي طالب جانه | چه مؤثرحقیقي رب المنانه |
| هودنیادارپه اسبابوسناري دی | هوعادت الهي باندي جاري دی |

(۱) لکه په سابق بیت کښي چه راتګ دقضاء الهي پرخلاف داسبابوذکرسواوس هم داغه مضمون په بل مثال توضیح کوي لکن په سابق کښي تصریح په نقیض داثرنه وه دلته ئي هغه تصریح هم وکړه نوترقي دادني څخه واعلي ته راغله داوو تعلق وارتباط اوس به معني دبیت زده کړو هغه داچه قضاعبارة دامرالهي څخه ده اوس کنګبین مرکب دسرکه وانګبین څخه دی مجموع المرکب نوم ددوا. چه مرکبه دسرکي ودعسل څخه ده چه زموږ وستاسي په ژبه سکنجبین ورته وایي جوړښت ئي دپاره دازالي دصفراء کوي پزود بمعني دزائد لکن مرادځني محرک دی حاصل دمعني دبیت داچه دامرالهي څخه داوي چه سکنجبین سره ددي چه دی دافع دصفراء دی مګر صفراء زیاتي کړي همدارنګه روغن دبادام خاصه ئي ترطیب دطبیعت دی مګروچوالی زیاتي کړي علت څه وي کثرة اعتماد داطباء وپردواګانونوباید پراسبابوکاماه تکیه ونسي ۱۲

(۲) سابق غوندي مثال دی هم دتوضیح دپاره راوړه سوي دی لکن پته نه ده چه قوت دسبب اوبعد دنقیض په دي بیت کښي فوق دی تراول نودلته هم ترقي دادني څخه واعلي ته ده راغلو معني ته د بیت هغه داچه قضاء الهي پرخلاف دطبیعت داشیاو راتګ کوي مثلادهریړي طبیعت داسهال تقاضي کوي خودیرځله په قضاء الهي پرخلاف دطبیعت قبض پیښ کړي همدارنګه طبیعت داوبو تقاضي دوژلو داورکوي خودیرځله په قضاء الهي پرخلاف د طبیعت اورته تازه ګي ورکړي نوپدي بیتونوکښي ردپرحکماوسوچه دوي طبیعت موثربولي اودمؤثرحقیقي څخه غافل ګرزیدلي دي داوه حقائق دالفاظو، دصوفیه کراموپه ژبه دلسیه وایوچه هغه مزورشیخ چه ځان ئي خوږاومزیل دتلخي دهجران جوړکړي اودتطیب ددماغ داړواحودعوه ئي کړي لوځان ئي قبض کشادباطن معرفي کړي اوپرځان ئي دمزیل دمضراتونوم ایښي اوغیرمستعدوسالکانووده ته رجوع کړي وي لودده څخه ئي مطالبه دازالي دخپلوشکوکوواوهاموو خیالاتوکوي دی نودتذویرپه ژبه بدون علمه جوابونه ورته وایي نوئي مرض پرمرض ورزیات کړي اوهغه مستعدسالکین طلب دصحبت ومرشدکامل کوي هغه ته ځان رسوي نوددغه ورطي څخه نجات پیداکړي ۱۲

ابوالحفاظ :مولوي صالح محمدارغستاني .

| | |
|---|---|
| سستی دل شد فزون وخواب کم[1] | سوزش چشم ودل پر درد وغم |
| مولٓنا چه په سابق تمثیل اداکی | اوس ئي بیرته مخ پر لوري دبـاچاکي |
| واي دزړه ضعف ئي بالاخوب ئي هم کم سو | خوړ دسترګو زړه ئي ډک ددرد وغم سو |
| هغه زړه چه وي دغمه سـه کبابـه | نو بـه کله ارامي راوړي په خوابـه |
| هغه سترګي چه دزړه په دردژړاکړي | هم به خوړ هم به سوزش واړه پیداکړي |
| دعاشق زړه په معشوق پوري ترلی | دمعشوق په مرضي ګرزي اُمه ړی |
| خو ضعیف خو دبـه بـي خابـه دازمان وي | دمعشوق په دردوغم بـه لالهان وي |
| چه دعشق تو ده لمبـه دچاپخواوي | خوب ئي کم دسترګو خوړبي خامخاوي |

ظاهر شدن عجز حکیمان از معالجه کنیزک بر بادشاه وبدرگاه حق تعالی رو[2]

آوردن بادشاه ودر خواب دیدن بادشاه آن ولی را وحل مشکل او

| | |
|---|---|
| تناسب ددي عنوان وحکایته | مخفي نه دی پرخاوند دځر اکته |
| دي عنوان کښي موږ ته خوشیان فرمایي | مولٓنا په خوږه ژبـه راته وایي |
| اول داچه باچاعجزکړي الله ته | په ادب ئي رجوع وکړه خپل مولاته |
| دوم عجزئي مشکل کړی وراسانه | چه طبیب الهي ئي سو مهمانه |
| دریم ده ادب اخلاص ډیر سربسر کړي | دحکیم الهي ئي ځان نوکر کړي |

(۱) وقت چه دتوضیح څخه په امثله فارغ سو نو بیرته رجوع وبیان ته دحال دباچاوکړه لکه ترامثله په سابق بیت کښي اعني چشم شاه الخ .نو لکه هلته چه حال دباچاپه ډیرښت دژړابیان کړي وودلته ئي حال په ستي دزړه اوپه سوزش دسترګواوپه ډک والي دزړه دغمه څخه بیانه وي نوو ایي ستي دل الخ .دایه تعلق وارتباط راغلو ومعني ته هغه داوقت چه باچادطبیبانو دعلاجه ناامیده سو نو ئي ستي دزړه ډیره سوه خوب ئي کم سو سوزش دسترګو ئي ملګري سوزړه ئي ددرد وغمه ډک سو هم دارنګه دصوفیه کرامو په ژبه روح نهایتي عمجن سو په نه علاج دنفس دناقصه مرشدانو دلوره اوناامیده پاته سو .دا بیان که څه مختصر دي خو پر سابق تفصیل بـاندي اعتماد کو بیره نه لروچه تانه دي تشویش پیدلسي اوس دبیت په دوهمه مصراع کښي خبره کوو هغه داچه په لفظ کښي دسوزش واو عاطفه مقدر دی او معطوف پر ستي دل دی او .ودل پر درد غم معطوف پر چشم دی .نو معني داچه سوزش چشم وسوزش دل پر درد وغم فزون شد .او که چیري لفظ دسوزش عطف په تقدیر دعاطفه نه کړونو بـه خبر محذوف کوونو بـه معني دلسي سوزش چشم وسوزش دل پر درد وغم پیدا شد ۱۲

(۲) تناسب ددي عنوان دحکایت سره پدي خاطر دی چه په حکایت کښي بیان دتدبیر دمعالجي وو اوپدي عنوان کښي بیان دعجزدمعالجي څخه دی داوو تناسب دعنوانینو راغلو تناسب ته ددي عنوان دبیت سابق سره هغه پدي خاطر دی چه حال دباچاپه بیت کښي فزیادت دستي دزړه اوپه کمښت دخوب اوپه سوزش دسترګو اوپه ډکوالي دزړه له درد وغمه څخه دلیل دعجزدی وایس راغلو معني ته دعنوان هغه داچه داعنوان په بیان کښي دظهور دعجزدحکیمانو دمعالجي څخه دمنځي په نیز دباچااو توجه دباچاودربارته درب العلمین خداي اوپه خوب لیدل دمبشر غیبي اوطبیب الهي چه مراد مرشد کامل دی بیا راغلو دصوفیه کرامو وژبـه ته هغه داچه وقت چه مزورین شیخان دعلاجه دنفس عاجزه سوه نوروح ودربارته دالله مراجعه وکړه الله ني مشکل په رهبري دمرشدکامل ورحل کړي متدبراوسه ۱۲

(۱ تعلق وارتباط ددي بيت دعنوان ودسابق بيت سره تازموږ په وړاندي بيان کښي زده کړه درپيادئي کړه .راغلو ومعني ته هغه داکوم وقت چه باچاعجزدطبيبانو وليدي او اميددعلاج ئي څني قطعه نولخي پښي دمسجد پرلور په زغستاولاړي او والله جل جلاله ته ئي پناه ورووړه او پردي ئي زيادت ديقين جوړسوچه مشکل کشابي الله بل څوک نه دي .داخبره به هم زده کړوچه ددي بيته اوڅو آينده بيتوڅخه داحکم څرگنديږي چه کوم وقت وبنده ته يومشکل مخ ته راغلي بايدبنده په کمال عجزوانکسار وطرفته دالله په حضوردزړه وروح متوجه سي بلکه ژبه هم بايدپراظهاردعجزوانکسارماته کړي صوفيه کرام په دي مورددلسي بيان کوي کوم وقت چه سالک دقبلي څخه دهوا وقبلي نه دحقيقت رجوع ونه کړي ومحراب ته د مرشدکامل به وصول ورته اسانه سي لوړمقصوداصلي به نه ولگيږي لکه لمونځ گذارچه دوهم وخياله خلاص نه سي دوهم دتشبيهاتو وتزويراتو به خلاصي ورته اسانه نه سي اومقصود اصلي نه به د(ان الصلوٰة تنهي عن الفحشاء والمنکر) ونه رسيږي .نوکم وقت چه روح پروجه مشرحه مخ پرسجده کښيږدي نو پرده باندي شغلي دجذبات الهيه وخليږي اودنفسه به غائب سي او په درياب کښي دهوية به مستغرق سي ۱۲

(۲) په سابق بيت کښي بيان دنگ ددباندي څخه وطرفته دمسجدووړه دي بيت کښي بيان دنگ په مسجدکښي وطرف ته دمحراب دي دايه تناسب وارتباط راغلو معني ته هغه داچه باچاولاړي په مسجدکښي وطرف ته دمحراب او په لمانځه کښي داخل سوپه دومره جوش وخروش چه ځاي دسجدي ئي داوښکودک سونودامعلومه سوه چه بنده دي په وقت ديومشکل ومتبرک ځاي ته پناه وړي او په لمانځه دي استعانة غواړي .دصوفيه کرامو په ژبه کوم وقت روح سالک دناقصومرشدانو عجزوليدي نو ئي په کمال اخلاص وطرف ته دسلوک دخانقاتگ وکړي اوهلته ئي په عجزوزاري دخپل مشکل حل په واسطه دپيرکامل وغوښتي څوومرشدکامل ته ورسيدي او په خپل مقصودکښي بريالي سولکه باچا والسلام ۱۲

ابو الحفاظ :مولوي صالح محمدارغستاني .

| شه چو عجز آن حکیمان رابدید (۱) | پابرهنه جانب مسجد دوید |
| --- | --- |
| شاه چه وليده عاجزه طبيبانه | لخي پښي نومسجد ته سوروانه |
| ده داحس کړه چه اصلي شافي الله دی | دبنده طبابت داسي نيمه خوادی |
| نو په عجزوکميني دحق ولورته | درروان سوخوداخل ئي سووکورته |
| دالوي بخت چه دباچا په برخه کيږي | چه دخپل خالق وکورته داخليږي |
| رب بيشکه چاره گردی وبيچارته | چه پناوروري دده ولوي دربارته |
| چه باچاسو پناوړونکي په اخلاصه | موجوده مشکل ئي حل سوسم دلاسه |
| دالله څه چه موجوده مشکل اسان سو | خودطبيب الهي دده مهمان سو |
| دحضيضه دناسوت ئي لوړ باچاکړي | مرتبي ته دلاهوت ئي هم بالاکړي |

| رفت در مسجد سوی محراب شد (۲) | سجده گاه از اشک شه پرآب شد |
| --- | --- |
| باچاولاړي ومسجدته چه رسيږي | په محراب کښي والله پاک ته ژړيږي |
| پرداغه ځاي پرلمانځه باندي دريږي | سجده گاه په دسرواوښکوڅخه ډکيږي |
| کي زاري کي عبادت که په ژړاوه | همه واړه په اخلاص وپه رشتياوه |
| داحتياج په جامه پټ خواست وزاري کړي | وغني پروردگارته عاجزي کړي |
| چه محتاج غوندي ورځي وخپل بادارته | هم په عجزداخليږي لوي دربارته |
| بيادپاک الله په کورکښي دی ژړيږي | نوبي ولي حاجت نه دسره کيږي |
| دجوادپرکورچه ږغ کړي يوملنگه | نوبه کله ځني ولاړسي بيله پنگه |

**چون بخويش آمد زغرقاب فنا (۱)**    **خوش زبان بکشاد در مدح وثنا**

چه دجوشــــه دفنادې رابيدارســـو    په بنه ژبــه په ثناد خپل بادارسـو

په فناکښې لمون تللي وه دلاســـــه    څه گلان به درته راوړي دسپاسه

په حالت داستغراق کښې دی مدهوش وو    دهمه واړه اشياو څخه بيهوش وو

نــه ئـي فکـردخپل ځان نــه دجهـان وو    نه ئي ذکر دزمين نه داسـمان وو

دفناڅخه چه بقــــاته راســـتنيږي    نوبه حمدبـي دالله ژبــه چليږي

دباچادمدهوشـــــي څه وجيبـــه وه    خورجوع يـه والله تـه ذريعه وه

دابـــيخي بنه مدهوشـــي ده زماوروره    داعجيبـه بـيهوش ده زماوروره

**کای کمینه بخششت ملک جهان (۲)**    **من چه گویم چون تو میدانی نهان**

اوس بـــاچاپه ډيرادب ووپرمآبــــه    والله خپل ته کوي داســـي خطابــه

ستاکمکي بخښش پرماملک جهان دی    زه څه ووايم وتاته ســــرعيان دی

انعامونه ســـتاپرمادي بــــي پايانه    کي شــــميرمه نه لرم ددغه توانه

يونمونه دي دانعام لوبـــــــاچهي ده    چه بـخښلي دي وماته داشـاهي ده

په دي مثل هزارهاتيرتربـــــــيانه    نعمتونه دالله دي بــــــي پايانه

ياري څيرســـه دباچاولورمقـــام ته    يــاري وگوره دده موجزکـلام تــه

په څه لند مضمون ئي خپل مقصداداکړي    دخپل زړه مطلب ئي توله برملاکړی

(۱) وقت چه په سابق بيت کښې حال دبيهوشي دباچاپه اشاره ددي عبارت چه سجده گاه ازاشک الخ ،بيان سوه اوس ئي دهوش حالت بيانه وي نووايي چون بخويش امد الخ، دايه تعلق وارتباط راغلو ومعني ته هغه داکوم وقت چه باچادبيهوشي څخه وهوش ته اودفناڅخه چه هغه لکه غرقاب وبقاته راغلونوئي خپله بنه اومليحه ژبـه په مدحـه اوثناکښې دالله جل جلاله وچلول ،دفنا وبقاتفصيل موږوتلسي په سابق کښې سره زده کړي خواوس دلته په لنډه توگه داسي ،وايوچه فناپه عرف کښې دصوفيه کرامو دي ته وايي چه سالک خپل افعال خپل صفات خپل ذات متغير کړي اوداضافته څخه داموروخپلو افعالو وصفاتو وذات ،ته دبلندي ووزي لودهمه اوســت په مقام کښې وگرزي خودلته مرادنفس بيهوشي وهيبت دي دصوفيه کرامو په ژبــه وقــت چه روح دســالک د بيهوشـــي څخه وهوش ته الخ ، وروســته ،دلوايوچه ددووسابقوبيتو څخه عجز وانکساربدني وقلبي معلوم ســوخوبدي بـيت کښې ظهارلـــــاني ددغه عجز انکـــارکوي نودادوهمه چه دلرتباط هم سوه ۱۲

(۲) پس ترذکره دثنالوس ـاعث دثنابـيانه وي دايه رتبـاط وتعلق ســوراغلو ومعني ته هغه داچه لفظ کاي مرکب دي دکه څخه چه دبـــيان دپاره دی لودا داته څخـه دنداچه اي دی لومنادي محـــذوفه ده چه الله دي اومراددملک جهان څخه ســــلطنة ددنيادی والمعني ياالله ســــلطنت ددنيلـستايومخفي اوورکي عطاده چه ماته دي راکړي ده نـورزه څه ووايـم تـه په ســرواخفي زماخبـربي زما ومنځي وظـبيانوحال هيڅ درڅخه پټ ندی ،دصوفيه کرامو په ژبه معني داچه روح وايي ياالله سلطنت دبدن چه هغه دعالم کبير دجملي څخه دي ستايومخفي لوورکي اعطاده چه ماته دي راکړي نورزه څه ووايم زماونفس وناقصومرشد انوپه حال ته بنه خبرئي

ابو الحفاظ :مولوي صالح محمد الارغستاني .
الراقم :سيدمولوي عبدالهادي الارغستاني .

(۱) دابیت بیان دسابق دی نوارتباط قائم سو ،راغلو معني ته هغه داچه حال زماچه رجوع مي طبیبانوته وکړه لوستاوجناب ته یاالله ملتجئ نه سوم همدارنګه حال دطبیبانوچه دغرورڅخه ني لستثناء ونه کړ لواعتمادئي پرخپل کمال باندي وکړي ستا ولطف عام ته سرترپایه ناڅیزه دي یعني زموږجرائم وتقصیرات ستاولطف ته په معني دهیڅ دي په ادني عنایت ستاعفوه کیږي نوسربسر تاکید دطبیبانو یادماؤطبیبانو دی. اوهدر په فتحتین په معني دباطل وناڅیزه دی ،همدغه رنګه روح ددغه مثل بیان کوي دصوفیه کرامو په ژبه قیاس ني مخفي نه دی ۱۲

| حال ما واین طبیبان سربسر[1] | پیش لطف عام تو باشد هدر |
| --- | --- |
| تول حال زماؤطبیبانو که بیځادی | ستاولطف ته دصفرپه معنادی |
| حال زماچه ملتجئ نه سوم حبیب ته | په غفلت مي پناه یووړه وطبیب ته |
| داسي حال دطبیبانوچه نادان وه | دالله دمشیته غافلان وه |
| تقصیرزماوطبیبانو کردګاره | ستاوعفوه ته هیڅ نه دي اي باداره |
| ګنهګارچه قبله وي هغه الله یي | چه عیبونه پټوي هغه الله یي |
| چه جرمونه وربریږدي هغه الله یي | چه سل قتله وربخښي هغه الله یي |
| ته عفوعفوه دي غواړم هرزمانه | پرغافله بنده ته سي مهربانه |
| اى همیشه حاجت مارا پناه[2] | بار دیگر ما غلط کردیم راه |
| اي زماربه ته همیش ئي مهربانه | حاجتونه پره کوي زماهرزمانه |
| مګرزمادخو اجفاده په باره باره | ستادلوري سه وفاده په وارواره |
| دائل بیاغلطه کړي ده مالاره | ستادعفوپه امیدیمه باداره |
| دپخواپه شان دبخش امیدواریم | ودربارته دي راغلي توبه ګاریم |
| عذرغواړم ته بي نیازه کردګاریي | هم عافي هم معافي پروردګاریي |
| ناپوهي مي تکیه وکړه وطبیب ته | په غفلت مي رجوع نه وکړه حبیب ته |
| دابل ځل ده جریمه زمااي رحیمه | ستاکرم مي تکیه ګاه ده اي کریمه |

(۲) وقت چه په سابق بیت کښي بخښن دجرمي په ناڅیزیت بیان کړي لوس ئي په دي بیت کښي په مالوفیت بیانه وي دایه تعلق ولرتباط راغلو معني ته هغه چه اي هغه ذاته چه ته همیشه مالره حاجت رولوي بار دیگر مي هم حاجت رولسه ما لارغلطه کړي داپرهغه تقدیرچه بار دیگر په لوله مصراع پوري مربوط سي یامعني داچه اي هغه ذاته چه ته همیشه مالره حاجت رولوي ملارغلطه کړي بله پلا یعني زه همیشه مصدر دخطیناتو وګناهونو کیدم سره دهغه نادخپل کرم په حیث زما حاجت رواکاوه نو دابلا چه زماڅخه بله جریمه وسوه هغه رجوع وغافلو طبیبانو ته نو دابلا هم په علادت قدیمه بالندي بنایي چه زماحاجت دسره لولادا کړي احتیاج دعاته نسته داپرهغه تقدیرچه لفظ دباردیگرپه مابعدپوري متعلق سي نوبه نوموړي لفظ په معني دمرتبئه اخري اوبله پلاسي نه په معني دومي مرتبي ودومي پلاچه باره نوتلابن داولي مرتبي ورته ضروري سي داهم کیدلاي سي چه باردیگردومي مرتبي وپلاپه معني سي چونچه ددومي مرتبي دپاره تعین داولي مرتبي ضروري وواودلته نسته نوپه جواب کښي داسي ویلاي سوچه اول دي غلطي مراجعه وطبیبانوته سي دوهم دي دعاء دعلام الغیوبه څخه سي اومابعددي استدراک ددغه غلطي څخه سي خوږدي معني کي هغه څه سته چه پکښي سته دصوفیه کرامو په ژبه خطاب کونکي روح نورقیاس کړه ۱۲

تالیف ابو الحفاظ :مولوي صالح محمد (الارغستاني).

الراقم :سید مولوي عبد الهادي ارغستاني .

(١) دي خبري ته بايد متوجه سو چه دسباقه لوسياقه دقصي معلوميږي چه باچاد الله جل جلاله څخه دخپل مقصد دعاوو غوښتنه کړي ده نو په سابق بيت کښي چه باچاد اخبره وکړه چه ،من چه گويم الخ،نو پر تقدير د توجيهينو اولينو په بار ديگر کښي داوخته چه دمقصد دادا پاره ودعاوغوښتنه ته حاجت نسته نو سمدستي دباچا څخه دا سوال کيږي چه تانو ولي غوښتنه وکړه نو دا بيت به استدراک ددغه سابق څخه سي او پر دريمه توجيه په بار ديگر کښي دباچا څخه دا سوال کيږي چه ته چه ددعا غوښتنه غلطه بولي نو دي بياولي وکړه پردي تقدير نو بيا دا بيت استدراک د سابق متصل بيت څخه دي يعني ،بار ديگر ما غلط الخ،بهرحال

| | |
|---|---|
| لیک گفتی گرچه میدانم سرت (١) | زود هم پیدا کنش بر ظاهرت |
| مگر تادي فرمايلي په وارواره | چه ته خپل سر که ښکاره زما پر درباره |
| ته په خوله وکړه دما څخه غوښتنه | زه به تا دخپل مقصد کړمه ښتنه |
| په ادعودي امر کړي په قرآن کښي | استجب دي ورسره دی په فرمان کښي |
| په بلنه دبنده کښي ستا رضاده | پردي تکي چليدلي ستا قضاده |
| چه بنده تاته رجوع کړي په اخلاصه | په غوښتنه باندي پورته کړي دوه لاسه |
| هم په عجزوفرياد باندي ژړيږي | دالاسونه کله صفر کښته کيږي |
| له دي رويه زه غوښتنه کړم باداره | که ني ته خوزما په حال بي خبرداره |
| دغه بيت نو استدراک سوله سابقه | فهم وکړه ورته څيرسه اي لائقه |
| چون بر آورد از میان جان خروش (٢) | اندر آمد بحر بخشایش بجوش |
| چه دزړه دکومي وه ايستي خروشه | دالله دبخشش بحر سو په جوشه |
| چه بنده وخپل الله ته کړي فرياده | رحيم خداي به نودی کله کړي نامراده |
| دبنده په فرياددومره خوښ الله دی | تراوبښ ورک وتوبښه ورک لاهم بالادی |
| چه بنده وخپل الله ته نژدي کيږي | الله کله بده دده څخه ليري کيږي |
| په يوه لويشت چه بنده ورسي الله ته | په يوه گز به رب سي دده وخواته |
| په يوه گز چه بنده الله ته دورومي | په يوه وازه الله نژديکت مومي |
| په عادي تگ چه بنده حق ته روان وي | هروله دحق دلوري دازمان وي |
| دامضمون دحديثودی تي دريادکړه | خوبه ښه دقت داخپل زړگی په بناد کړه |

رتبات دملبق سره قائم سوخودلوايم چه داتقرير ، تاڅخه کامله احاطه .هغه درو توجيهاتو غولړي ، ه ني مني راغلو ومعني ، دبيت هغه دا چه ياالله ، ه څه ته زما په توله سِر فصد خبر ني څه حاجت اودعاو غوښتنه نه دي ، ه لکن تاڅپله فرمايلي چه زه که څه ستلي بر باندي عالم يم خو باهم تلي دخپل سِر ،اربه خوله بلندي کوي بولي زه به ستلي ښته قبلوم نو ستاد سان دامتثال په خاطر غه دعالو غوښتنه وکړه ،حاجت زماوغوښتنه ته نه وقت چه تلي لستد ک دباچاو پيژندي نو ستدراک دروح هم ور باندي قياس کړه دصوفيه ژامو په ژبه ١٢

(١) وقت چه مولنا حالت دباچا په هغه سوزوگداز بيان کړي لوس معامله دالله جل جلاله دده سره پردغه سوزوگداز بيانه وي نو وايي چون برآرد الخ،دا يه تعلق وارتباط راغلو ومعني ته هغه دا واقت چه باچا اظهار دخپل سرو دژړاد ماليبنه څخه دروح وکړي نو درياب درحم دالله جل جلاله په جوش باندي راغلی لو دده دعاني قبوله کړه ولي تازمو ږه په شعرونو کښي وپيژند چه بنده والله ته عجزوفرياد په اخلاص پيش کړي الله يه دعانه رده وي او حاجت يي درپوره کوي نو په بيت کښي لفظ دخروش په معني داوازسره دژړادی اوجوش کنايه دقبوله ددعادي دصوفيه کرامو ژبه قياس کړه ١٢

ابو الحفاظ :مولوي صالح محمد الارغستاني -

| | |
|---|---|
| دید درخواب اوکه پیر رانمود | درمیان گریه خوابش درربود (۱) |
| خوب ئي وليد يو مرشد ورته پيدا سو | په مابين كښي دژړا بيده باچاسو |
| دامضمون په احاديثو كښي وګوره | دمؤمن خوب بي څه نه دئ زماوروره |
| په خوږه ژبه ئي داسي دي ويلي | پاك رسول وماوتاته فرمايلي |
| شپږ دڅلو ېښتوسه راواخه يو وچته | دمؤمن خوب دئ يوجزد نبوته |
| خوب به كله وي بيځاد كاملانو | خصوصاً دباچاواره صالحانو |
| نوبي ولي خوب صادق نه بلل كيږي | چه په حال داستغراق كښي دئ بيديږي |
| خودمرشدخوشنمابي سي په برخه | خودرهبرورهنمابي سي په برخه |
| گرغریب آیدت فرداز ماست | گفت ای شه مژده حاجات رواست (۲) |
| چه حاجت دي دئ روا مه سه پريشانه | مرشدوويل باچاته په دي شانه |
| ماواروغريب صبادرحاضريږي | زيري واخه دزړه مراددي حاصليږي |
| هم دمنځي دمرض داورودرمان دئ | داسبب ده پره كيدوستادارمان دئ |
| دموجودمشكله تابه راوباسي | داپيغام درب دخواتاته به راسي |
| پرزخمي زړه باندي ستاپونډكي لګيږي | مطمئن سه چه څه غواړي هغه كيږي |
| تي نووبوله ملګرى داسي داسي | داغيبي ميلمه چه ستاوكورته راسي |
| په كړوورو باندي بيغمه تسلي كړه | دهغه نقش وقدم ته عملي كړه |

(۱) وقت چه په سابق بيت كښي دالله معامله دباچاسره په رحم بيان كړه اوس ني په دي بيت كښي طريقه درحم بيانه وي دايه تعلق ولرتباط ،راغلو معني ته دبيت هغه داچه باچاپه مابين كښي دژړاخوب يوړي اوبيده سونوئي وليده په خوب كښي چه يو شيخ ورته ښكاره سو چه دهغه په واسطه دباچامشكل حل سواودمنځي دروغتياسبب وګرزيدئ دالاځه خوباچاني دحضيضه دناسوت ومرتبي ته دلاهوت يووړي اوپه خپل ذاتي لياقت ئي په مراتبوعاليه ووكښي سيرشروع كړي وقت چه عادت الهي پر لسابوجاري دي نوئي دباچادمشكل دحل اورفعت دپاره دغه سبب راوليږي خوددي سبب پيادباچاپه كمال اخلاص رجوع والله ته وه دصوفيه كرامو په ژبه وقت چه روح دخپل بدني ملګري نفس په اصلاح كښي دناقصومرشدانو دلوري ناكامه سولوپه كمال اخلاص ني والله ته رجوع وكړه لوپه ډيرافسوس وژړلولستغراق په حالت كښي مدهوش سونوالله پاك دخپل رحم دريابه پرده اقاضه وكړه اوروده ته ني دمرشد كامل ملاقات ورنصيب كړي اودهغو په سبب ني ملګري نفس دمرضه خلاص سواوروح ده قيد دنفس ووه تي بلكه نفس ني تابع وګرزيدئ نوروح په خپل طبعي لياقت په مراتبوعاليه ووكښي سيرشروع كړي والسلام ۱۲

(۲) وقت چه په سابق بيت كښي دپيرليدل ذكرسوه په دي بيت كښي ويل ذكركوي دايه تعلق ولرتباط راغلوه معني ته هغه داچه پيروباچاته ورويل چه زيري واخله حاجات دي مقبول كه صامسافر تاته راغلي هغه دماځخه دئ معني داچه روح چه مصورپه صورة دپيرپه عالم خوابي كښي وباچاته وويل چه صباكه مسافر تاته راغلي هغه ناشي دماځخه دئ يعني نشووونماددغه مسافردماځخه ده نوهغه تدافع دفعه سوه چه ويل چه ظاهردكلمه څخه ازملت تغايرپه مابين كښي دپيرچه په خوب ليدلي سوي اودهغه غريب معالج چه صباراځي اودآينده بيت څخه چه .آن خيار راكه شه درخواب ديدالخ ،عدم تغاير فهميږي داخونه ده مګرتدافع ده وجه ددفعي ښكاره ده ۱۲

ابو الحفاظ :مولوي صالح محمد الارغستاني .

الراقم : سيدمولوي عبدالهادي الارغستاني .

(۱) وقت چه په سابق بیت کښي مجردزیری په راتګ دمیلمه ذکر کړي لوس صفت دده په طبابت رخراکت وصداقت وامانت باندي ذکرکوي نووایي چونکه لوآید الخ .دایه تعلق ولرتباط .راغلومعني ته دبیت هغه داکوم وقت چه دغه مسافر میلمه تانه راغلي نوته پوه سه چه دایو طبیب حاذق دي قادرپرعلاج دمنځي باندي دی. لوپوه سه په دي باندي چه دایوصادق اوامین شخص دي نودده دمحبت لمن ونیسه هم پردغه قیلس دصوفیه کرامو په ژبه تقریر کیدلاي سي زموږ دپیرپیلانو څخه ګمان نه کوم چه ته دي پکښي ولرخطلسي نوردي پرخداي سپارم ۱۲

| چونکه او آید حکیم حاذق است[1] | صادقش دان کو امین صادق است |
|---|---|
| داخوابي صورت وباچاته اوس رغیږي | دصباميلمه په حال ورته ګډیږي |
| وقت چه راغلي نوهغه طبیب حاذق دی | باوروکړه چه داغه امین صادق دی |
| هم دانادی هم امین دحکیمانو | نه غافله دی په شان دطبیبانو |
| ته باوروه کړه دده په طبابته | ځکه دی صادق خاوندد ځراکته |
| هم په علم کښي دطب دی لامثاله | هم دزړومتخصص دلایزاله |
| هم خاونددعلمیت وشریعت دی | هم صاحب دحقیقت وطریقت دی |
| بنه اطواربنه ئي کرداربنه ئي افعال دي | بنه رفتاربنه ئي ګفتاربنه ئي اقوال دي |
| درعلاجش سحر مطلق را ببین[2] | درمزاجش قدرت حق را ببین |
| په علاج کښي بي عجبه اثاروینې | په مزاج کښي بي قدرت دباداروینې |
| چه دواسي استعمال دده دلاسه | په مریض کښي اثرکاندي سمدلاسه |
| په ظاهرکښي لوي طبیب فروفیسردي | په باطن کښي دقدرت دحق مظهردی |
| په تدبیروباریکي کوي علاجه | په تقدیرباندي جوړسوي بنه مزاجه |
| په ظاهره کښي دطب لوخزانه ده | په باطن کښي دقدرت لونښنانه ده |
| هرېنده چه سي خاونددصفتونو | خامخانووي مظهرد قدرتونو |
| پیغمبرچه دجریرمغ ته کتل کړي | سبب څه دی چه رسول ورته خندل کړي |

(۲) وقت چه په سابق بیت کښي توصیف په صفاتومذکوره وو وکړي لوس په دقت دعلاج لوپه بوقدرتي مزاج راته بنه بي وايي درعلاجش الخ. دایه تعلق ولرتباط راغلو معني ته دبیت هغه داچه په علاج کښي دده په عجیبه دقت ووباریکي وویني لوپه جوړښت کښي دمزاج بي دالله جل جلاله قدرت ووینې لوس باید دسحرومعني ومرادته متوجه سونووایو.چه سحرپه لغت کښي وهغه څه ته وايي چه سبب ئي پټ لوخفي وي لکه دوي چه په عربي ژبه کښي دلسي وايي کلمالطف سببه ودق فهوسحر لوپه اصطلاح کښي یوعلم دی په الفاظو واعمالو چه په هغه باندي انسان تقریب وشیاطینوته پیدا کوي لوپه دغه الفاظو واعمالو شیطانان وده ته مسخرګرزي لو.ودغه نفوسوخبیثه ته په خپل مرادکښي کومک ورکوي لکه ملائکه چه ونفوسوزکیه وته کومک ورکوي خومراددمولنا قدس الله روحه واعادعلینافتوحه دسحر څخه هغه دقائق مرلددي چه دتاثیراتوڅخه داسماؤالهیه وولودادعیه ووارده ولوالهاماتوربانیه وڅخه پیداوي چه په هغه باندي دغه طبیب روحاني مظهردافعالووارده په حدیث قدسي کښي ګرزیدلي ووحدیث دا.لایزال عبدي یتقرب الي بالنوافل حتي احبه فاذااحببته کنت سمعه وبصره ویده ولسانه فبي یسمع وبي یبصروبي یبطش وبي ینطق ۱۲

(۱) وقت چه په سابق کښي حالت دخوب راته بیان کړي اوس حالت دوښیدو راته بیانه وي دایه تعلق وارتباط اوس راغلو ومعني ته دبیت هغه داچه باچابیده وواوداخوب ئي ولیدي چه بیان ئي په سابق کښي تیر سو کوم وقت چه رابیدار سو نو حالت ئي داسي متغیر سو چه هغه غم واندوه ئي په خوشحالي بدل سوه اوهغه مملوکیت دمنځي اومقهوریت دعشق ئي په یونوي باچهي بدل سو ځکه چه باچاپه لیدلو دهغه مرشد الهي اوطبیب روحاني دقید دعشق مجازي وګلشن ته دعشق حقیقي نقل سو اودسلوک په نبایښته لاره کښي سیر شروع سو اودتوله ماسوي الله څخه فارغ وګرزیدي دانولو په اونوي باچهي نو میږي الله پاک دي

| خفته بوداين خواب دیدا گاه شد[(۲)] | گشته مملوک کنیزک شاه شد |
|---|---|
| وویده خوب ئي لیدلي اوس بیدار سو | وومریي دمنځي في الحاله سردار سو |
| مریـي ځکـه ووچه ګروودا غیــارو | اوس باچاســو چه خاوندسو داســرارو |
| دالله ســـره پیوندلو بـــاچهي ده | دسوي په لومه بـــــندلو ګدايي ده |
| نو په دغه خوب باچاسو ډیر خوشحــاله | خوخپل مطلوب ته وصل سو في الحاله |
| ځکه خوبـــي مبشرلو خوشحـــالي ده | ومؤمن دپاره ډیره ســـــوکالي ده |
| خپل خوب ځکه وي دبل خوب ستاد پارَه | په هغه بـاندي زړګي ســي ستابـیداره |
| ويعقـوب ته دیوسـف خوب تسـلي وه | په داغــه ئــي دخوړمــن زړه دوایــي وه |
| چون رسید آن وعده گاه روز شد[(۱)] | آفتاد از شرق اختر سوز شد |
| مولناوایي اوس هغه وقـت دي راغلی | چه باچاته ئي په خوب کښي ووتاکلی |
| په نامه ئي دفرداهلته بـــــللی | ماوتانو په صبــــــادي پیژندلی |
| هغه داچه شپه ســوه تیره سهار ګاســو | لمر دشرقــه څخه دغرو پر سربالاســو |
| چه کامله ســوه وعده لیدلي په خوابــه | اوســوه څونکي سودستورو وافتابــه |
| یعني ستوري چه په نوردشمس پټیږي | دغه وقــت نوداشــراق په نوم یاديږي |
| دغه وقـــت دبـــرکت ووســعادت دی | هم دذکرووظیفوووعبــــــادت دی |
| خدایه ته موږخاوندان دســعادت کړي | هم نصیب موذکروفکروعبـادت کړي |

زموږ او ستاسي هم نصیب کړي آمین همدارنګه به دصوفیه کرامو په ژبه حالت دروح پر حالت د باچا قیاس کړو ځکه چه زموږ سابق تفصیلي بیانونه پیاد دي ۱۲

(۲) وقت چه حالت د باچاپه خوب وویښه راته بیان کړي اوس وقت د راتګ اورسیدګي دهغه موعود خولبي په ویښ حالت کښي راته کوي دایه تعلق وارتباط راغلو معني ته هغه داچه وعده ګاه په معني دوقت دوعدي لوشرق په معني دمشرق اواخترسوز وصف ترکیبي په معني دپوټیدو دستوررو نو تفصیل داچه باچاخو بیده وولو په خوب کښي دخولبي صورت په ژبه ورته وویل سوه چه صبا به طبیب حاذق درسي ستا مشکل به درحل کړي خو اوس هغه صبا روخ لوررسیده ولي خو شپه تیره سوه روڼ راغله لمر ښکاره سو ستوري پټ سوه نو باچاپه انتظار دملاقات دهغه طبیب حاذق سو چه دده سره ئي وعده په خوب کښي سوي وه ځکه چه هر خاوند دمشکل دخپل موعود مشکل کشاوملاقات ته انتظار کوي نوردي پر خداي پاک سپارم والسلام ۱۲

ابو الحفاظ : مولوي صالح محمد ارغستاني .

(١) وقت چه په سابق بيت كښي وقت د راتګ بيان كړي اوس انتظار د باچا او راتګ ته بيانه وي دا په تعلق و ارتباط راغلو و معني ته د بيت هغه چه باچا د خپل قصر په دريچه كښي منتظر وو چه دي ووينې هغه څوک چه هغو وده ته سِر په عين سِر كښي دده ښودلي او رازئي په عين راز كښي دده وربانْدي ليدلي نو باچا ځكه منتظر چه دده عقيده پر دي وه چه زماليدلي خوب د جانبه د حق جل جلاله دی او وراتګ ته دغيبي مهمان معتقد وو پر فحوي د دي كلام (اِنَّ وَعدَالله حق) كولاي سو چه په ژبه د صوفيه كرامو حال د روح پر حال د باچا قياس كړو فكر پكښي وكړه تفصيل ځكه نه كوو چه موږ پر دغه مضمون امثال در ته ذكر كړي نو موږ ګاهي ګاهي اجمال كوو د تمرين د پاره ګاهي ګاهي تفصيل كوو د تفهيم و تجديد د پاره ګاهي ګاهي سكوت اختيار وو د احاله د پاره ستاسي د بيداري په هيله والسلام ١٢

| بودا ندر منظره شه منتظر (١) | تا ببیند آنچه بنمودند سر |
| --- | --- |
| اوس حالت د باچا داسي سو عياره | چه راتګ ته د ميلمه سترګي پر لاره |
| نو به ولي باچانه وي په دي شانه | چه په خوب ليدلي معشوق ئي راروانه |
| نوشاه وو خپل منظره كښي انتظاره | چه دي وويني موعود پر افتخاره |
| طالب خو د خپل مطلوب ته انتظاروي | هميشه پر دغه لورسترګي پر لاروي |
| الهي مهمان ته هر څوک مينه داروي | غفلت نه كوي قدوم ته ئي بيداروي |
| باچا خو د به منتظروي په تول توانه | چه وكورته ئي راځي غيبي مهمانه |
| هم طبيب حقاني د هر مزاج دی | هم دده وخوږمن زړه ته پره علاج دی |

(٢) وقت چه په سابق بيت كښي بيان د انتظار وكړي اوس بيان د نتيجي د انتظار كوي نو وايي ديد شخصي الخ . دا په تعلق وو ارتباط راغلو و معني ته هغه دا چه كوم وقت چه هغه په خوب ليدلي ميلمه راښكاره سو نو باچا وليدي يو شخص فاضل چه ډک د حكمت الهي څخه وو همدا رنګه ئي وليدي ګويا كي يو لمر په مابينكښي د سايي وو نو مولانا قدس سره تشبيه د روح و قلب دده د لمر سره وكړه او تشبيه د بدن ئي د سايي سره وجه د تشبه ئي پټه نه ده . د صوفيه كرامو په ژبه د لسي ويلا سو چه افتاب استعاره ده د احديت د ذات حق سره د اسما . و صفاتو او سايه عبارت د تعين خاصه چه هغه ظل و مرآت د حق ده يعني ذات د حق سره د اسما . و صفاتو ظاهر په دغه مظهر كښي دي ددي اجمال تفصيل تا په سابق كښي د موږ څخه بار بار اوريدلي دي خو اوس التفات ضروري دي ١٢

| ديد شخصي فاضلي پرمايه (٢) | آفتاب درميان سايه |
| --- | --- |
| چه باچا په انتظار وو د محبوبه | اوس ئي وليدی په سترګو خپل مطلوبه |
| چه دده وليدی د ابزرګ ډک د هنره | په مابين كښي د سايي وو لكه لمره |
| اوس د لمره و سايي څه شئ دی مراده | صبر وكړه سمدستي بي كرم دریاده |
| روح ئي لمر سايه بدن څني مراد يږي | د تشبيه وجهه په هرچاته ښكاريږي |
| نو باچا په ملاقات سره خوشحال سو | په راتګ د الهي مهمان سرشال سو |
| څه ښه خوندكوي چه پس تر انتظاره | و مطلب ته ورسيږي اميدواره |
| د امثبته مسئله ده بختوره | چه هرشي تر طلب وروسته خوند وره |

ابو الحفاظ :مولوي صالح محمد الارغستاني .

**[1]مير سيد از دور مانند هلال ** **نيست بود هست بر شكل خيال**

چه دليري ســو بنكاره لكه هلاله ** هم معدوم ووهم موجود وولكه خياله
معدوم دامعني چه نرم ئي بــدن وو ** رياضت ئي ســوله ولي هډوتن وو
موجود ځكه وومصدر دلوي كمال وو ** لااقــل په طبابــت كښي لامثال وو
خارجــه اثار دليــل پر وجود كيــږي ** په دي وجه بــاندي هر عاقــل پوهيږي
يايه دامعني په اصل كښي هستي وه ** خو اوصاف بشري په كښي نيستي وه
نو فاني وباقــي ســو په دوو ،وجهينو ** په كښي نســته اجتماع دووضيدينو
لكه خيال دتشخص په حيث فاني دی ** دآثار خارجه په روي باقــي دی

**نيست وش باشد خيال اندر روان[2] ** **تو جهان را بر خيال بين روان**

نيست مانندء به خيال بولو به خپل ځان كښي ** چه په ستر گونه ليده كيږي زمو ر په ځان كښي
ني تخصيص نه ئي كتل په ســتر گو كيږي ** ني تشــخيص نه ئي ليدل په ســتر گو كيږي
كــه تــه بنه مطالعــه كــړي داجهانــه ** نو پيدابــي كړي پر خيال بــاندي روانه
يعنــي داجهــان خيالــي توهمــات دي ** حقيقــت كښي دالله ظل شــيونات دي
په ظاهــره كــه موجود داكائنــات دي ** حقيقــت كښي دواجب منظويات دي
دظاهر په حــيث بــستي ســو داجهانه ** دبــاطن په روي نيســتي ســو داجهانه
دثاني مصرع ځخه داســو راظاهره ** ورته ځير ســه پكښي وګوره ماهره
داخيال هم موجود دی صرفي موهوم نه دی ** چه محــرك ددي جهان دی معدوم نه دی
داثر په حــيث هســتي دغه خيال دی ** دتشــخيص په حــيث نيستي دغه خيال دی

(۱) ارتباط وتعلق دسابق سره په دي خاطر دي چه اوسني بيت مقرر مضمون لره دپخواني بيت دي راغلو ومعني ته دبيت هغه داچه هغه مهمان غيبي چه دليري راروان وو داسي معلوميدي لكه مياشت يعني لكه مياشت چه په كامل انتظار ليدل كيږي دا رنگه دغه مهمان دليري والي په خاطر دباچاپه كامل انتظار ليدل كيدی. يادامعني چه هغه غيبي مهمان په حال دوصول ورسيدو لكه مياشت دلسي وو يعني لكه مياشتي چه نري اوباريك صورت دي همدغه رنگه ددغه مهمان نري اوباريك بدن وو ،همدارنگه دغه مهمان نيستي وو په اعتبار دنازكي وباريكي دبدن او هستي وو په اعتبار دژوند وو جود دصوفيه په ژبه نيستي وو په اعتبار دنفس يعني صفات بشريه ددغه ځخه نيستي سوي وه لو فاني في الله گرزيدلي وو نقط وفقط مظهر دحق وجود ني وجود دحــق وو خپل وجود ني په وجود كښي دحق منطوي ونيستي وو لوهستي وو په اعتبار دوجود دحــق باندي خلص داچه نيستي وو په اعتبار دخپل وجود لوهستي باعتبار دوجود دحق ددي مضمون تحقيق تاته په خواتير ســوي ورو سته به هم در ته رلسي لنشا. الله تعالي خوني الحاله محطاط اوسه سابق تحقيق ته مراجعه وكړه لاحــق ته په انتظار لوسه والسلام ۱۲

(۲) دابيت تقرير دسابق كوي دايه تعلق دي راغلو معني ته هغه داچه نيست مانند، دي په روح ووجدان كښي په دي معنــي چه مرئي نه دی تــه داجهان پر خيــال روان وجــاري ووينــه نو خيــال موجــود وبــوله ځكه چه محــرك ومصدر داثار خارجــه ودي نــو روان لول په معنــي دوجدان دي او دوهم په معني دجاري دی نو مصراع اول اشاره ونيست ته دخيال سوه اودوهمه وهست ته دي ته هم بايد متوجه سو چه دوهمه مصراع بيان دمشرب دصوفيه كرامو دی چه موجود هو الحق سبحانه دی وبس تول كائنات خيالات وتوهمات واظلال وشيونات دي وجود دوي وجود دحق جل مجده دی مگر په هغه تاويل چه تاپخوا پيژندلي اوس بي هم وپيژني انشا. الله تعالي نو به دصوفيه كرامو پر مشرب معترض نه سي ۱۲

## برخيال صلح شان وجنگ شان[1] ❊ وزخيال فخرشان وننگ شان

| | |
|---|---|
| دجهان دخلګوصلح وي کـه جنګ وي | پرخيال بـــناکه فخروي که ننګ وي |
| که وصول ومال ته وي صلحه خواهان وي | که دانه وي سمدستي دجنګ جويان وي |
| نودابـــيت دليل پرهغه مدعادى | چه داخيـــال وجودلـــري اثرئـــي دادي |
| چه اثارِخارجـــه پروارديـــږي | نوداکلـه دمعـدوم په نـوم ياديـږي |
| داعجيـب اثاردخيـال دي چه ځليـږي | نوبـه ولي خيال موجودنه درمعلـيږي |
| هم دارنګه اشـــاره ده زماورره | چه جهان هم دموجودپه ســترګوګوره |
| خلص داخيال وجهان دواړه جَمَلين دي | همه واړه محـــتمل ددوو،وجهين دي |
| که دي فن دتصوف لړوي بـوي کړي | نوبـه دامضمون وتاته نه وي سـتړي |

## آن خيالاتی که دام اولياست[2] ❊ عکس مهرويان بستان خداست

| | |
|---|---|
| وقت چه دلته سوال واردى سه چالاکه | ورته ځيرسه غافل مه اوسه بي باکه |
| هغه داچه خلق لري رنګ رنګ خيالونه | لکه تاچه واوريده زموږبيـــانونه |
| اوليـــاء دالله هـــم لـــري خيالاتـــه | فرق ئي څه دى زاته وبنه نيک ذاته |
| مولَّنانوبه دي بيت حق صواب وايیّ | فرق دادي ښه واضح يه جواب وايي |
| هغه خيالات چه په ښکارسوي دي وليانه | دالله پاک نازه ولي عاشقـــانه |
| هغه عکس شـــغله دهغومهرويانو | دالله دبـــاغ دهغومحبوبـــانو |
| چه شـغلي به خودبـخوده تل ځليږي | انعکاس ئي پروليانوبـاندي لويږي |
| يار، بـــه زده کړودلته مراددمفرداتو | ددي نظـــم دمختلفو کلماتـــو |

(۱) دابيت دليل وتوضيح دسابق دى نوئي تعلق وارتباط ښکاره دى راغلومعني ته دبيت هغه داچه ضميردشان په ځلورو سره ځايوکښي وخلګوته ددنياراجع دى يعني ددنياخلګوکه دصلحه وي که جنګ که فخروي که عارپرخيالي اموروبنادي هغه نو لکه ځان ومال ومنال وجاه وغيره که چيري ودغه امورو ته ونه رسيږي محاربه کوي که وررسيږي صلحه کوي فخرپه جمعه دمال کوي عاردفقره لري نوپه بيت کښي اشاره ودي ته وسوه چه جهان په مثل دخيال هستي ونيستي دي په اعتباردوجودظلي واثار وهستي دي په نظردخلګوځکه چه ددوي نظرپروجودظلي وخيال مقصوردي اوپه اعتباردوجوداصلي نيستي دي په نظرکښي دمهرويانوولوليارځکه چه نظرکښي ددوي مو جودفقط وفقط حق سبحانه دي جهان تولـه اظلال ومظاهرومراياد حق دي دوجوداصلي څخه بـي برخي دي ۱۲

(۲) وقت چه په سابق بـيت کښي خيال داهل دنيابيان سوئوس په دي بيت کښي حال دخيالاتو داهل الله بيانه وي نووايي آن خيالات الخ،دابيه تعلق وارتباط دي دمعني په حصه کښي بـه اول د مفرداتومرادزده کړودلسي چه مرادله دامه څخه هغه دام دعشق الهي دي چه اوليـاء الله پکښي ښکار سوي لومرادبستان څخه مرتبـه دوحدانيت ده چه تعيـن دذات دى چه په هغه کښي اسماء الهيه يودبـله ممتازدي لومراد دمهرويانوڅخه اسماء الهيه دي نوحاصل دمعني دالـــوچه هغه خيالات چه اولياء الله ورته متوجه سوي اوښکاردهغه خيال ګرزيدلي هغـه عکس داسماء الهيه ودي چه په خيال کښي ددوي په خيالي جهان کښي ظاهريږي نواولياء الله اسماء پدي خيال مشاهده کوي چه له دوي څخه مشاهده دذات حق وکړي يعني وهرشي ته چه نظرکوي هغه مظهريواسم داسماؤ څخه ګوري بلکه عين لسم بلکه عين ذات لکه مولّناقدسره په پس کښي فرمايي ،بازاعيان ظل اسماني حق اند:. بازاسماء ظل ذات مطلق اند:. نومشرب داهل تصوف دالـوچه ظل زمظهر عين ذي ظل وظاهردى لهذانودوي قـول په همه اوســت کوي عارف ملاخسرو (رح) وايي ،هرکه آيددرنظرغيرتونيست:. ياتوئي يابوي تويانخوي تو:.يعني ياذات ستا ياصفات ستا ياافعال ستاخوپه دي کښي شک نسته چه پرظاهرددي مشرب دشريعت دنګاه مفاسدکثيره وارديږي خوددي تحقيق موږوتاسي ته په (۱۲) صفحه کښي په (۳) حاشيه کښي کړي لولودصوفيه کرامومراد موددغه سي کلماتوڅخه په حواله دمکتوبات شريف په مکمله توګه هلته بيان کړي اودعلماؤ دشريعت تنقيدموږ بقيه برصفحه آينده

بقيه صفحه ( ) صوفيه درجوع ونزاع لفظي ته په حواله دمكتوبات شريف بللي كه دي سوداوي ونوموړي صفحي اوحاشيي ته مراجعه وكړه ١٢

(١) يعني هغه صورت چه باچاپه خوب ليدلي وو مطابق دهغه مهمانه سره سوچه اوس باچاپه ويښوليدى نوباچاداوپيژندل چه داميلمه هغه عزيزدى چه ماپه خوب ليدلي ځكه چه هغه صورت خوابي چه دخارج سره كټ مټ مطابق سي له دي څخه دوي تعبيرپه كشف كوي وتعبيرته ئي احتياج نه وايي نوخودباچاپه خپل خوب باندي يقين وكړي ځكه ئي سمدستي په مراسمو دتعظيم اولوازمودتكريم شروع وكړه نوددغه مطابقت په خاطردابيت دسابق بيت سره مرتبط سووالا په مابين كښي ددي خيال اودسابق خيال فرق نسته لكه تاچه زموږپه اشاره پخواداخبره پيژندلي ١٢

(٢) اعني دشپږ څلو ينښتو څخه چه ولوبحساب دابجدپرشپږدي اوميم پرڅلويښت تفصيل داچه امام بخاري (رحمة الله عليه ) پخپل مسندروايت دانس (رضي الله عنه ) څخه كوي چه رسول الله صلي الله عليه وسلم ) وويل .الرؤياالحسنة من الرجل الصالح جزء من ستة واربعين جزء من النبوة .خطابي (رح) په تشريح كښي دحديث ويلي چه مده دوحي دور ويشته كاله وه لوورسول الله صلي الله عليه وسلم ته په اول كښي .امرپه مكه مكرمه كښي شپږ مياشتي په خوب كښي وحي كيدي وبس لودشپږ مياشتي نيم كال دى لو ددوروېشتوكالوشپږ څلوېښتم جزء دي والسلام ١٢

دبستانه مرادعالم معاني دى — چه بل تعبيرئي نوم غيب ثاني دى
په نامه دمرتبه وحدانيته — هم په دغه نام راغلي روايته
دي رتبه كښي څه تعين وامتيازوي — يودبله الهي اسماء ممتازوي
مهرويان دي عبارت اي دزړه سره — داسماؤ الهي وڅخه دلبره
يايه مراد دمهرويانوڅخه نبيان دي — دالله پاک نازه ولي رسولان دي
ددي باغ نبائښته مخي مهرويانه — انعكاس به خودكوي پرتول وليانه
اولياوته نوهرمنظرمظهردى — په هنداره كښي محبوب ورته اظهردى
دايوخيالي واقعي دى اي سرتوره — داسي نه دى لكه زماوستاخيال وروره
نوفرق وسوخود دخيال په اين وآن كښي — سوال سودفعه جواب راغلي په بيان كښي
كه تسكين دزړه دي نه وي زماياره — وحاشي ته نظرواړه وه يوواره

آن[1] خيالي راكه شه درخواب ديد — دررخ مهمان همي آمد پديد

هه خوابي صورت چه باچاپه خوب ليدلى — دمهماپه مخ كښي كټ مټ ځليدلى
هغه خوب چه دخارج سي موافقه — خارج يومخ ددي خوب سي مطابقه
دانوكشف بولي محتاج دتعبيرنه دى — نه تاويل غواړي احتياج دتعميرنه دى
دباچايقين باورسوپه دي بابه — چه داهغه صورت چه ماليدلى په خابه
دمؤمن خوب خالي نه دى دمعناسه — گوره گوره ځان دوجغوره دسوداسه
پاک رسول كړي بيان په دغه باب كښي — دمؤمن خوب ئي راوړي په حساب كښي
چه يوجزدى دمجموعه واؤ ،وميمه — دابجدپه ستر گووه گوره فهيمه
چه داجزدنبوت رسول بللى — ماوتاپرغبر گوستر گودى منلى

**نورحق ظاهر بود اندر ولی — نیک بین باشی اگر اهل دلی**

نوردحق ظاهربنكاريږي په ولي كښي — په اتم وجهه ځليږي په ولي كښي

ته په ښه دقت دزړه په سترګو ګوره — چه مظهردرته ښكاره سي ولي وروره

كه داسوال ستازړه ته راسي اي سروره — چه صيقل زړه ته هنداره هرمظهره

په تخصيص دمولّناكښي څه فائده ده — په تقييدكښي په ولي څه عائده ده

ورته وايه دجواب وجهه ښكاره ده — لكه موږ چه ورته كړي اشاره ده

كه څه هرمظهرمظهردی زماوروره — خوولي اتم اكمل مظهردنوره

حق اسماء صفات چه كله ظاهريږي — ترهرچانوپه ولي كښي ښه ښكاريږي

دانكته ده دتخصيص اي پرهنره — كاميابي دي سه روزي اي دزړه سره

**آن ولی حق پیدا شد ز دور — از سر و پایش همی میریخت نور**

چه دليري سوښكاره ولي مهمانه — سرترپايه منورووعاليشانه

دی مظهروودالله دانواورونو — هم مركزوودالله داسرارونو

يوتحفهٔ الهي ووباكماله — منورهم ښائسته ووباجماله

هم طبيب جسماني حاذق بيدارو — هم طبيب روحاني صادق روي داروو

دباچادعاجزی نيتجه داسوه — چه دارنګه ښه تحفه په وريخواسوه

ښه ملګري ښه عمل دلاري مل دی — په پښتوكښي هم راغلی دامثل دی

كه هرڅونه سړی وي سخته ډبره — خوپه ښه ملګري ګرزي دی ګوهره

(١) وقت په سابق كښي ولايت دمهمان راوښودی اوس ظهوردنورحق جل مجده په عام ولي كښي رابنه يي نوابي نورحق الخ. دايه تعلق وارتباط راغلومعني ته داولي مصراع معني داده چه ذات دحق جل مجده سره دلسماؤ وصفاتوښكاره وظاهردي په ولي كښي يعني يعني ولي مرآت صاف ومصقل اومظهراتم دحق جل مجده دي نورمظاهرپه داسي نمط باندي نه دي لهذانو مولّناقدس سره تخصيص دولي وكړي كه داوجهه نه وي نوخوتوله كائنات ووينن زړه ته مظاهردمشاهدي دحق جل مجده دي بيابه نوكومه وجهه تخصيص لره پاته نودسواله بچ سوي ددوهمي مصراع معني داده چه ښه ليدونكي اوسه يعني دزړه په سترګو كتل وكړه چه نوردحق ووينې نه دسرپه سترګو فقط ..اګراهل دلي . يعني كه وخاندووينن زړه ئي نوداكاروكړه ١٢

(٢) وقت چه ظهوردنوردحق په عام ولي كښي بيان كړي لوس ئي خاص ولي مهمان كښي بيانه وي نوابي آن ولي الخ. دايه تعلق وارتباط راغلو معني ته دبيت هغه داچه هغه ولي مهمان چه دليري ښكاره سوسرترپايه منور شخص ووخودغه نورد كماله څخه دولايت سرچشمه اخلي چه علامي دكمال ولايت دادي .د شريعت داحكامو به خبروي عقائداعمال اخلاق بسي دشريعت سره برابروي ددنيايه نسبت به اخرت ته زياته توجه لري اوپر نيك عمل به دوام كوي دكمال دعوه به نه كوي عجزوانكساري خپله پيشه ګرزه ولي وي دنيكانو په صحبت كښي قلبي وي دبزګانو دفيوضاتو ئي خپل ځان پوره كړي وي داصلاح ملكه پكښي موجوده وي هوښياراوديندار خلق ورته مائل وي په مجلس كښي اثروي په ناسته كښي دده سره دخداي يادواخرت سره تعلق پيداكيږي اودنياڅخه تعلق شكيږي پخپله هم ذاكروبل ته هم دذكرفكرپيداكوي په خپله هم صالح وي دبل داصلاح په لته كښي هم وي دغه سي شخصيت په نورالهي منورګرزي وينن زړه ئي دنورحس كولاي سي والسلام ١٢

ابوالحفاظ :مولوي صالح محمد ( الارغستاني ).

(١) وقت چه په سابق بيت کښي حال دمهمان په نورانيت بيان کړي اوس حال دباچاپه خدمت ددغه نورانيت بيانه وي نووايي شه بجاي الخ. دايه تعلق وارتباط راغلو ومعني ته دبيت هغه داچه باچاخپله دبو ابانو اوپيره دارانو پرځاي ورغلي وميلمه ته وره غلي لوځان ئي قائم مقامه دبو ابانو وپيره دارانو جوړ کړي اوداخدمت ئي ونوکرانو ته حواله نه کړي بلکه په خپله خادم دميلمه وګرزيدی لوس داخبره بايدزده کړوچه دوهمه مصراع مفسره داولي مصراع ده اولفظ دغيب دمهمان سره مرکب سووروسته دلمرکب ولفظ ته دخويش مضاف وګرزيدی نومعني دبيت روښانه سوه ١٢

(٢) وقت چه په سابق بيت حال دپيش رفتی بيان کړي اوس ئي حال دملاقات وپيوستون بيانه وي نووايي ضيف غيبي راالخ.

| | |
|---|---|
| شه بجای حاجبان درپیش رفت | پیش آن مهمان غیب خویش رفت |
| چه دغيبه رانبکاره هغه مهمان سو | شه نوکرغوندي ومخ ته ورروان سو |
| دغيبي ميلمه په خپله شاه خادم سو | دی پرځاي دپيره دارخپله قائم سو |
| دراغلي ميلمانه په احترام سو | غلام رنګه وبادارته لاس پرنام سو |
| دميلمه خدمت ئي خپله وظيفه کړه | داسي نه چه ونوکرتي حواله کړه |
| څوک چه وګرزي خادم دښوولياڼو | خودبه وګرزي باچادباچهانو |
| هغه څوک چه کړي خدمت مخدوم به ګرزي | هغه څوک چه کړي انفت محروم به ګرزي |
| دباچاخودپه دارينولوړمقام سو | چه ددارنګه ولي نوکرغلام سو |
| ضیف غیبی راچواستقبال کرد | چون شکرگوی که پیوست اوبورد |
| ملاقي چه دغيبي ميلمه باچاسو | سمدستي ګډون دبري ګلاب پيدا سو |
| خوږخوشبويه وخوشرنګه چه يوځاي کيږي | دامعجون نودګل قندپه نوم يادېږي |
| نوبه ولي داړواخوشفانه وي | نوبه وه لي دامراضودوانه وي |
| باچاخوږوپه علوموظاهره وو | ښائسته مهمان خوشبوي په باطنه وو |
| دغه واړه چه يوځاي سي نوبه څه وي | دغه واړه چه برپاي سي نوبه څه وي |
| ياالله ته مهربانه ترهرچايي | هم عليم وهم خبيرپه حال زمايي |
| تش کچکول مي ستادربارته دی نيولی | ګدايي کړم ربه مه مي کړي ترتلي |
| ياالله ته مي قبوله دادعاکړي | دښه ياري وماته راپيداکړي |

دايه تعلق وارتباط راغلو ومعني ته دبيت هغه داچه کوم وقت چه باچادغيبي مهمان استقبال وکړي لوپه ملاقات ئي مشرف سونوتاددوي دپيوستون په وقت داسي ګمان کاوه چه ګوياکي شکره دګل ګلاف سره پيوست سوه ياي معني چه کمال اتصال واتحاد په مابين کښي ددوي پيدلسو يوپه بل فاني وګرزيدی لودولړه ديوه مشرب خاوندان سوه چه مثال ئي يوخوږلو خوشبويه معجون دی نولوس به شکره باچا وبولوخکه چه دی عالم په علوموظاهره باندي وولکه مولنااقدس سره چه په آينده بيت کښي اشاره ورته کوي لوخوشبويه ګلاب به غيبي مهمان وبولوخکه چه دی عالم په علوموباطنه باندي وولکه تاچه دسابقه دا په کراتومراتوزده کړي ده لوپه آينده کښي بي

هم زده کړي انشآ. الله تعالي اوګډون به ئي اتصال اوروحاني شناخت وبولوچه په آينده بيت کښي به هم داخبره زده کړي ان شآ. الله تعالي ١٢

ابوالحفاظ: مولوي صالح محمد الارغستاني.

(۱) وقت چه په سابق بيت کښي دشاه ومهمان گډون وپيوستون بيان کړي اوس سبب ددغه پيوستون بيانه وي نوايي ان يکي الخ۔ ايه تعلق وارتباط راغلو ومعني ته دبيت هغه داچه دغه يوچه باچادي، تږي بوله ځکه چه دراوسه ني دزلالو اوبو څخه دعشق الهي انده نه وه کړي اوپه الستي استعداداوموجوده ملاقات نهايتي مشتاق اوتږي وگرزيدی اودابل چه مهمان دی اوبه بوله ځکه دي مرشد کامل وودده دفيض ددريابه څخه مسترشدينواندي کولي همدارنگه دغه يوچه باچادي خماري اوشائق دشرابو بوله ځکه چه ده تراوسه پياله دشرابو دمحبت الهي پرسرنه پورته کړي خواوس په خپل الستي استعداداوروحاني شناخت اولوسني ملاقات عاشق الهي دگر زيدي لودشرابو دمحبت الهي نهايتي مشتاق ار دخمارپه حالت کښي سو اودابل چه مهمان دي شراب بوله ځکه چه دي مرشد کامل ووچه دمهجور سالک نه دشراب حيثيت لري پس دلوابوچه په لفظ کښي دبيت تشبيه بليغه ده چه تحقيق وتفصيل يه تاپه علم البيان کښي زده کړي ۱۲

(۲) بل مثال دي دتوضيح حال دپاره لکن سابق د تفريق په نمونه وولاحق داجتماع په دول دايه تعلق وارتباط راغلو ومعني نه دبيت هغه داچه هريو دباچا ومهمانه څخه يولوي درياب وو په حسب دکثرت دکمالاتولوهريوه په دغه درياب کښي لوبازي زده کړي وه ځکه چه يودعلومو ظاهره وومتخصص وو اوبل دعلوموباطنه وو متشخص وولو ددوي په ملبين کښي په عالم ارواح کښي دلسي نوعه داتصال واتحادوه چه روحان ئي بي گنډلوسره گنډل سوي وه يعني دلسي ارتباط ني سره وو چه گوياکي سره گنډل سوي دي داهم امکان لرئ. چه بيت کښي دي اشاره وي وملاقات ته دمولنا قدس سره دشمس تبريز (رحمة الله) روحه سره ځکه چه مولنا قدس سره بحردروم ووا‌و. شمس تبريز قدس سره (رح) بحردفارس وو. وقت چه دوي دوه سره ملاقي سوه نو دکمال اتصال واتحادپه خاطردواړه يووجود گرزيده اوپه درياب کښي دوحدت ذاتيه غوټه سوه والله اعلم ۱۲

ابو الحفاظ :مولوي صالح محمد ارغستاني ۔

| آن يکي لب تشنه دان ديگر چو آب | آن يکي مخمور دان ديگر شراب |
| --- | --- |
| باچاتږي تشنه لب اوبه مهمان دي | مخمور شاه شراب ولي پرالله گران دي |
| هغه تږي چه رسيږي وابو ته | نوبه کله ودريږي واندوته |
| چه مخموره شرابي شراب پيداکړي | سم دلاسه بي پياله پرسربالاکړي |
| حال دلوږي ماوتادی پيژندلی | څه ناڅه هم په خپله دی ليدلی |
| په دنياکښي چه هرڅه شي ليدل کيږي | خوگردي تکي وده ته بنه ايسيږي |
| يارئي وگوره وحال ته اي ظريفه | دقمر تشبيه کوي دی ترغيفه |
| دامثال دی مولنامو ته بيان کړي | په تشبيه بليغ ئي خپل مقصد روښان کړي |
| هر دو بحر آشنا آموخته | هر دو جان بي دوختن بر دوخته |
| هريودوي وه په کثرت کښي دکماله | لکه لوي درياب ناپايه بي مثاله |
| همدارنگه سربنندونکي سربازان وه | په درياب دمعرفت کښي آوبازان وه |
| آوبازي ئي ښه زده کړي عارفان وه | دعرفان دملغروصرافان وه |
| دوه روحان وه يودبله ئ اړوندوو | بي گنډلو يودبله ئي پيوندوو |
| دالست په شناخت ئي دغه تناسب وو | هم په دي خاطرئي دغه تجاذب وو |
| پاک رسول وماوتاته دي ښودلي | په شيرين زبان ئي دارنگه ويلي |
| ارواح فوج الهي مخ کښي موجوده | ترابدانومقدم ئي وو وجوده |
| اتفاق واختلاف داروحونو | نثارسوي دی نن روځ پربدنونو |
| ماتعارف منهاائتلف | ماتناکرمنهااختلف |
| دباچازړه چه پيوندولي کيږي | هغه شناخت پخواني ئي نوی کيږي |

(۱) وقت چه حال دباچاپه گډون دمهمان سره بیان کړي اوس ئي حال په قول بیانه وي نووايي گفت الخ .دايه تعلق وارتباط راغلومعني ته دبيت هغه داچه باچاومهمان غيبي ته وويل چه معشوق زماخوته يي نه منځه لکن کارچه وصل ستادي دکاره چه عشق دمنځي دی پيدلسو که چيري مالره عشق دمنځي نه وايي هم دارنگه عجزدطبيبانونه وايي اوزمامراجعه والله ته نه وايي ستاملاقات به وماته نه واي ميسرسوي چونچه عادت الهي پراسبابوجاري دي نوئي مانه دااسباب مهياكړه اوس كه ماوتابنه خيرسودالشاره به پيداكړوچه سالك بايدكوشش كونكي په په ټينگه اراده په خپل كاركښي وي اوقابليت دتشييد اركانود هدايت ولري حتي چه خپل عشق مجازي قنطره دحقيقت وگرزه وي والسلام ۱۲

| لیک کار از کار خیزد در جهان | گفت معشوق تم تو بودستی نه آن |
|---|---|
| موجوده حال بــه وده ته هويداكړي | وغيبــي ميلمه ته اوس بــاچاوبناكړي |
| هم اصلي معشوق زماته ئي بل څوک نه دی | حقيقي مطلوب زماته ئي بل څوک نه دی |
| وســيله زمادليدودجمال ستاســوه | منځه هسـي بــهانه دوصال ستاســوه |
| داسبابو ســــــره مل دغه جهان دی | خوحــــــكمت الهي پردي روان دی |
| زمالوي غم ووچه سبــب ستادكتوســو | زمادمنځي عشــق سبــب ستادليدوسـو |
| حقيقـــــت اوس دمجازبردي كړي څيري | كه دانه واي زه بــه چيري ته بــه چيري |
| تول اسبـــــاب نوالله هم وربرابــــــر كړي | ديوشــي چه اراده رب سربــه ســر كړي |
| از برای خدمتت بندم کمر | ای مرا تو مصطفیٰ من چون عمر |
| چه غيبي ميلمه ته خپل اخلاص اظهاركړي | په تشبيــه سره باچاداسـي اقــراركړي |
| وخدمــت تــه دي ولاړ ترلــي ملايــم | وايي ته مي مصطفي زه عمرســـتايم |
| ونكته دبــــــيان په كښي كتل كړي | په عجيب بــليغ كلام بــاچاويل كړي |
| په تشبــيه بــليغ ئي دامضمون اداكړي | مشبــه بــه يه بــار پرمشبـــاكړي |
| په غايت مرتبــــــه كښي رهنمادی | چه غيبــي ميلمه كامل اومقــتدادی |
| بــي تشبــيه بــليغ ســوق مكالمه كړه | دخپل ځانه په باب ئي ترک مبالغه كړه |
| دتشبــيه بــليغ وپيچي خپل ســره | خپل ځان بـــولي اندول هيڅ دعمره |
| ســوه ښكاره داچه دتاســه امتحــان دی | مفصل ددي مجمل فن دبــــيان دی |
| چه وگورو ،وقـــصي و ،وبـــاچاته | اوس نوداســـوال پيداكيږي ماوتاته |
| نوپه څنگه تمثيل ومومي صحــــــته | بـــاچاوړاندي ترزمان وودبـــعثته |

(۲) وقــت چه په سابــق بــيت كښي معشوقــيه دمهمان بــيان كړي اوس حــن ارادت اوتشــييدد اركانودهمــت خپل دپاره دخدمت بــيانه وي نووايي اي مرالــخ .دايــه تعلــق ولرتبـــاط راغلومعني ته دبيت هغه داچه اي مهمانه ته په حسب دارشاد مالره مصطفي يي اوزه من حيث الارادة والاطاعــة تالــره په مثــل دعمــر(رض) يم اودجهة څخه دتقــويي زما په لرشادبــاندي ســتادپاره دخدمت ســتامنز نرم اوس په داخبره زده كړوچه تشبيه دمهمان الهي دمصطفي (صلي الله عليه وسلم) سره په اثبات كښي دغايتي كمال په رهنمائي كښي ده اوتشبيه دباچاسيدنا عمر (رضي الله عنه) سره په رؤياي ـ لاذقه لواطاعة كامله ده پاته سوه داخبره چه باچاوقصه خومخ كښي ترسعثت دنبيا (صلي الله عليه وسلم) وه لكه مولناقدس سره چه په سركښي دقصي وفرمايل .بودشاه درزمان پيش ازين الخ .نوســه دا تشبيه څه رنگه صحيح سي جواب به داسي وايوچه تشبيه اصلي په متبوعيت وتابعيت كښي وه خومولناقدس سره دامضمون په دغه دول وانمود كړي زماوستادپوهيدلو اومالوفيت دپاره والافالامر كماقلت والسلام ۱۲

ابو الحفاظ :مولوي صالح محمدارغستاني .

سابقه بیت دی شاهد پر دي زینه ... بو دشاه درزمان پیش ازینه
جواب وایه معبـــرزموږ مولّنادی ... داصرف لفظ دی مضمون ئي دباچادی
تابعیت متبوعیت پکښي ملحوظ دی ... داسي نه چه دباچادغه ملفوظ دی

## از خداوند ولی التوفیق درخواست توفیق ورعایت ادب
### در همه حال وبیان کردن وخامت وضرر هائی بی ادبی

مولّنادرخواست کوي دخپله ربه ... دالله څخه توفیق غواړي دادب
هه اضرار دبي ادبه به عیان کړي ... ماوتاته بـي په ښه لهجه بیان کړي
بیابه بیرته وقصه ته راسي وروره ... منتظرسه په ښو ستر ګوورته ګوره
اوس نوزده کړه داخبره اي ښه ځوانه ... داسابق سره تپون ددي داستانه
طبیبان چه بي ادبه بي فرواسوه ... تاښه ولیدل چه څه رنګه رسوا سوه
چه باچاادب کاوه څه ئي پیدا سوه ... هم دنیا هم آخرت ئي وربخوا سوه
له دي رویه مولّناکوي غوښتنه ... دادب توفیق غواړي دخپل ښتنه
ماوتادي پاک الله داسي پوهان کړي ... دعبرت سترګي راخلاصي دي سبحان کړي

## از خدا خواهیم توفیق ادب ... بی ادب محروم گشت از لطف رب

دالله څخه توفیق غواړم دادب ... تل بي برخي ومحروم وي بي ادبه
چه مغروروي بي فروادخپله ربه ... دانوبولي په نامه دبي ادبه
بي نصیبه به درحمه دالله وي ... هم بي برخي به دفضله دمولاوي
چه شیطان سوبي ادبه کوم ئي پاي سو ... هم تره تلي هم رټلي کوم ئي ځاي سو
ادب ناک لره فایدي دي بیشماره ... بي ادب لره په برخه ډیر اضراره
یوشمه دمولّنادلته لیکلي ... دانمونه ده ماوتاته ئي ښودلي
پاک الله دي موږ وتاسي ادبناک کړي ... دشیطان دکارنامودي موږ پاک کړي

(۱) ربط ددي عنوان دماقبل سره په دي خاطردی، وقت چه طبیبان دسبیه څخه دبي ادبي چه ترک داستثنا، وکړي عاجزه وګرزید، اوخپل عجزئي مشاهده کړي اوباچادخپل رب اودمهمان غیبي ادب وساته اومراعات دادب ئي وکړي وخپل مقصود:نیوي واخروي ته وصل سونوپه دي چشم دیدبایددالله ودربارته درخواست دادب وکړه سي چه سړي دآفاتو څخه دترک ادب خلاص سي نولهذا مولّناقدس سره داعنوان وضعه کړي اوس بایداقسام دادب زده کړویوادب داهل دنیادي چه فصاحت وبلاغت وحفظ العلوم دي بل ادب داهل دین دي چه هغه نوریاضت دنفوسو وادب الجوارح وحفظ الحدود وترک الشهوات دي بل ادب دخواص الخواص دي چه هغه طهارة دقلوبو ومراعات الاسرار والوفا. بالعهود وحفظ الوقت وقلة الالتفات وخوطرونه وحسن الادب په مواقفو کښي دطلب ولوقات الحضور په مقاما تودقرب نولازم پرسالک رعایة دآدابو سنت هم دلنګه صیانت دحدودو دشریعت دي دپاره چه په وخامت کښي دعاقبت واقع نه سي اوپه دام کښي داهل دنیا ونه لوېږي ۱۲

(۲) مناسبت ددي بیت دعنوان سره پرهیچاپو شیده نه دی راغلو ومعني ته دبیت هغه داچه مولانا قدس سره نوروسره دخپل الله څخه توفیق دادب غواړي ځکه چه بي دلبي دالله د رحمه سړي محروم ګرزه وي نو دوهمه مصرع دلوني علت ده خلاصه داچه به بیت وسرخي کښي ارشاددي چه کوم وقت چه سالک اوطالب په صحبت دیوکامل مشرف سي باید لمون دادب تینګه ونیسي لوادب ددغه کامل داسي وکړي لکه چه ښایي ځکه چه حصول دسعادت جاوداني اوکلي داسماني خزانو هم په دغه ادب کښي دي نه ګوري وحال ته دباچاادب دکامل څه وربه برخه کړه والسلام ۱۲

ابو الحفاظ :مولوي صالح محمد الارغستاني.

| بی ادب تنها نه خود را داشت بد | بلکه آتش در همه آفاق زد |
|---|---|
| بي ادبه داسي نه چه خپل ځان خوارکړي | بلکه ټول عالم په غم به گرفتار کړي |
| داسي نه چه دی، تنهابه نوخوار یږي | بلکه دااوروآفاقو ته رسیږي |
| بي ادب چه مرتکب ددي کار کیږي | په شامت بي صالحان هم هلاکیږي |
| خوعادت الهي پردي چلیږي | چه بنه هم دبدپه شوم باندي غرقیږي |
| په قیامت به یه پاڅون وي پرخپل نیته | که څه بنه وي که څه بدوي پس همته |
| که پرزړه دي راسي بدکاراي حلیمه | وایه زمارب پرهرشي باندي علیمه |
| استغفاروایه له داسي اندیښني څخه | معافي غواړه له داسي انکیزي څخه |

| مائده از آسمان درمیرسید | بی شری و بیع بی گفت شنید |
|---|---|
| مولنا قصه کوي ددي دپاره | چه دبدوبد تیریږي تربدکاره |
| ونیکانوتي اثرهم وررسیږي | داسي نه چه پربدانوبه ختمیږي |
| ولي نه گورو، وقوم ته دکلیمه | ښوناشکروناشکري وکړه حلیمه |
| په ذلت وپه خواري قوم گرفتارسو | داسي نه چه یوبدکارخواروزارسو |
| پاک الله پردوي نازل من وسلوي کړه | وربخښش ئي بیله بیع وشري کړه |
| مائده اصلي سترخان ته وایي گوره | دلته مرادئني مطلق نعمت وروره |
| ولي دي قوم ته نازل من وسلوي وه | نه سترخان نه مائده نه بل تري وه |
| په قرآن کښي هم تصریح پدي راغلي | شکرتاقرآن ویلي دی، ښاغلي |

(۱) وقت چه په سابق بیت کښي بیان دضررلازمي دبي ادبي وسواوس بیان دضررمتعدي کوي نووايي بي ادب الخ ،دا نه تعلق وارتباط ،راغلو ومعني ته دبیت هغه داچه بي ادبه داسي نه دي چه فقط خپل ځان به خواره ولري بلکه اوربه په ټولو اطرافو کښي بل کړي یعني بي ادبي دده ونوروته هم سرایت کوي خکه چه بل هم دده دغه بي ادبي دده څخه زده کوي او عامل ئي گرزي داهم دلوربلیده په اطرافو کښي دی، علاوه پردي عادت الهي پردي جاري دی، چه دطالحونو په شوم صالحان هم هلاکیږي خو په آخرت پرخپلو نیتو راپاسیږي په کتابو کښي داثابته خبره ده چه دشامته دبي ادبي دبعض بلا نازلیږي او ونوروم تادبینو صالحانو ته هم ساري کیږي دوي به هم په بلاکښي ورسره لویږي لکه مولنا قدس سره چه بي امثله راته بیان کړي نو په وقت دخطري په زړه کښي دیوبي ادبي پرمؤمن مسلمان لازمه جه وکان الله بکل شئ علیما په یاد کښي ولري او والله جل جلاله داستغفار درخواست پیش کړي خداي دي موږ وتلي اوټوله مسلمان ددلي خطراتو څخه محفوظ کړي آمین ۱۲

(۲) داڅو بیتونه مولنا قدس سره دپاره داثبات مصراع ثاني دبیت سابق ذکر کوي چه هغه نو بلکه اتش الخ ،ده نوپدي خاطر باندي تعلق وارتباط قائم سو راغلو ومعني ته دبیت هغه داچه یو نعمت الهي داسمانه څخه وقوم ته دموسي علیه السلام راجاري سو بیله رانیولو وخرڅیدلو او بیله کوم گفت وگو په قصه خونا ته مفصله په تفاسیرو کښي معلومه ده چه دانعمت ودوي هغه وقت مقرر سو چه دوي دفرعونه نجات پیدا کړي لو په تیه کښي لو سیدل لودمن و سلوي تفسیر هم تا په تفاسیر کښي زده کړي لودمائدي څخه پدي ځاي مرادهم تازموږ داشاري څخه فهمه ولي دی، چه هغه مطلق نعمت دي نه سترخان نوپس تردي پرتاسي دتشویش گمان نه کوم نوردي پرخداي پاک سپارم والسلام ۱۲

ابوالحفاظ :مولوي صالح محمد الارغستاني .

## درمیان قوم موسیٰ چند کس ‏ ‏ بی ادب گفتند کو سیر و عدس

په مابین کښي دقوم وه څه کسانه ‏ ‏ هم بي علمه بي وقوفه هم نادانه

بي ادبه تمیز دایه حال وو ‏ ‏ په بدل کښي ئي غوښتل هوږه ودال وو

پدالوي نعمت درب نه وه قائله ‏ ‏ دکفران دعاقبته وه غافله

خسیس غوارۍ شریف بایللي دانو کاردي ‏ ‏ وعاقل ته نو څه سوچ هم ورپکاردي

همدارنګه زماوستاحال اي هوښیاره ‏ ‏ ورته ځیرسه غافل مه اوسه سرداره

روح بایللي نفس پاللي یوخوشحاله ‏ ‏ ددي لوي بدلون سره ګرزو سرشاله

واردات والهامات مودي بایللي ‏ ‏ شهوات ووهم لذات مورانیولي

باقیامت مودي ځانه لیري کړي ‏ ‏ فانیات موخپل ځان ته نژدي کړي

داخسیس کارکه شریف کاردي پوهانه ‏ ‏ فیصله نوزماوستاپه لاس ده ځوانه

## منقطع شد خوان و نان از آسمان ‏ ‏ ماند رنج زرع و بیل و داسمان

منقطع من وسلوي سوه داسمانه ‏ ‏ هم په برخي رنځ دکښت بیل داسمانه

خوان و نان دواړه مجازدي زماوروره ‏ ‏ دمطلق نعمت مطعوم په ستر ګي ګوره

داسمان که نابلده دي وتاته ‏ ‏ نو په ښه توجه غوږ ونیسه ماته

دایولفظ مرکب معني ئي داده ‏ ‏ داس به لوربولوداژبه زماوستاده

چه غنم باندي ریبي دغه نولوردي ‏ ‏ چه هر کښت په دروکوي دغه نولوردي

مان ضمیرمتکلم زموږ ئي معني ده ‏ ‏ انشاء الله په دي دفعه ستاسوداده

نوسبب دانقطاع بي ادبي سوه ‏ ‏ دمعدود یوځونفروبیباکي سوه

دذلت سره دکښت مشت وګریوان سوه ‏ ‏ که صالح وو که طالح ستړي ستومان سوه

صالح هم ددوي په شوم سوسرګردانه ‏ ‏ تردي بل نوبد کارکوم دي قدردانه

چه سړي رسوا کوي بي ادبي ده ‏ ‏ چه سړي ګمراه کوي بي ادبي ده

(۱) وقت چه په په سابق بیت کښي بیان دحال دنزول دمن وسلوي وکړي اوس بیان دحال دمنزل علیهم راته کوي نووایي درمیان قوم الخ .دایه تعلق ووارتباط .راغلو ومعني ته دبیت هغه داچه په مابین کښي دقوم دموسیٰ علیه السلام څه کسان وه چه په ..بي ئي وخپل پیغمبرعلیه السلام ته وویل چه کمه دي موږلره هوږه وږدال موږ پریوه نوعه دطعام هیڅکله صبرنه سوکولای چه مکمله قصه وبیان ئي تادقرآن شریف په سورة بقره کښي زده کړي دي مولانانجم الدین کبري (رحمة الله علیه) په دي مورد کښي وایي لکه بني اسرائیلوصبرونکړي پرطعام واحدباندي چه داسمان دلوري پردوي نازلیدي اودخسلسته څخه دطباعوئي وخپل پیغمبرموسي علي نبینا وعلیه الصلوة والسلام ته ئي وویل فادع لنا ربک الایة همدارنګه نفس د خسلسته دطینت اودددنائت دهمت خپل ئي صبرپر طعام واحددواردات دغیب اوالهامات درب جل وعلا ونه کړي اوموسي ته د قلب ئي وویل فادع لنا ربک یخرج لنامماتنبت الارض البشریة من بقل الشهوات الحیوانیة وقثاء اللذات الجسمانیة الخ . قال اتستبدلون الذي هو ادني من البقول الدنیویة بالذي هو خیراي الباقیات الاخرویة التي هي خیر اهبطوا مصر القالب السفلي من مقامات الروح العلوي فان لکم ماسألتم من المطالب الدنیویة والمقاصد الردیة انتهي کلامه الشریف داوه ژبه دصوفیه وکرامو ۱۲

(۲) وقت چه په سابق بیت کښي بي ادبي ددوي په قول مذکورباندي بیان کړه اوس په دي بیت کښي دالله دجانبه ودوي ته سزا بیانه وي نووایي منقطع شد الخ .معني داچه ددوي دناشکري په سبب هغه نعمت دمن وسلوي چه داسمانه ودوي ته نازلیدي قطعه سواوپه عوض کښي خولري دکښت ویامه ولاړه ورپه برخه سوه تاسي په مخ کښي په تصریح واشاره وپیژنده چه مرادخوان څخه معني حقیقي مرادنه ده بلکه مطلق نعمت ځني مرادي والادقصي په مورد کښي به دتفاسیرپه مخالفت کښي واقع سي لوس به دلخیره زده کړوچه دلس که جدادمان څخه نوشته سي لکه په بعض نسخ کښي یوداس په معني دلوراومان په معني مایان اوکه مرکب نوشته لکه په موجوده نسخه کښي نوبیایو آله ده ورته ولاړه ته ۱۲

(١) وقت چه ضررعام دبي لدبي په پيشني قوم کښي دموسٰي عليه السلام بيان کړي اوضررعام دبي ادبي په پسني قوم دعيسٰي عليه السلام بيانه وي نوبه ضرردبي ادبي بنه ترې واضح سي نووايي بازعيسي الخ ،دايه تعلق وارتباط راغلومعني ته هغه دلوقت چه عيسي عليه السلام دامت دپاره غوښتنه دسترخان وکړه اووي ويل اللهم ربنا انزل علينامائدة من السمآء تكون لنا عيدا لاولنلوآخرناوآية منک ورزقناوانت خيرالرازقين ) نوحق سبحانه سترخان راواستاوه اونعمت ئي پرطبق راوليږي نولفظ دحق په مصراع ثاني پوري مرتبط دى اوس به تفسيردآيه کريمه په ژبه دصوفيه کراموزده کړويالله ته نازل کړي سترخان د لسرارودلسمانه دعنايت چه پردغه سترخان اطعمه دهداية دپاره داهل الحق وي موږ به خوشحالي په دغه سترخان کوولاول انفسنا واخرهالنصعدمع الله ونهوي معه لودابه موږ آية وهندارِه دصفت دصفاتوڅخه ستا وگرزه وروته بنه فضل کونکي پرخواصو بلندي بي ١٢

| بازعیسی چون شفاعت کرد حق | خوان فرستاد و غنیمت بر طبق |
|---|---|
| دسابقـــــي مدعي دوم ،دليله | غوړ پرنيسه بنه ئي زده کړه اي خليله |
| دعيسي نبي امت وکړي درخواسته | اودخپل نبي ئي وغوښتي سوغاته |
| ويل نازل دي مائده سي داسمانه | نوبه زموږ دزړو کامل سي اطمنانه |
| موږ به پوه په نبوت ستا په بنه شان سو | پرداغه تکي به موږ هم شاهدان سو |
| پاک نبي چه درخواست وکړي والله ته | رب نازله کړي سترخان ددوي وخواته |
| دالله دنازه ولو خواست قبليږي | دالله پرنازه ولوناز، ربليږي |
| خصوصا پرقدردانو نبيانو | خصوصا پراولوالعزمه رسولانو |
| مائده از آسمان شد عائده | چونکه گفت انزل علینا مائده |
| خودسترخان به داسمانه نازيليږي | دعيسي په خوله چه داگفت ويلکيږي |
| ربنا انزل عليناماۂده | داسمانه ئي کړي موږ ته عائده |
| دابه زموږ دپاره عيدسي کردگاره | واول وو ،وآخرته زموږ باداره |
| هم به ستادخوا آيه وي زموږ دپاره | هم به دا يو معجزه وي زموږ دپاره |
| پاک الله ويل قبول مي درخواست ستادی | خوناشکره لره سخت غذاب زمادی |
| خلص نازل سو داسمانه داپيغامه | وحضورته دعيسي عليه السلامه |
| په سترخان کښي وه موجود ماهي بريانه | په حاشيه کښي مکمل گوره بيانه |

(٢) دابيت دسابق بيت دپاره تفصيل دي دلوجهه دارتباط ده راغلومعني ته هغه دلوقت چه عيسٰي عليه السلام دالله څخه درخواست په ربنا انزل علينا مائدة وکړي نوالله پاک پر دوي بلندي سترخان دلسمان دخولنازل کړي چه په دغه سترخان کښي موجود وه دماهي بريان سوي غوښي چه پدغه ماهي کښي هډوکي وربوست نه وه اوغوړي ځني څاڅيده اوپردغه سترخان قسم قسم ترکاري هم موجوده وه اوپدغه سترخان کښي پنځه ټکي وي چه پريوه زيتون پربله عسل پردريمه روغن پر څلرمه پنيرپرپنځم: تديد يعني بريان کړه سوي غوښي پوره تفصيل ئي په علم تفسيرکښي گوره شک نسته چه دا يو لوي اولذيذ اوبي تکلفه نعمت وو چه الله پاک پردوي باندي نازل کړي خودڅه گستاخانو دبي ادبي په خاطر الله دتولوڅخه دغه دنعمت بيرته واخيستي لکه وروسته بيان چه راځي ١٢

(۱) وقت چه درخولست دعیسي علیه السلام بیان سولوس ئي په مقابل کښي عکس العمل دګستاخانو بیانه وي نووايي باز ګستاخان الخ. دایه تعلق وارتباط راغلو ومعني ته هغه داچه پس دنزوله دسترخان ګستاخانو اوشوخ چشمانو ادب ترک واوه لوبه مثل دګدانوني پس خوردي اوزخیري دبل وقت دپاره جمعه کولي اوددي کاره ځخه دري منعه کړه سوي وه نوددغه ګستاخانو په خاطردتوله امته ځخه دالوي نعمت دالله جل جلاله بیرته قطعه سولکه وروسته چه به راسي نودبعضو دبي ادبي په وجه ضرر عام واقع سو نو داثابته سوه چه دبي لادبي ضرر یووازي پربي ادبه مقصورنه دي بلکه نوروته هم سرائیت کوي نودوهم دلیل پرمدعي بلندي قائم سولول په قوم دموسي علیه السلام دوهم په امت دعیسي علیه السلام ۱۲

| | |
|---|---|
| **باز گستاخان ادب بگذاشتند** | **چون گدایان زلها برداشتند** |
| چونچه امرودي قـــوم ته وو ،صفا | پس خورده بـه نه سـاتي ته ترصبا |
| هره روځ بـه نازیلیږي داسـترخانه | بـي تکلیفه بـي زحـمته داسـمانه |
| ګستاخانو شـوخ چشـمي کړله اختیاره | پاک الله دوي په ذلـت کـړه ګرفتاره |
| چه ادب ئي کړي ترشاسخته خوار ان سوه | بي نصیبـه ومحرومه دسترخان سوه |
| هغه خوک چه بـي ادبـه وخودخواسـي | بـیله شـکه بـه بي بـرخي نیمه خواسي |
| یاالله ته خوموږ مه کړي بـي ادبــه | ګستاخان وشوخ چشمان مومه کړي ربه |
| دی مي مکړي یاالله بـــنده ژړیږي | چه بـه زمایه شـوم ضرربـل ته رسیږي |
| ځوک چه ووايي آمین زه بـه ممنون یم | ترحد تیره به خوشحال په دي مضمون یم |
| **کرد عیسی لابه ایشان را که این** | **دائم است وکم نگردد از زمین** |
| عیســي دیر په تواضع وخپل امته ته | وویـل چه نـه کمیـږي دانعمتـه |
| هره روځ بـه نازیلیږي داسـترخانه | تاسـي زمایه قـولٰ وکړي اطمنانه |
| تاسـي اوسـي مطمئن قـول قـائم دی | دالله نعمت وتاسـي ته دائم دی |
| په آن شرط چه تاسي نه سي ګستاخانه | زخیره اندوزه نه سـي ګدایانه |
| ګستـاخي که په حـضور کښي دالله سـي | خامخابـه داشـوخ چشـمه نیمه خواسـي |
| په دنیاواخرت بـه سـرګردان وي | عیش بـي تنګ هم بـي بـرخي لاالهان وي |
| چه شیطان ګستاخي وکړه ځه ئي پاي سو | چه شیطان شوخ چشمي وکړه ځه ئي پاي سو |

(۲) وقت چه ئي حـال: ګستاخانو بیان کړي لوس حال دعیسي علیه السلام ددوي سره بیله وي نووايي کرد عیسی الخ. راغلو ومعني ته هغه داچه اختیار کړه عیسي علیه السلام ددوي سره فروتني وعاجزي وتملق چه دانعمت دائم وقائم دی کم نه ګرزي دمځکي ځخه خوتاسي نافرماني په زخیراندوزي مه کوي هم دلرنګه سـوء ظن پرالله جل جلاله مه کوي خو ګستاخانو دولره کارونه وکړه نولفظ دلابه مبالغه په فروتني وتملق کښي دی اولفظ داین اشاره ومائده ته ده اومرتبط په ثاني مصراع پوري ده نوستلي فکر بایدي ته وي چه مولنا قدس سره دیوي مصراع ربط دبلي سره په دیروخایونو کښي کوي بلکه په عامه اشعارو ونظمونو کښي دغه سي ربط رائج اومانوس دي ځکه چه په اشعارو اونظمونو کښي زیاته فراخي ده حتي هغه ځه پکښي جائزدي چه نثر کښي جوازنلري چیري نور ،وروسته به داخبره وبیته ځخه په اشاره ز:ه کړوچه انبیا. علیهم السلام دحسن اخلاق خاوندان دي اودزیات صبر وتحمل وحلم ځښتنان دي نه ګورو وحال وروش ته دموسي وعیسي علي نبیناوعلیهما الصلوٰة والسلام په مقابل کښي دداسي ګستاخانو ۱۲

ابوالحفاظ :مولوي صالح محمد الارغستاني .

(۱) وقت چه په سابق بیت کښي فروتني دعیسي علیه السلام همدارنګه اطمنان ودوي ته په دوام دسترخان بیان کړي اوس عمل کرددوي په مقابل کښي دهغه تواضع واطمنان بیانه وي نوواېي بدګماني کردالخ. دایه تعلق وارتباط راغلو ومعني ته هغه داچه بدګماني کول لوحرص راوړل ناشکري ده په وړاندي دنعمت دالله یعني سو. الظن پر وعده دپیغمبرچه هغه حاکي درب جل جلاله څخه دی کفروناشکري اوکمالي بي ادبي ده په وړاندي دنعمت منسوب ومهترته چه کنایه دحق جل جلاله څخه دی سو. الظن دامعني چه دوي داسي بدګمان کاوه چه ایاداسترخان به بیاراسي که نه سره ددي چه پیغمبرودوي ته دخداي پاک دلوري ددوام اطمنان ورکړي وولکن په شرط دنه زخیري خودوي بي باوري وحرص آوري اختیارکړه نوناشکري وګستاخان جوړسوه ۱۲

| بدګمانی کردن وحرص آوری | کفر باشد پیش خوان مهتری |
|---|---|
| مولناواي بدګمان سوبعض امته | چه نوبیابه نسي رادغه نعمته |
| پاک رسول وه وعده کړي په دوامه | خوبه دغه مطمئن نه سوه عوامه |
| نواوړده ئي کړه لاسونه دحرص خواته | مطعومات ئي زخیره کړه وصباته |
| رسول باربار به ودوي ته داویله | زخیره به نه کوي تاسي بالکله |
| ناشکري ئي کړه په وړاندي دسترخانه | چه ودوي ته راالیږلي پاک سبحانه |
| دغه عین ناشکري وه پاک مولاته | ځکه داسترخان ومنسوب وو،والله ته |
| ناشکري چه دسوغات دچاپه خواسي | دلیږونکي ناشکري بي خامخاسي |
| زان ګدارویان نادیده زآز | آن دررحمت برایشان شد فراز |
| په سبب دګدامخوحارصانو | دپخواده لقمه چینووارثانو |
| نادیده وه حرص ترلي په کمنده | دروازه یه درحمت پرځان کړه بنده |
| دالله رحمت راځي پرصابرانو | نه پرداسي حرص کونکوحارصانو |
| هم ددوي په شوم محروم سوه صابرانه | سرګردان ولالهان سوه شاګردانه |
| دانوځونه ظلم دی، چه دوي اختیارکړي | بي ګناه یه په زحمت هم ګرفتارکړي |
| په دنیاکښي رسوایي ددوي په برخه | آخرت کښي به هم ویني سزاسخته |
| خداي دي موږته کړي نصیب پندوعبرته | چه ددوي دکارناموکړونفرته |

(۲) وقت چه بدګمانی وحرص ولآزددوي بیان کړي اوس ئي مایترتب علیه بیانه وي نوواېي زان ګدایان الخ. راغلو ومعني ته هغه داچه دبیه څخه ددغه ګدامخولونادیده وودحرصه څخه هغه دروازه درحمت پردوي باندي بنده سوه فرلزبه فا. معجمه په اصل وعالي وبلند ته وایي دلته په معني دمسدودئ مقصد داچه ګدامخي وحرص سبب دکم رزقي وذلت وزحمت دي حتي نوروته هم ضررورسیږي علیه الصلوٰة والسلام فرمائي (لولابنو اسرائیل لم یخنزاللحم اي لم ینتن) ولولاحوا. لم تخن لنثي زوجها) یعني که عمل دادخاردبني اسرائیلونه واي غوښي به بدبویه سوي نه واي که اکل دحوا. نه واي ښځي به دخپل خاوند سره خیانت کړي نه واي صاحب داکمل لیکلي چه کوم وقت چه پرېني اسرائیلوباندي من وسلوي نازل سوه نودوي دادخاره وزخیري څخه منعه سوه خودوي داکاروکړي نومن وسلوي فاسداوبوي ناکه وګرزیده اودغه بوي ددغه وقته څخه استمراروکړي ۱۲

ابو الحفاظ :مولوي صالح محمدارغستاني .

(۱) لول به داخبره زده کړوچه دابيت زائددي پدي خاطرچه مضمون ئي مخکښي تيرسوياپه هغه خاي کښي نوشته سي چه منقطع شدخوان ونان الخ . لهذانودابيت په ډيرونسخ کښي وجودنلري اوکه چيري دمن وسلوي څخه مطلق نعمت نازله داسمانه مجازا مرادسي چه باره به نوشامل وسترخان دعيسي عليه السلام هم سي نوبياکيدلاي سي چه بيت پرخپل خاي سي نوپردي تقدير ني تعلق ولرتباط دسابق سره پدي خاطردي چه دابيت تفصيل وتوضيح دی. راغلومعني ته هغه داچه هغه نعمت نازله داسمانه څخه ددوي څخه منقطع سوپس نوددغه سترخانه څخه هيڅ څوک منتفع نه سو ۱۲

| | |
|---|---|
| **من وسلوئ زاسمان شد منقطع** | **بعدازان خوان نشد کس منتفع** |
| مراددمن وسلوي هغه څه سامان دی | چه نازل وي داسمان که څه سترخان وي |
| نوبه لفظ کښي مجازدی اي نيک ذاته | ملاقــــه ئي پته نه ده ماوتاته |
| نوبـه نسـي واردهغه سـوال ظاهره | چه وتاته ئي هم دفعه ده بـــــاهره |
| داسـترخان نوداسـمانه منقـطع سـو | پس دحرصه نه هيڅوک ځن منتفع سو |
| انقـطاع ورسـيده ترصالحـــانو | خوپه شــوم دبـــي ادبوحـــارصانو |
| چه داستابرخه بايلي دابه نوڅوک وي | چه حصه ستاتلفه وي دابه نوڅوک وي |
| خداي راکړي نجات له دي وسو اسـه | چه دبـل کورخرابـيږي زمادلاسـه |
| **ابرنايدازپئ منع زکوت** | **وززناافتدوبااندرجهات** |
| اوريځ نه راځي په دغه په اسمان کښي | چه مانع دزکات ډيرسي په جهان کښي |
| دزکات منعه يولوبـــي ادبـــي ده | نوســزايه هم داغه لويه قحــطي ده |
| دادريـم دليـل پرهغـه مدعـادی | چه ضرردبـــي ادبـــه دهرچادی |
| دزناڅخه وبــــاپه اتفاقــــه | تل خپريږي درهمه واره افاقـــــه |
| ډيرفاحـش اوبـي ادبـه دغه کاردی | هم پردغه خـوي غضب دکردگاردی |
| څلورم دليل بــــه دابولولائقـــه | پرنوموړي مدعابــــاندي صادقـــه |
| چه دافحش بـي ادبـي فراګنده سـي | نوداويرضرربـــي خپله نيتجه سـي |

(۲) دادريم دليل پرسابقه
مدعي دی هغه داچه د
بي ادبي ضررعلم دي هر
چاته رسيږي پربي ادبه
فقط مقصورنه دی لکه
سابق چه دوهم دليل وو
دايه وجهه دتعلق ولرتباط
راغلومعني ته هغه داچه
اوريځ نه راځي په وروسته
پسي دمنع دزکات يعني
منع دزکات سبب دمنع
دباران ده لودشومه څخه
ني قحطي پيښيږي لو
دزناڅخه خپريږي وباپه
اطرافوکښي يعني زنا
سبب دوباده لودشرمه ني
وباپه جهاتوواطرافوکښي
خپريږي په حديث شريف
کښي راغلي مضمون
دادي چه پنځه شيان د
پنځوشيانوملګري دي
يوقوم به عهدمات نه
کړي مګرالله به دښمن
وربانـدي مسلط کړي
يوقوم به حکم په غير
دماانزل الله ونه کړي مګر
به په دوي کښي فقرډير
کړي په يوقوم کښي به
زناظاهره نه سي مګرالله به ډيربنت په دوي کښي دمرګ وطاعون وکړي اودوي به کمبودپه کيل وو .وزن کښي ونکړي مګرالله به منع دوبنويعني قحطي به وربانـدي راولي اودوي به منعه دزکات ونه کړي مګرالله به باران ځني بنده وي الله پاک دي موږ وتاسي ټوله مسلمانان ددي افاتوساتي آمين ۱۲

ابو الحفاظ :مولوي صالح محمد الارغستاني .

(۱) وقت چه دبیانه ځخه دگستاخي په خاصو موارد وکبني فارغه سونوئي شروع په عموم بعد الخصوص کبني وکړه نوئي وويل هرچه برتو الخ ،دایه تعلق وارتباط رابه سومعني ته هغه داچه هرڅه چه راځي پر تاباندي دکدوراتو وغمونو هغه تولـه ستادبيباکي وگستاخي نيتجه ده يعني موجب وسبب ستاسي دکدوراتو وغمونو ستاسي گناهونه دي الله جل جلاله فرمائي وماأصابكم من مصيبة فبماكسبت ايديكم )) هغه څه چه تاسي ته رسيږي دهره مصيبته وغمه ځخه هغه په سبب دهغه عمل دي چه ستاسي لاسونوئي کسب کړيدي يعني دهرمصيبت رسيده وتاسي ته ستاسي دعمل نيتجه ده ،همدارنگه دهرنعمت وعافيت دزوال موجب وسبب معصيت وگناه ده الله جل جلاله فرمائي ( ان الله لايغير مابقوم حتي يغيروا مابانفسهم ) بيشکه الله نه بدلوي حالت دهيڅ قوم چه هغه حالت نونعمت وعافيت دی ترهغه پوري نه بدلوي ځوچه دوي بدل کړي خپل حالت دطاعت په معصيت باندي ۱۲

(۲) وقت چه په سابق بيت کبني داوښوده چه دبيباکه بيباکي موجب دضرروغم وخودي ده ته ده اوس دابيبي چه موجب دضرروبل ته هم ده نوواييي هرکه بيباکي الخ ، دايه تعلق ولرتباط راغ، رومعني ته هغه داهرڅوک چه هره بيباکي وبي ادبي په لاره کبني دمحبوب کوي هغه قاطع الطريق وغل دخلگو دي لوخپله نامردشخصيت دي .غل دخلگو په دي خاطر سوچه دده دشوم په واسطه دخلگو نعمتونه واځستـه سوه لوبه زحمت وتکليف وليده نوغل لاځه دول وي لونامرد په دي خاطر دي چه ددوست دوستي يي ترک کړي لوددښمن دښمني ئي اختيار کړي نامردلا ځرنگه وي خلص داهرڅوک چه دخلگو ځخه دنعمت دزوال موجب وُسبب وي هغه رهزن وُغل دی لو هرڅوک چه پرخلاف ددوست اوپروفاق ددښمن حرکت کوي نامرد وناأهله دی ۱۲

| هرچه برتو آيد از ظلمات وغم | آن زبيباکي وگستاخي است هم |
|---|---|
| مولانا اوس په عام دول رغيږي | بيان کبني گستاخي بنه تشريح کيږي |
| وايي هرغم وظلمت چه پرتالويږي | سبب دگستاخي پرتاتيريږي |
| نولازم دي اجتناب دگستاخي ځخه | لازم دي لوي پرهيزدبيباکي ځخه |
| چه دغمه وددرده برکنارسو | مغفوروهم مرحوم به ده بادارسو |
| خلص سبب دسرخ رويي په حاضرت کبني | سبب دکاميابي په آخرت کبني |
| داادب دی بنه ئي زده کړه اي وروركه | ره گوره چه ځان نه سي درسه وركه |
| په خطاب کبني زماوخپل ځان ته تهديدي | ي مرادمي دبديع بحث دتجريدی |
| گوره ته نسي خفه خاطرملاله | رقربان دي سم ترتاصاحب کماله |
| ولي داخطاب زه خپل ځان ته کومه | بانيرم دي تاکله ياده ومه |

| هركه بيباکي کند درراه دوست | رهزن مردان شدنامرداوست |
|---|---|
| چه په لاره کبني ددوست گرزي بيباکه | هم رهزن دی هم نامردهم بي ادراکه |
| نوبه ولي رهزن نه وي زماوروره | چه په شوم ئي خرابيږي دبل کوره |
| رهزن ولي نه دي اي دسترگوتوره | چه دده سه زده کوي بيباکي نوره |
| نوبه ولي نامردنه وي سربسره | چه ددوست ځخه گوبنه گرزي سروره |
| هم دارنگه دمخلوق سره نامردسو | چه په شوم ئي گرفتارهرزن ومردسو |
| چه په لاره کبني ددوست هيڅ روان نه وي | نوبه ولي بي وقوفه نادان نه وي |
| بيله شکه قاتل زهربيباکي ده | رهزني ونامردي بي ادراکي ده |
| خدايه ته نوموږ ددي مرضه خلاص کړي | دخپل دوست سره موته هم لاس په لاس کړي |

ابوالحفاظ :مولوي صالح محمدالارغستاني .

**هر که گستاخی کند اندر طریق — گردد اندر وادی حسرت غریق**

خوک چه کاندي گستاخي دحق په بابه — په شیله کښې دحسرت به سي غرقابه

معمولـي دریـاب دانـه دی زمـاوروره — معمولي غرقـاب دانه دی زماوروره

گسـتاخي چه دي رټلي بـنـدگانه — دبـلعمه ئي پوښتنه وکړه ځوانه

هغه علم هغه کمال نودده څه سو — هغه جاه هغه جمال نودده څه سو

چه قارون کړه گستاخي خپل ځان ئي څه سو — خزاني مال ومنال سـامان ئي څه سو

که موږ وگورو ،ودرس ته دقـرآنه — دامبحث به بالکل موږ ته سي روښانه

قـرآن کړي دي بـيـان دگسـتاخانو — دالله پاک درټلوبـنـده گانو

**ازادب پرنور گشتست این فلک — وازادب معصوم پاک امد ملک**

دابـه منور گرزي اسـمانه — دادبـه زیبـاتر گرزي اسـمانه

چه په لمرباندي قمرسودرخشـانه — هم په ستورومنورسوداسمانه

داسـمان ادب وو ،دازماسـرداره — چه اتیناطائعین ئي سـوگنتاره

هـم ادب دملائکوتـه وگوره — په ښه شوق ؤ وذوق ئي واوره زماوروره

چه الله انبـئوني ورته فرمائي — دوي سبحـانک لاعلمناوائي

نوپدي ادب موسوم ملائکه سوي — هم په دي ادب معصوم ملائکه سوي

چه معصوم ملک کوي دغه ادب دی — چه پرنورفلـک کـوي دغـه ادب دی

(١) وقت چه په سابق بیت کښې نتیجه دبیباکی غلاؤ نامردي وښودل سوه اوس ني نتیجه په حسرت باندي راښیي ووایي هرکه الخ . دایه تعلق وارتباط راغلومعني ته هغه داهرڅوک چه یرگستاخي ؤبي ادبي په لاره ددین دالله کوي نوهغه به په وادي دحسرت وغم کښې غرق ودوب وگرزي هغه وقت چه دی دعذاب دخپلي گستاخي مخامخه سي نوبیابه حسرت وندامت کوي خولاس ته بي څه نه ورځي که داددنیاغرونه ټوله سره زرسي اودده په ملک کښې وگرزي اودی دعذابه دخپلي گستاخي په خلاصیږي نودی بي دځان دخلاصون دپاره فدیه وگرزه وي خودایوشي په هغه میدان کښې نه سي کیدلای نوبکارده چه نن روخ بنده سوچ وکړي لودگستاخي څخه ځان وگوري الله پاک دي موږ وټولـي دگستاخي څخه بچ کړي آمین ١٢

(٢) وقت چه په سابق کښې نتیجه دبي ادبي ذکرسوه اوس نتیجه دادباکی ذکرکوي نووایي ازادب الخ .دایه تعلق وارتباط راغلومعني ته هغه داچه دادب په خاطر اسمان پرنوره وگرزیدي هم ددغه ادب په خاطر ملکي معصوم کړه سوي دي یعني پاکي دگناه څخه گرزیدلي دي ادب دلسمان ددي آیة کریمه څخه معلوم سوچه الله پاک فرمائي ( فقال لها وللارض ائتیاطوعاًاوکرهاًقالتااتیناطائعین ) یعني وفرمایل الله دغه اسمان لودغه مځکي ته چه راسي دواړه په خپله خوښي سره یاپه زورسره وویل اسمان ومځکي راغوموږ ستافرمان ته په خوښي سره نودادي ادب په خاطراسمان پرنوره په شمس وقمروغیره وگرزیدي همدارنگه مځکه په رنگ رنگ ازهارو وانوارومنوره وگرزیده ادب دملکوددي آیة کریمه څخه معلوم سوچه الله پاک فرمائي ( قالواسبحانک لاعلم لناالاماعلمتنااِنک انت العلیم الحکیم ) ولي ملکوپس ترتسبیح په ډیرعجزوانکسارووبل یاالله العالمینه ستاوعلم وحکمت هیڅوک نه سي رسیدلای ١٢

ابو الحفاظ :مولوي صالح محمدارغستاني .

بدزگستاخی کسوف آفتاب ‖ شدعزازیل زجرأت رد باب

گستاخي ددي سبب چه لمر کړي توره ‖ عزازيل په دي سبب ترټلي گوره

چه روښان لمرتوره وي داگستاخي ده ‖ عزازيل چه خواروي داگستاخي ده

چه گستاخه بنده گان سي لمرتوريږي ‖ داگستاخه عزازيل خودرټل کيږي

دابيان دشريعت دي ماوتاته ‖ دافرمان دنبوت دي ماوتاته

پايه دامعني چه لمرسي کج رفتاره ‖ دخپل خطه څخه مائل سي برکناره

نوپدغه کج روي باندي توريږي ‖ هم په دغه گستاخي کسوف پرلويږي

نوپردي تقدير گستاخه خپله لمرسو ‖ نه دبل گستاخ په وجهه توردالمرسو

دامذهب فلسفي دي زماوروره ‖ پوره تحقيق ئي نوپه خپل محل کښي گوره

خداي دي نه راکوي موږ ته دارسومه ‖ چه روښانه لمرتوريږي زموږ په شومه

حال شاه ومهمان برگوتمام ‖ زانکه پاياني ندارداين کلام

په ادب کښي مولنااوږدکي بيانه ‖ له دي رويه مخاطب کوي گمانه

چه قصه دباچاپاته لکه پاته ‖ بالانه کوي نظردي وخواته

مولنانواوس وايي داسي کلامه ‖ چه قصه درته کومه ترتمامه

مولنانواوس خطاب کوي وخان ته ‖ وايي نظروکړه وشاه ومهمان ته

حال دشاه ودمهمان وايه تمامه ‖ په ادب کښي هيڅ پاي نلري کلامه

دادب بحث بيگانه دقصي نه دی ‖ بل مربوط دي ترقصي اجنبي نه دی

وهلي دابيان له دي څخه پيدا سو ‖ چه گستاخه طبيبان اديب باچاسو

درپيادئي کړه که ستاسه وي هيرسووي ‖ دامضمون په خواوتاته دی تيرسووي

(۱) وقت چه دسلبق څخه وصول ومراتبو عاليه ته په سبب دادب معلوم سونوداسوال دسري سره پيداکيږي چه اياپس تردغه تنزل کيدلسي که نه ؟ جواب ئي دابيت سو ،بدزگستاخي الغ ،دايه تعلق وارتباط راغلوومعني ته هغه داچه لمردقلة ادب په خاطر تورگرزيدلي اوعزازيل دجرات وگستاخي په سبب مردودالباب گرزيدلي چه دامضمون ددي قول دالله جل جلاله ( اناخيرمنه خلقتني من ناروخلقته من طين ) نولفظ دبدمخفف دبودفعل ماضي اوس به داخبره زده کړوچه نظيرددي بيت په سلوک کښي هم راکلاسي لکه يومرشدچه له دينا څخه رحلت وکړي نويومريدپه تخلق دخلافة دعوه وکړي نوپه خپل ظن داوايي چه زه مرشد يم نودي گستاخ اوضال ومضل وردالباب جوړسي العياذبالله اوس به مرلسو وتحقيق ته دبيت نواول به ترجمه دبيت په ژبه داهل شريعت داسي وکړوچه دگستاخي لومعاصي څخه دعبادولمرتوريږي لکه چه په حديث شريف کښي راغلي چه دگستاخي وا... ت دعمل دخلگو حق تعالي لمرتوروگرزه وي چه پدي آية هانله به خلگ متنبه سي لودمعاصي څخه به منعه وکړي پردي تقدير نودامصراع نثرمرتب ده ددي بيت دپاره ،هرکه بيباکي کنددرراه دوست الغ ،لومصراع ثاني نثر وگرزيده ددي بيت دپاره هرکه گستاخي کنداندر طريق الغ ،بناپردي ترجمه نوگستاخي کاردعبادو سره نه دلمر ،دوهم ځل به ترجمه دبيت په ژبه دفلاسفه وودلسي وکړو ،چه دگستاخي څخه دلمر ،لمرتوريږي پدي معني چه لمرپه نيز دوصول وقرب ته دعقد تيوچه وهغه ته جوزهريين وايي کجروي وکړي پدي خاطرنوکسوف واقع سي بناپردي ترجمه نوگستاخي كاردخودي لمرسوه خوددي خبري تفصيل په علم فلسفه اورياضي کښي وگوره ۱۲

(۲) چونچه اوږ دوالي دکلام په باره کښي دادب وناظرية تشويش په قصه کښي پيدااکاوه نومولناقدس سره دابيت ددفع دپاره منعقدکړي دايه تعلق وارتباط ،معني داچه مولناخپل ځان ته خطاب کوي چه حال دباچاؤميلمه پوره بيان کړه دادب بيان خو پاي نلري ۱۲

ابوالحفاظ :مولوي صالح محمدالارغستاني .

(۱) وقت چه په سابق عنوان کښي بيان دادب مطلقاوو. اوپه اوسني عنوان کښي بيان دادب خاص دباچادمهمان سره دی نوذکر ددي عنوان پس تر هغه عنوان دبابه دذکرخاص بعدالعام دی دايه وجهه دتناسب وارتباط ده ۱۲ (۲) تناسب وارتباط ددي بيت دعنوانه سره ښکاره دی همدارنګه تناسب دټولوابياتو دځيلوعنواناتوسره ظاهردی لهذاموږني بيان نه کړو ستاسي ووقادذهن تي سپارورا غلو ومعني ته دبيت هغه داچه شاه خوباچاوو لکن بعد ترملاقات دطبيب الهي ګداوګرزيدي يعني په کمال انکسار او تواضع تام وړاندي ته دمهمان راغلي ۱۲ (۳) دابيت بيان دسابق دي داوجهه دتعلق وارتباط ده راغلو ومعني ته دبيت هغه

## ملاقات بادشاه بآن ولی که درخوابش نمودند

| | |
|---|---|
| چه دبحـــثه دادب فارغه کيږي | په قصه کښي دباچابيرته رغيږي |
| ولي اصل ؤ مقصوددغه قصه ده | دادب دبـــيان هغه وجيبــــه |
| خلاصه ددي مقـــام ؤدي عنوانه | ملاقـــات دي دبـــاچاؤ دمهمانه |

| | |
|---|---|
| **شه چو پیش مہمان خویش رفت** | **شاه بود لیک بس درویش رفت** |

| | |
|---|---|
| ملاقـــي چه دمهمان دغه باچاســـو | ووبـاچاخو وميلمه خپل ته ګداسو |
| تواضع ؤعاجزي ئي کړه اختيـــاره | هـم ادب ووکمينـي کـړه مختـــاره |
| تواضع چه څوک کوي تل سربلندوي | خياله وربه تل دنفس په لومه بندوي |
| بـي ميوي ښاخ تل ولوړه ته جګيږي | ميـوه داره ښاخ ومځکه تـه کړيـږي |
| دادب په واســـطه باچاباچاســـو | هم دعجزيه ذريعه باچاباچاســـو |
| ازلي چه بـــختوردغه بــــاچاوو | دولي بـــه خودنوکردغه بـــاچاوو |
| نوکري دښوولیانوبــــــاچهي ده | ســـــرداري دابـــــلهانوګدايي ده |
| خدايـه تـه موږ دولیانونوکران کـړي | په اخلاص مودنيکانوچوکران کړي |

| | |
|---|---|
| **دست بکشاد و کنارانش گرفت** | **ہمچو عشق اندر دل جانش گرفت** |

| | |
|---|---|
| چه باچاسوملاقـــــــي دخپل مهمانه | حـــال ئي داســـومولناکوي بـــيانه |
| لاس ئي خلاص کړه وغيګرته ئي تکه کړی | لکه عشـق نوخپل زړه ته ئي پنه کړی |
| عاشـــق وه لي دمعشـــوق احــترام نه کړي | صادق ولي دمصدوق بـــه اکرام نه کړي |
| څنګه نه دی صداقـــــت دصادقـــــانو | څومره خوندکړي محبـــت دعاشقـــانو |
| محبـــــــــت چه ديوه طرف دخواوي | دهابـــــــــل طرفه هم نوهګذاوي |
| دامضمون تاپه حـــديث کښي اوريدلی | ماوتاپرغبرګوســـــــترګودی ښلی |
| خداي دي موږ ته رانصيب ښه استاذان کړي | خداي دي موږ دښوولیانوشاګردان کړي |

چه پـــه سابقه کوم وخت [illegible] صاحب الهي ملاقات سره [illegible] سره خلاص کړه په کمال [illegible] مصافحه او معانقه پر موجب د مراسم د طريقت [illegible] [illegible] کښي [illegible] لکه [illegible] او په روح کښي [illegible] [illegible] کړه چه لفظ د کنار په [illegible] کښي صيغه د جمعي پر صورت [illegible] کښي [illegible] کښي [illegible] طبيب الهي [illegible] نه د مصافحي و معانقي معانقه د ليدني کښي په وخت کښي [illegible] محبت [illegible] [illegible] لاس [illegible] پدي کښي معانقه [illegible] بلکه دا [illegible] سنت [illegible] طبراني حديث د حذيفه بن يمان رضي الله عنه څخه نقل کړي چه مضمون ني دادي چه يو مومن چه د بل مومن سره ملاقات کوي او سلام ور ته کوي او لاس [illegible] کښي [illegible] مصافحه [illegible] سره کوي نو د دواړو ګناهونه [illegible] تويږي لکه [illegible]

خځي بلګونه [illegible] لو معانقه دليدني په وقت کښي لاس په غاړه کښي اچول اوبه غيږ وري نيول پدي کښي علماؤ (رح) خبري کړي خوصاحب دهدايي ويل کړي چه اختلاف په هغه معانقه کي دی چه سري په لنګ واحد کښي وي اوکچيري پر معلق قميص ياجبه وي بياهيڅ باک نشته په اتفاق دعلماؤ زموږ اودلصحيح هم ده اوپه ترمذي شريف کښي حديث دي چه يو ځل زيدبن حارثه (رض) رسول الله صلي عليه وسلم ته راغلي هغه په غيږ کښي ونيوي لوموچ ئي کړي کتاب الاستيذان باب في المعانقه والقبلة ۱۲

(۱) بيان دنوع آخري داعزاز دي يعني لکه په سلبق بيت کښي چه اعزاز دمهمان په مصافحه ومعانقه وکړي په دي بيت کښي عزاز په مچيدو دلاس وتندي لوپه ښوپښتنو کوي نوواېي دست پيشانيش الخ ،دايه تعلق ولرتباط راغلو ومعني ته هغه داچه باچاه خپل راغلي ميلمه لاس وتندي ئي ورمچ کړه ادخايه داقامت لولاري پوښتني ختي وکړي په دي کښي شک نسته چه داعمل دباهچا دپاره داظهار دمحبت الهي اودپاره داعزاز دمهمان الهي وونه په بله انګيزه لکه مقام چه پردغه واضح دليل دی نوپه دي ځاي کښي ممانعت شرعي لکه احساس دشهوت دغيره په مراحلو ليري دی نوداعمل دباچاجائز څه بلکه بهتر کار دی ۱۲

| | |
|---|---|
| دست پيشانيش بوسيدن گرفت [1] | واز مقام راه پرسيدن گرفت |
| باچامچ لاس وتندی ددي مهمان کړي | نوردلاري ومقام ئي هم پرسان کړی |
| ول پر کمه لارتـه راغلـي نـازه ولـي | بـيادکمه ځاراغلي يي ښاغلي |
| په پرسـان دتعجب باچاګوياسـو | چه دالوي نعمت مي څنګه راپخواسو |
| نوبـه ولي بـاچانه وي سـرښاغلی | الهـي ميلمـه دده کورتـه راغلـی |
| هغه څوک چه خپل دزړه پيوندپيداکړي | خامخابـه خپل بـدن درته فديا کړي |
| څومره خوندکړي تـوده مينـه ديارانـو | څومره خوندکـوي پوښتنـه ديارانـو |
| دقابـل پر کورکامل چه نازليږي | نوبـه ولي تعلق نه حـاصليږي |
| پرس پرسان ميکشيدش تابصدر [2] | گفت گنجي يافتم آخربه صبر |
| دبـاچادتلطف پرس وپرسـانه | سمدستي په باچايووري ترلورشانه |
| درتبـي څخه دعواموا وس جګيږي | ورتبـي ته دخواصوخودرسـيږي |
| سرؤدباچاموږب هم قابـل ځوان وو | هم کامل هم مکمل دغه مهمان وو |
| چه دشمس شغلي ځلاندي پرقمرسي | داقمربـه خودبـه خوده منورسـي |
| متاثرچه دمؤثر په څنګ کښي اوسي | نوبـه ولي دی اثرنه ځني يوسـي |
| نوبـاچاځکه ويل په دي ګفتارکړي | په شـرينه ژبـه خپله دااقـرارکړي |
| چه په صبـرمي پيدااداخزينه کړه | هم په صبـرمي پيداادادفينه کړه |
| پرسـالک بـاندي لازم دی زماوروره | چه ادب به دخپل شيخ ساتي هرګوره |

(۲) وقت چه په سلبق بيت کښي پوښتني دباچادمهان الهي څخه بيان سوي لوس ئي نتيجه مرتبه پردغه پښتوسيله وي نوواېي پرس پرسان الخ .راغلو ومعني تـه هغه داچه مکرر لونوپښتنولونهايت تلطف دباچاکشول وکړه ي مهمان لره دخلق وخواته حسني چه وخپل نزه ته ئي رلورسلو، په دي معني چه باچاپه نهايت اخلاص وتـادب لوپه غايت اتباع وتلطف مهمان الهي وزړه خپل تـه په دومره اندلز راليږدي کړي چه هغه مهمان دده پرزړه لکه پرسدز حکم فرملوګرزيدي پس نوباچا ودغـه مهمان تـه وويل چه په صبـرمي دغه خزانه ته پيداکړي چه ته يي څکه چه تـه وسيله دوصول وکنوزالهيه ووته زملوګرزيدي داتقرير پرهغه تقديرتی چه ضمير دلش ومهمان الهي تـه راجع سي دلهم کيدلاي سي چه ضمير وباچاته راجع سي نو بـه معني دلسي چه باچاخپل پرس وپرسان ولوري درجي ته ورساوه لکه تاچه داشعار وڅخه دغه معني په تفصيل باندي زده کړي پس به داخبره زده کړوچه شک نسته چه مجلس دهمنشين لره اثرسته نه ګوري چه مولناقدس سره په بل ځاي کښي څه فرمايي وايي ،ګرتوسنګ خارهٔ مرمرشوي :.چون بـه صاحب دل رسي ګوهرشوي :. مجلس صالح تراصالح کند :.مجلس طالح تراطالح کند :.بيانه ګوري ومصلح الدين الشيرازي ته چه څه وايي ګلي خوشبوي درحمام روزي :.رسيد لزدست محبوبم بدستم :.بدوګفتم که مشک ياعنبري :.که ازبوي دلاويزتومستم :. بګفتامن ګلي ناچيزبودم :.وليکن مدة باګل نشستم :.جمال همنشين درمن اثرکرد :.وګرنه من همان خاکم که هستم :۱۲

ابو الحفاظ:مولوي صالح محمد الارغستاني .

## صبر تلخ آمد ولیکن عاقبت (۱) — میوهٔ شیرین دهد پر منفعت

صبر تریخ دي په ظاهر باطن ئي خوږ دی — خو ظاهره فکر زموږ ځني کوږ ووړ دی
په ظاهر کښي تلخه ګي ده آن د پاسه — په باطن کښي شیریني ده آن دپاسه
صبر درون د بــارد ی پر نفس اي زما یاره — خو فائده ؤ منفعت يي دي بسـیاره
خو د صبـر فائدي نه راځي په شـماره — تجربــي موږ ته ښودلي په بار بـاره
خلص ئي د اصبــر دافع دي د حـرجه — هم داغه صبـــــر مفتاح دي د فرجه
صبــر خه دی، تحــمل د مشـــفاتو — هم پر ځان منـل د نفس د مکروهاتو
خو په بــل عبــارت داســي ترجمه ده — نتیجه دوو قـــــولینو هم یوه ده
صبر جبـــس دی د ځان پر عبــاداتو — هم بـــندش ئي دی دواړه منهیاتو

## گفت ای هدیه حق و دفع حرج (۲) — معنی الصبر مفتاح الفرج

بــاچا وویل میلمه ته اي بــاداره — ته دحـــق دخو اتحـــفه يي زما د پاره
هم دافع مي د حـــــرج يي هر زمانه — هم زما د مشـــکل حـــل يي اي مهمانه
ماچه وکړي صبــر مفتاح الفرج ســو — هم داغه صبــر مي دافع الحـــرج ســو
تل په صبر هر مقـــصد ته ځان رســیږي — د باچا مشـــکل بـــه خو د اســانه کیږي
صبـــــر خوي وود الله د انبـــیاوو — هـــم داخـــوي وود کملو اولیـــاوو
زموږ رسول پس تر خپل قوم دلوي ازاره — ویل اللهم اهد قـــــومي بـــاداره
د اصحـــاب صفه لوړ تاریخ در یاد کړه — دابـــي هریرة حـــال بنه در یاد کړه
چه دلو یږي سي بیهوش غوښتنه نه کړي — دتش نسه سي مدهوش غوښتنه نه کړي
ماوتادا درس زده کړي په قـــرآن کښي — هم دخپل رسـول الله خواږه بـیان کښي

(۱) وقت چه په سابق بیت کښي صبر ذکر سو اوس يي په دي بیت کیفیت بیانه وي نووايي صبر تلخ امد الخ، دا یه تعلق وارتباط راغلو ومعني ته هغه داچه صبر په ظاهره تریخ لوړ پر نفس باندي لوي باردي خو په عاقبت کښي ډیر شیریني اوپر منفعته میوي لري نه ګوري وانار ته چه درخته يي څونه ترخه ده اوځنګه شیرینه اوپر منفعته میوه ورکوي نو په لفظ کښي دبیت تشبیه ده باید ورته ځیر سي .لوس به یو شمه دصبر په مورد کښي زده کړو هغه داچه حضرت امام غزالي (رحمة الله علیه) په مکاشفة القلوب کښي فرمایلي چه صبر پر دری وجهي دی یو صبر پر طاعت دالله جل جلاله بل صبر د محارمو څخه دریم صبر پر مصیبة وعند صدمة الاولي بــیايي فرمایلي دي که چا صبـــر وکړي پر طاعت دالله ،الله به ور کړي وده ته په روځ دقـــیامت دري ســـوه (۳۰۰) درجي په جنت کښي هره درجه به لکه په ملبین دلسمان ؤمځکي لوکه چا صبـــر دمحــــارمو دالله وکړي الله بــــه ورکړي وده ته په روځ دقـــیامت شپږ ســـوه (۶۰۰) درجي هره درجه بــي لکه بــین السمآء السابعة والارض السابعة لوکه چا صبر پر مصیـــبت وکړي الله بـــه ورکړي وده ته په روځ دقــــیامت لوه ســـوه (۷۰۰) درجي هره درجه به لکه ملبین العرش الي الثري انتهي کلامه الشریف بالترجمة ۱۲

(۲) وقـــت چه په سابـــق بیت کښي بیان دشیریني دصبر مطلقا وســـو اوس بـــیان دمعنوي شـــیریني دخپل صبـــر کوي نو وايي ګفت اي الخ ،دا یه تعلق وارتبـــاط ،راغلو ومعني ته هغه داچه باچا و مهمان ته وویل اي تحفي دحـــق جل جلاله ورســـنده ته لو اي دافعه دحرج دغمګینه څخه ته معني ددي منطوق يي چه الصبر مفتاح الفرج ،نو په بیت کښي تشبیه بلیغه په حذف مبتداده وجهه دتشبیه دمهمان دصبره سره په دي خاطر ده چه هر یو دصبره ودمرشده څخه په ده درجات علیاپید اکیږي دصبر حال دي مخکښي وپیژندي او حال دمرشد په باچاکښي په ستر ګو ویني، والسلام ۱۲

ابو الحفاظ :مولوي صالح محمد الارغستاني.

(١) ای لقاءِ تو جواب ہر سوال ۔۔۔ مشکل از تو حل شود قیل وقال

په لقاء کښې ستا جواب دی دهر سواله ۔۔۔ هر مشکل دی په تا حل بي قیل وقاله

یعني ستالقابي سوال وٗاستفساره ۔۔۔ بسنده دحل دهر مشکل دپاره

نه وسوال نه وجواب ته ضرورت دی ۔۔۔ نه دقیل وقال خطاب ته ضرورت دی

یعني نسته څه حاجت دي ته چه راکه ۔۔۔ دارنگه نسته حاجت دي ته چه واخه

بل لقاء مجرده ستاکافي ده ۔۔۔ دمشکل دحل دپاره هم شافي ده

چه تاثیر معنوي مابین ته راسي ۔۔۔ بیانونه غواړي سوال وجواب داسي

سپوږمي نه وایي ولمر ته چه داراکه ۔۔۔ نه لمر وایي وسپوږمي ته چه داواخه

(٢) ترجمانی ہرچہ مارا در دلست ۔۔۔ دستگیری ہر کہ پایش در گلست

ترجمان ئي دمقصد زمایه کوگل کښې ۔۔۔ مددگاریي دهرچاچه پښي په گل کښې

دالله پاک نازه ولي چه ولیان وي ۔۔۔ دالله دخوا دکشف خاوندان وي

پاک الله په واسطه ددي ولیانو ۔۔۔ مشکل حل کړي دعامه مسلمانانو

نورولي هم ترجمان هم مددگارسو ۔۔۔ خودیوالله په مرسته ئي داکارسو

داسي نه چه داولي دی مستقله ۔۔۔ چه نوموړي کارکوي دی نو یخپله

بل کونکي پاک الله پروردگار دی ۔۔۔ ولي هسي یو سبب ددغه کار دی

الهي عادت راغلي پر سببه ۔۔۔ سبب نه دی تام علت دمسببه

خلص نسبت وواسطي ته لوي قانون دی ۔۔۔ هم نسبت وذریعي ته لوي قانون دی

موږ ؤتاسي دانسبت بولو مجازه ۔۔۔ کتابو کښې هم راغلي دي جوازه

چه ددي واړه مضمون سي لاس په لاسه ۔۔۔ دهمه واړه شبهاتو به سي خلاصه

نن خورنگ رنگ عقیدي دي زماورورره ۔۔۔ سه بیداره دغه خپل مذهب دي گوره

(١) دابیت په مثل دسابق بیت نداده ومهمان ته په بیان داوصافو دده دایه تعلق وارتباط راغلو ومعني ته هغه داچه باچلو مهمان الهي ته خطاب کوي اودلسي ورته وایي چه اي هغه ذاته چه لقاستاجواب دهر سوال ده یعني ملاقات ستابحسب دتاثیر معنوي چه الله پاک پکښې ایښي دي بیله کوم سواله واستفساره کافي جواب دي یعني مجرد ملاقات ستاحل کونکي دمشکل دی کومي غوښتني ته ضرورت نسته همدارنگه هرچاچه نوردمغ ستاولید مشکل ئي حل گرزي بي قیل وقاله همدغه علامه دمرشد کامل وقابل محل ته ده کامل والي دمهمان اوقابل والي دباچاتامغ کښې پیژندلي ١٢ (٢) په مثل دسابق خطاب ومهمان ته په بیان داوصافو دي دایه تعلق وارتباط ئي معني په داچه ته بیانه رونکي دهرهغه څه نسي چه زموږ په زړه کښې دي لوته لاس نیورونکي دهر هغه چابسي چه پښي په ختو کښې وي لوس دانجیره باید زده کړو چه شک نسته چه الله پاک خپل ولیانو دوستان دعامه مسلمانانو دپاره سبب دنجات لوواسطه دوصول المراد گرزوه لي لوددوي داتباع واخلاص وخدمت په خاطر تابع وخادم ومخلص دفلاح وبري خاوند گرزي لو مشکل ئي الله پاک دمخلوم په سبب ورحل کوي که موږ ته ملاحظه دقصي وکړو لوبه حال کښې دباچاتظر واچه وولوکمال تضرع واخلاص وخدمت دده زایلاکړولوبیلوصول ددهوعالي مقصدته راپرزړه کړونوبه دالدرس واخلوکه چیري موږ په مثل دباچا په خلوص دبل مخ پر خاوړو دقدم دلولیاء الله کښیږدو نوکدورات دسو، به دموږ څخه زائل سي لوځلي دطیعت به خلاص سولوشغلي د فیضان الهي رالبلندي وځلیږي لوبه خپل عالي مقصد کښې به کامیاب سو بیابه نواقرار پدي وکړو چه اولیاء الله سبب دنجات دي اوالله پاک دیو مشکل حل ددوي په سبب باندي کوي نو نسبت دمولنا قدس سره په بیت کښې ومهمان ته صحیح دی نوڅوک چه ومثل ته دداسي نسبت شرک وایي هغه ددوي کاردي موږ په دي مختصره حاشیه کښې خبره نه ورسره څیړو ١٢

ابو الحفاظ :مولوي صالح محمد الارغستاني .

(۱) وقت چه په سلبق کښي مهمان الهي په هغه لوصافو بلندي ياد کړي چه په هغه بلندي موصوف دکمال ويارور ګرزي نولوس ني په دي بيت کښي په کمال احترام لوجوش مرحبا لوښه راغلي وايي ،دايه تلسب وارتباط راغلو ومعني ته دبيت هغه دلچه راغلي لي مهمانه فراخه ځاي ته هيڅ تنګي پر تبلاندي نسته يعني ښه راغلي اي برګزيده شده واي رضاداده شده که چيري ته لماځخه غائب سي نوزملمرګ به رلسي لودافراخه ميدان به تنګ سي لکن الحمدلله لوديشريت نحاس په ذهب باندي بدل سوه لوکدورت مي په نوردجذبي دذي الجلال بدل سو نوسوال دالله ځخه کوم چه زملدزره قضاء دنوره دافاضه لوس دداسي مرشدمحرومه نه کړي لودي لما ځخه غائب نه کړي والا زملمرګ به رلسي پدي خاطرچه مرشدين دهر ځاي وړ وطن چه دهغه وطنه غائب سي الله پر هغه وطن بلا نه نازلوي الله فرمايي (وماکان الله ليعذبهم وانت فيهم وماکان الله معذبهم وهم يستغفرون ) لو پدي کښي شک نسته چه علماء مرشدين ورثه دانبياو عليهم السلام دي ۱۲

| مرحبا يامجتبىٰ يامرتضىٰ (۱) | ان تغب جآء القضاء ضاق الفضاء |
|---|---|
| باچاوايي لوس دعشق په ولوولو کښي | داسي وايي دوصال په ښونغمو کښي |
| ښه راغلي وايم وتاته اي مختاره | چه رضاداده شده يي دباداره |
| په وصال دي زماخوشرنګه مرحباده | په هجران دي پرماتنګه لوفضاده |
| که غائب سي ته لمامرګ به مي راسي | هم پرماباندي به تنګه دافضاسي |
| هرعاشق چه وي صادق دايه مضمون دى | په معشوق پوري تړلي ځيل ژوندون دى |
| دمعشوق جدايي مرګ دي دعاشقه | هرعاشق چه پخيل عشق کښي وي صادقه |
| مسترشد دخپل مرشد په ليدل پايي | تري خودبه دابويه چينبل پايي |

| انت مولي القوم من لايشتهي (۲) | قدر دىٰ کلا لئن لم ينتهي |
|---|---|
| اوس باچاکوي بيان په داسي خروشه | چه دعشق دريب راغلي يه په جوشه |
| ته ناصر دتوله قوم يي اي ملاکه | څوک چه نه کړي ستاخواهش وي به هلاکه |
| په تحقيق که منعه نه سي ددي کاره | ترتندي به ونيسي پرزور ګاره |
| يعني تينګ به سي دده دسرپيښتانه | داکاذبه ناصيه بي سي پريشانه |
| دهلاک کنده بي ځاي سي هرزمانه | بيابه هيڅ نجات ورنه کړي مجلسيانه |
| مولناچه په دي بيت وکړي بيانه | اقتباس دى دالله دسپين قرآنه |
| شکر تاسورة علق دي ښه ليدلى | داستاذه دي په ښه ډول ويلى |
| نورنو ته پکښي روان کړه ځراکته | فکارواچه وه داخپل ښه فطانته |

(۲) وقت چه په سلبق کښي حال دلعزازو اکرام بيان سو، لوس حال درد وانکلرسيانه وي نووايي انت مولي الخ ،دايه تعلق وارتباط راغلو ومعني ته هغه دلچه ته اي مهمانه ناصر لومدد ګار دقوم ني هرڅوک چه تانه غواړي لوستامحبت نه لري هغه به خامخا هلاک سي. که چيري ددغه کاره منعه لوتوبه ګاره نه سي دابيت اقتباس دآية کريمه ځخه دي چه الله پاک فرمائي (کلالئن لم تنته لنسفعا بالناصية ناصية کاذبة )) نوپدي ځاي کښي صيغه غائبه مناسب ده که څه په آية کريمه کښي په صيغه دمخاطب راغلي لکه موږ ودغه مضمون ته په ترجمه کښي اشاره وکړه پدي ذکښي شک نسته چه اولياء الله دخداي پاک محبوب بندګان دي اوالله پاک ي دخپل دوستانو په نامه ياده وي نوهرهغه څوک چه داوله نه غواړي اودمحبت پرځاي بغض ورسره لري نوخامخابه دغه څوک مبغوض ګرزي لوهلاک کيږي به ۱۲

ابو الحفاظ :مولوي صالح محمد الارغستاني.

## برد‌ن بادشاه آن طبیب را بر سر بیمار تا او به بیند[1]

چه باچاملاقـات وکړې په لورشـانه ... اوس نووقـت ددي رسـيږي زماجانه

چه باچاحـرم ته بـوزي داطبيبـه ... وربنکاره کړي خپل مريض دزړه حبيبه

وقـت چه دامضمون وتاته ننداره سـو ... تعلق وارتبـاط تاته ښکاره سـو

خلص بـيان ددي عنوان دي څوشـيانه ... غوږ پرونيسـه چه تاته سـي اسـانه

اول پره جسـتجويي ددي طبيبـه ... چه په څه دقـت ګوري دشـاه حبيبـه

څومرض دردؤالم ئي تول تشخيص کړه ... ماورادطبيبـانوئي تخصيص کړه

دوم شـان وجلالت دعشـق په جوشـه ... مولنا بـيانه وي په جوش وخروشـه

دريم رابسي هم بحث دشمس تبريزه ... درومي دعشـق کاسـه بـه سي لبـريزه

نوپرخوله بـاندي راوړي اسـرارورازه ... هم دشمس په انعام سوربه کړي شهبازه

نوبه سـوال وبه جواب کوي بـيانه ... پرداغه مضمون بـه ختم سـي عنوانه

## چون گذشت آن مجلس وخوان کرم[2] ... دست او بگرفت و برد اندر حرم

چه اول ئـي عـزت وکـړي دمهمانـه ... نوواپس ئي ورته عرض کړي حال دڅانه

دباچاحـال ومعلوم په ولوله کښي ... دمهمان دارازمدفون ووپه سينه کښي

خلص بـاچاچه سـوفارغ دخپل کرمه ... په ادب ئي مهمان بـوتي ترحـرمه

هم دارنګه کاروباردسـالکانو ... پره ادب عزت کوي دمرشـدانو

پرمرشدبـه عرضه وي دزړه اسـراره ... هم دده بـه زده کوي دنجات لاره

پرخپل رازدي مطلع خبـرکامل کړي ... بـيادي هم دزړه حـرم ته ورداخل کړي

خلص اخلاص دمرشدفرض بوله ياره ... بـيله دغه نوکړه دسـلوک لاره

---

(١) تناسب ددي عنوان دسابق سره په دي خاطردی چه وميلمه ته خپل حال ويل اوله ده څخه حاجت غوښتل پس ترسلام واکرام واطعام مشروع دي نوپه دي وجهه ئي اول اول دوم دوم راوړي خلاصه ددي عنوان بيان دڅوشيانودي اول اظهار دباچاومهمان ته دخپل حال دوم دقت دطبيب مهمان په طبابت خپل کښي دريم بيان دجلالت اولوړشان دعشق الهي څلورم ذکردشمس تبريز نورالله روحه دمولناقدس سره څخه دفنافيه په ډول .معني دعنوان داده چه داعنوان په بيان کښي دوړولو يعني دبيولودباچاهغه طبيب لره وطرف دسردمريض حتي چه طبيب حال دمريض وګوري اومعالجه ئي وکړي .دصوفيه کرامو په ژبه داسي ويلاي سو چه مراددباچاڅخه روح اودطبيبه مرشدکامل اوناجوړي منځي څخه نفس امارة کوم وقـت چه علاج ددغه نفس په ارشاد بـاندي وسـي نودي بـه مطمئنه وګرزي اوراضية مرضية بـه جوړسـي کما قـال سبحـانه وتعالي (يا ايتهاالنفس المطمئنة ارجعي الي ربـک راضية مرضية) الآية ١٢

(٢) تعلق وارتبـاط دبـيت دعنوانه سـره ظاهراوښکاره دي معني دلووقت چه ملاقات ومجلـس واعزازواکـرام واطعام تيرسونوبـاچامهمان الهي تـرلاس ونيـوي پرلـور دخپل حـرم سـراي يه روان کړي .دبـيت معني په ژبـه دصوفيه کرامودلـسـي هم بـيانه ولاي سـوچه کوم وقـت چه روح ومرشـدکامل تـه مراجعـه وکـړه اودده ملاقـات واعزازواکرامه څخه فارغ سـونوئي مرشـد کامل وخپل روحـاني حـرم ته داخل کړي اودخپل مريض ملګري نفس امارة رنـځ ورنځوري ئي ورته بـيان کړه لودعلاج غوښتنه څني وکړه .نودبـيت څخه واضح داخبره راوخته چه دميلمه په هکله قانون دادي چه اول به اکرام دضيف وي بيابه اطعام دده وي پس له دي به عرض دحال خپل وي څکه داچه دشريعت غوښتنه هم ده دي مضمون ته اشاره تاپه سابق کښي وپيژنده ١٢

ابو الحفاظ :مولوي صالح محمد الارغستاني .

قصہ رنجور رنجوری بخواند[1] | بعد ازان در پیش رنجورش نشاند

نو قصه ئي دمريض مرض سلطانه | پره بــيان كړه وحـــضورته دمهمانه

پس لدغه باچاوروستي بيمارته | منتظرد الهي طبـــــيب وكارته

وه لي ليدلي وه بـــــاچامزورينه | دامغروره اطبــــاء دســـــرزمينه

نه ددوي په طبابــت وســو علاجه | نه ددوي په تداوي روغ ســـــومزاجه

سرپردي چه دوي ماهره طبيبان وه | خپل په عصركښي ظاهره حكيمان وه

شــرائط دطبابــت ئي آراســـته وه | وســــــائط دځراكت ئي آماده وه

نوچه دوي ناكامه سوه اي مفتكره | نوبـــــه ولي بـــــاچانه وومنتظره

رنگ روو نبض وقاروره بدید[2] | هم علامات وهم اسبابش شنید

رنگ ونبـــــض وقـــــاروره وليدله | علامات واسباب ټول ئي وپوښتله

ممكن داامور بـــــــــناوي پرظاهره | ورته ځيرسه غوږ پرونيسه ماهره

رواداچه ئي مرادشاهدالحـــال ســـي | په ظاهره بـه ئي داامورمثال ســي

دالله څه بـــــندگان بــــــاولايته | حـــال دخلكوپيژني په فراســـته

په دي ډول كه طبـــــيب نه وظاهره | بـاطني طبابـت بـس دي اي ماهره

كه ظاهرلفظ ته بـــــيت وكړونظره | نو اول بنابـــه موږ ته ســي اظهره

اوس نوو پيژه ني فرق زمااحبابـــــو | په ملاـــين دعلاماتوو واسبابـــو

سبب مخ كښي ترمرض وي بالضروره | علامه پس ترمرض كوي ظهوره

بنه مثال ئي عشق وژړرنگ دي ځيركه | چه يه واوري ته بـه ووايي بيشكه

(۱) وجهه دتناسب ددي بيت دسابق سره داده چه دابيت بيان دماقال ومافعل دباچادي پس تردخول وحرم سراي ته راغلو ومعني ته دبيت هغه داچه باچاقــصه دمريض ومريضي والهي طبيب ته وكړه پس له دغه ني طبيب الهي ورنخورته كښيناوه اودده د تشخيص وعلاج په انتظاروو ځكه چه دمنخي دمرض علاج وباچاته يو طبعي گران امربنكاريده وه لي ده دسابقه طبيبانو عجز ليدلي وونو كه څه هم باچاواوسني طبيب ته معتقدوو خو بياهم بشري طبعه ورسره ملگري وه نو په دي خاطرني انتظاركاوه .قصه په بيت كښي عبارت :د دهغه ماجري ځخه چه منخه معشوقه مريضي ني ژړي رنگ تاروناربدن اومراجعه دباچاواطباؤمزورينو نه چه هغو په تدلوي سحت څه بـــلكه مرض زيات سونوله دي بيت دامعلومه ســوه چه مطالبــه دعلاج دطبيـــب ځخه پس تردي ده چه يوولربـــــه مرض طبيب ته بيانه وي بيابـه مريض ورحـــاضره وي بيابـه نومطالبـه دعلاج دطبيـــب كوي نه دجزاف په ډول لكـه داچه په نـــن عصركـښي رواج لـــري والسلام ۱۲

(۲) وقـت چه په سابـق بيت كښي حضوردمريض وطـبيب ته بـيان كړي لوس معاينه دطبيب دغه مريض لره بـيانه وي نو وايي رنگ رو الخ .راغلو ومعني ته هغه داچه دغه طـبيب الهي ورنگ ته د مريض وكتل همدلرنگه نبـــض وكتي همدلرنگه ني ادرلرمعاينه كړي هم دارنگه ني علامي واسباب واوريدل څوتشـــخيص دمرض ورته وسو .رابـــه سوفرق ته دسبب وعلامي سبـــب هغه ته وايي چه مخ كښي ترناجوړي واقــع كيږي لكه غلبه دصفرا. دتبي دپاره مثلااوعلامه هغه ته وايي چه پس ترناجوړي ظهوكوي لكه تلخه گي دخولي مثلاهم دارنگه په عشـق وژړرنگ مثال ويلاي ســو ،اوس داخبره پاته ســوه چه دغه مهمان الهي ظاهري طبيب هم وو اوكه ني دغه امور دلسان ځخه دشاهدالحال په خپل فراست پيژندل كماروي .((ان لله عبادايعرفون احوال الناس بالتوسم اي الاثاروالعلامات والفراسة خوظاهردبيت پراول ظاهردي ځكه چه حكمت ظاهري دحكمت باطني سره منافي نه دى والســلام ۱۲

ابو الحفاظ :مولوي صالح محمد الارغـستاني .

## گفت هرداروکه ایشان کرده اند[1] آن عمارت نیست ویران کرده اند

مهمان وويل دارودطبيبانو — دوانه ده ددي رنګه مريضانو
هم په دي رنګه دواعمارت نسته — ويراني يه ده حتمي مرامت نسته
دطبيب دوادواي جسماني ده — دمريض خوبيماري يي روحاني ده
طبيبان مزورين دي نه پوهيږي — دبدن په دواکله روح جوړيږي
نودواچه مخالف وي دمزاجه — ويراني بي خامخاوي لاعلاجه
هم دارنګه مزورشيخ بي کماله — دربدربه کړي مريدصاحب جماله
په تزويرباندي چه ږغ دده رباب کړي — په خوانۍ کوردمريدبه ورخراب کړي
همدارنګه چه استازوي ناقابله — استعدادبه دشاګردکړي وړباطله

## بی خبر بودند از حال درون[2] استعیذ باللہ مما یفترون

بي خبر دزړه دعشقه دبيماروه — دبدن وتداوي ته تول تياروه
مرض يودوي بل مرض وو تشخيص کړي — وداخپل بول ته ئي حکم تخصيص کړي
په غفلت باندي پرخپل حکم اسرارو — په جرائت باندي پرخپل غلط رفتارو
داطبيب چه مفتري نه دی نوڅه دی — داحکيم چه مجترئ نه دی نوڅه دی
ياالله موږ پناغواړوله دي داغه — چه دځانه جوړه وو داسي دروغه
هم دارنګه مزورچه وي شيخانه — چه ځانونه ئي جوړکړي وي پيرانه
چه په دي تزويرده وي کاروباره — نوبه ولي مفتري نه وي زمایاره
دغه لويه افتراء واجتراء ده — دی په خپله دی مريض فرض پردواده
نوبه څرنګه دزړو،وکړي علاجه — نوبه څه رنګه صفاکړي خړمزاجه
هم دارنګه چه استاذنه وي کامله — مفتري دی دشاګردزهرقاتله
په باربارتاته زاري کړو يابادارِه — مفتري مومه کړي جوړپروردګاره

(۱) وقت چه په سابق بيت کښي دابيان وکړي چه طبيب الهي معاينه دمريض په حقاني ډول وکړه اومريضي ئي تشخيص کړي اوس په دي بيت کښي دپخوانيو طبيباونوحال په ناپوهي بيانه وي نووايي گفت هرداروالخ.دايه تعلق وارتباط راغلومعني ته هغه داچه طبيب الهي دځانه سره وويل چه هرعلاج چه فعل ئي اطبا. کړي هغه عمارت ؤدوا. نه ده بلکه خرابي ئي مابين ته راوړي ځکه چه علاج جسماني ازالة دامراضوروحانيه وونه سي کولاي سره ددي چه په دغه سي تزويرتداوي غالباپرخلاف دمزاج واقع کيږي نوعمارت له کومه بلکه ويراني زيږه وي نودوي په نامه دضال ومضل حقداره دي نه په نامه دطبيب ومعالج همدارنګه مزورشيخ چه دي زعم ددي کوي چه دی نومريدانوته ارشادکوي خودارشادده ازديادضلالة راولي نودی ضال ومضل. ګرزي نه دی وصراط مستقيم ته رسيده کولاي سي نه بل څوک ور.رسه ولاي سي اللهم احفظنامن تزويرهم وارزقنااتباع الکاملين آمين ۱۲

(۲) وقت چه په سابق بيت کښي حال دپخوانيو طبيبانوپه نه عمارت ؤ. ويراني بيان کړي اوس علت دهغه بيانه وي نووايي بي خبربودندالخ.دايه تعلق وارتباط راغلومعني ته هغه داچه دغه طبيبان بي خبره وه دهغه مرضه چه د منځي په زړه کښي ووچه هغه نوعشق و. اودوي دا مرض نه وو تشخيص کړي اوشروع ئي په علاج بدني دمنځي په جهلانه ډول باندي کړي وه نوزه پناه په الله دهغه څخه غواړم چه دوي به دځانه جوړيدل کوي ځکه چه مرض ځ. اوددوي حکم وتداوي څه همدارنګه هغه منشيخ لومزورمرشد چه دطبيب باطني دعوه ئي کړي وي اودمريددمرض تشخيص هيڅ نه وي ورسره اودپاره دجاه ونام ونشان ومال ئي شروع په تزويري ارشادکړي وي نوددي په باره کښي هم حق ده چه ووويل سي استعيذبالله ممايفترون همدارنګه مفتي ومدرس مزورپه استعاذه لائق دي ځکه جاريه دنفس ددي ټولوسخته مريضه ده ومعالجي ته اشدضرورت په خپله لري معالج به له کومي خواسي والسلام ۱۲

ابو الحفاظ :مولوي صالح محمد الارغستاني .

**دیدرنج و کشف شد بروی نهفت** (۱) — **لیک پنهان کرد بر سلطان نگفت**

رنځ طبـــيب الهي ته ســــوعيانه — مګرپټ ئي کړي داسِرده دسلطانه
رنځ دعشق ووچه پروح کښي په پرهاروو — داسي نه چه دبدن سره ئي کاروو
روح دمنځي وومريض ددي په تن کښي — دزړګرپه مينه بندپه بل وطن کښي
داقـــانون وبنه عادت دمرشـــدانو — چه سِرپټ ساتي دخپلوسالكانو
هُمدارنګه دعامه مســـــلمانو — ورقربان مي کړي ترداسي کاملانو
په تدبـــيرئي ازاله کړي دنقـــصانه — هم دروح معالجه کړي په ښه شانه
خدايه داســـي معالج ته زماميلمه کړي — دعلاج مي هم راجوړه ذريعه کړي

**رنجش ازصفرا واز سودا نبود** (۲) — **بوی هر هیزم پدید آید ز دود**

دغه بـــيت نومقـــوله دمولناده — په تمثيل مشهور ،ويل ئي داوبناده
رنځ وردرئي هم په داسي منوال نه وه — چه اخلاط اربـــعه ني نورمال نه وه
په بدن کښي ډيره سوي سودانه وه — هم په جوش باندي راغلي صفرانه وه
نوعلت دمريضۍ ئي ســـودانه وه — هم علت درنځوري ئـي صفرانـه وه
دانووه لي ول ئي دادۍ دزړه ســـره — ورته ځيرسه چه بـاريک دی داخبره
هريولوبني ترشـــح کړي بـــمافيه — داسي نه چه دی ترشيح کړ ليس فيه
بـــوي دهرلرګي ښکاريږي له دخانه — که څه عودکه صنوبـــروي که رمانه
هـــم دارنـــګه ددي منځي دکوګلـــه — جګيدل بـــــه آه وواوه اي زماګله
دغه دواړه فال نامي دي عشق وروره — دغه دواړه علامي دي دعشق وروره
علامـــي واثـــاروواړه دلائـــل دی — صوفيه کرام په دي باندي قـائل دي
نومعلومه چه مرض ئي وودعشقـــه — نه ســـوداوه نه صفراوه سِرمشقـــه
نووتاته دامضمون ســـوځل وبـــله — چه دوم نيم بـــيت علت دی :اوله
چه پدي تقريرسرشاله سوي طالبـه — نودلويه سواله بچ سـوي اي جالبـه

(۱) وقت چه مولناقدس سره حال دطبيبانوپه بي خبري بيان کړی اوس حال دطبيب الهي په خبرداري بيانه وي نووايي ديدرنج الخ. دايه تعلق وارتباط راغلو ومعني ته هغه داچه طبيب الهي رنځ دمنځي وپيژندي اوپرده بـاندي پټ حالت ومرض دمنځي کشف کړه سوهغه سرومرض چه پرباچاواطباوو باندي مخفي سوي ووچه هغه عشق دمنځي پرزړ ګرباندي وونه انحراف دمزاج لکه دوي چه غلط ګمان کړي وو .لکن داسِرطبيب الهي دباچاڅخه پټ کړي وده ته ئي اظهارونه کړي اووده ته ئي داونه ويل چه نفس ستا هم مريض دی په عشق دمنځي اونفس دمنځي مريض دی په عشق دزړګرلکه داغه عادت دمرشد کامل دي چه عيوب د سالکه دسالکه وغيره څخه پټه وي اوکوښش ني په ازاله کښي کوي لهذانودوي وايي قلوب الاحرارقبور الاسرار ۱۲

(۲) وقت چه په سابق بيت کښي بيان دکشف دمرض قلبي وسواوس په دي بيت کښي دليل پر دغه بيانه وي چه دامرض قلبي وروجسمي نه وونو وايي رنجش ازصفرالخ ، دايه تعلق وارتباط راغلو ومعني هغه داچه مولنا قدس سره فرمائي چه رنځ دمنځي دصفراء وسودا څخه نه وويعني دانحرافه دمزاج منځه مريضه نه وه بلکه دهغه ځه څخه مريضه وه چه طبيب الهي ني کشف وکړي چه هغه نو عشق وواوس نودسوال راته ګوري چه دڅه بـه موږ وپيژنوچه دامريضي دصفرلوسوداڅخه نه ده بلکه دعشق څخه ده نو مولناپه دومه مصراع کښي ددغه سوال جواب وايي حاصل يه دلچه اثاروعلامي دشي دلائل دي پرشي باندي يعني په اثاروعلامو باندي شـي پيژندل کيږي مثلا نه بـوي چه پورته وظاهر سي له دخانه څخه اثر وعلامه ددي چه دادخان دخان دعوددي، مثلانوښه بوي چه اثروعلامه ده دليل سوپردخان دعودچه موثردي همدارنګه بدبوي چه پورته وظاهرله خانه څخه اثروعلامه ددي چه دلادخان دصنوبردي مثلانوبدبوي چه اثروعلامه ده دليل سوپردخان دصنوبرچه موثردي ذامضمون بناپرهغه مقوله دي چه دوي ويلي کل اناء بمافيه يترشح نوهم دارنګه آه واوه دمنځي چه اثردعشق دی، دليل پرموثرخپل دي نه پرسوداوصفراء نومعلومه سوه چه مرض دمنځي عشق وونه سودا وصفراء داغه زموږ مطلوب دی، پدي تقرير تادازده کړه چه مصراع ثاني دبيت علت داولي مصراع دی، نوردي پرخداي پاک سپارم ۱۲

| | |
|---|---|
| (۱) ديداززاريش كوزاردل است | تن خوش ست واوگرفتاردل است |
| طبيب وليداه وزاردغه منځي | نوئي وويل زړه پرهاردغه منځي |
| طبيب وويل تن ئي روغ تپ تياردی | آه واوه ځخي معلوم دزړه پرهاردی |
| الهي طبيب چه وكړي دادقته | وخپل ځان ته ئي معلوم كړي حقيقته |
| فراست دالهي طبيب وياره | دژړاسي كړی معلوم دزړه پرهاره |
| په تدبيرويه حكمت ئي نوعلاج كړي | دمرضه به نوخلاص مريض مزاج كړي |
| همدارنګه چه كامل وي مرشدانه | دمرضه سه به خلاص كړي مريدانه |
| همدارنګه چه قابل وي استاذانه | دحضيضه سه به جګ كړي شاګردانه |
| همدارنګه چه هريونه وي قابله | اساميانوته به وي زهرقاتله |
| (۲) عاشقي پيداست اززاري دل | نيست بيماري چوبيماري دل |
| لوي دليل دعاشقي دزړه ژړاده | بيماري دزړه وتن سره جلاده |
| عشق ښكاريږي ده ځګيروي ځخه دزړه وروره | نو تشخيص وتداوي سخته هرګوره |
| نه مرض نه ئي دواترسترګوكيږي | په دي پټ سرهرطبيب كله پوهيږي |
| دبدن دمريضي تشخيص اسانه | هم علاج وتداوي نه ده ګرانه |
| دمعقول ودمحسوس فرق دی ظاهره | تاويلي دامضمون دی اي ماهره |
| دمحسوس معالجه ايسرنوميږي | دمعقول معالجه اعسرنوميږي |
| نوفرق ډيرسوبه مابين داين وآنه | ګوره ګوره پكښي شك نه سي زماجانه |

(۱) وقت چه په سابق بيت كښي اوښوده چه رنګ دمنځي دسوداوصفرا. ځخه نه وواوعلت دنيست ئي هم وښودي چه دهغه ځخه ضناعلت هم معلوم سواوس علت دمريضي صراحة راته ښه يي نوايي ديداززاريش الخ .دايه تعلق وارتباط راغلومعني ته دبيت هغه داچه كوم وقت چه طبيب الهي ژړاوآه واوه دمنځي وليده نوپدي پوه سوچه دامنځه مريضه دزړه ده تن ئي جوړدي خو زړه ئي ګرفتاربه عشق باندي دی. نودوهمه مصراع دی كه ته دالستفساروكړي چه طبيب الهي دځه دركه ژړلوآه واوه واوهه ځخه دزړه مريضي اودبدن جوړښت وفهماوه نوموږبه دادرته ووايوچه داڤهم پدي خاطروچه اثردليل پرموثردي يعني په اثرموثرپيژندل كيږي لوږدي كښي شك نسته چه ژړلوآه واوه اثر دعشق دي چه دلنوزړه مريض ګرزه وي نه اثردسوداوصفراء مثلاچه دانوبدن مريض كوي نومعلومه سوه چه مزاج وبدن روغ لوزړه نا جوړه په دي وجهه طبيب الهي دافهم وكړي نوردي پرپاك خداي سپارم ۱۲

(۲) په دي بيت كښي توضيح دسابق ده داغه ئي وجهه دتلب ده راغلو ومعني ته هغه داچه عشق ظاهريږي دآه ولوهه دقلب لونسته يومرض مثل د مرض دزړه ولي جسدمحسوس دی لوقلب معقول دی شك نسته چه معالجه دمحسوس اسهله ده ترمعالجه دمعقول لوشك نسته چه ظاهرعنوان دباطن دی لومرض دقلب دلسي نه دی لكه مرض دجسدلسي روايت راغلي چه قلب ملك وبساچادي ده لره فوج دی وقت چه باچافلسدسوفوج فلسد دي وقت چه قلب مريض سي صحة دجسدفائده نه لري په حديث شريف كښي راغلي چه بدن كښي دابن آدم يوټوټه غوښه ده كه دااصلاح وي بدن به ټوله اصلاح وي كه دافاسده سي بدن به ټول فاسدوي اګاه اوسي هغه نوزړه دي

ابو الحفاظ :مولوي صالح محمد الارغستاني .

(۱) دابيت تفصيل دسابق دي دايه ارتباط راغلو ومعني ته دبيت هغه داچه مراددعلت څخه په دي قول کښي چه علت عاشق الخ. عشق دي نومعني دا سوه چه عشق دعاشق دامراضو څخه دنوروم ريضانو جدا وممتاز دي پدي چه عشق عاشق ومراتبو عاليه ور ته رسوي څکه چه عشق يووصف دي چه په ده باندي عاشق اسراردحق جل جلاله پيدا کوي لکه اصطرلاب چه په ده باندي احوال دلمرسري پيدا کوي اونور امراض ومريض ته هلاک وربه برخه کوي اوس نو داسوال وطالب ته پيدا کيږي چه پردي طرز خونو عشق مرض نه سو بلکه يو ښه وصف سو نوئي بيا اطلاق دعلت څنګه ورباندي وکړي جواب به داسي وايو چه دا اطلاق مشاكلة وربانديسوي دي راغلو لفظ ته داصطرلاب دا مرکب داصطر چه لفظ يوناني په معني دترازو اودلاب څخه چه لفظ رومي په معني دلمر يعني ترازو دلمر .که موږ وتلسي په ښه دقت وبيت ته نظروکړونو به داخبره زده کړو چه مولنا قدس سره اشاره کوي ودي ته چه لکه علماء دظاهر چه حرکات دنجوم وشمس وقمر په آله داصطرلاب پيژني هم دغه رنګه عرفاء دباطن انوار دتجليات الذاتية والصفاتية والاسرار الالهية وترقي سالک الطريقة په اصطرلاب دعشق پيژني ۱۲

| علت عاشق زعلتها جدا است (۱) | عشق اصطرلاب اسرار خدا است |
|---|---|
| دعاشق مرض دی بيل دبل مرضه | مقام ضيق دي پکښي وپلتهٔ رضه |
| اول داچه مراد مرض دی دعلته | نه دازماوستامشهور معلول علته |
| دوم داچه عشق علت دی دعاشقه | نو تعريف دمرض څنګه پرصادقه |
| ولي عشق خو عاشق وري ولو مرام ته | خو مرض به مريض وري دمرګ مقام ته |
| نوعشق کله سو مرض دسترګو توره | ورته څيرسه پکښي ګوره لوردلوره |
| ودي سوال ته جواب وواېه وچته | وا اطلاق دی بنابر مشاكلته |
| نومشاكلةً عشق يو مرض بولو | داسي نه دحقيقت په ژبي لولو |
| اوس نوراسه اصطرلاب يوه آله ده | داحوالو دافتاب يوه بانه ده |
| همدارنګه عشق بانه ده داسرارو | ذريعه ده دالله پاک دانوارو |
| مګرحمل ته نظروکړه عاقله | چه تشبيه بليغ پيدا کړي اي فاضله |
| عاشقی گرزين سروگران سراست (۲) | عاقبت مارابدان سررهبراست |

ص چه اول په واسطه دمرشد کامل عشق حاصل کړي ددغه عشق دحصول په ذريعه نونقائص ورزائل خود به خوده زائل سي ودي عاشق ته دوي عاشق من جانب الحق وايي ،داچه دي وپيژنده نو تقرير دجواب داسوچه شک نسته چه هريو ددي قسمينو دعشق که اين دي که آن رهبرور هنماو اصطرلاب وحق ته دي نو مطلق عشق اصطرلاب داسرار دخداي سو نو سوال دفعه سو اوس داخبره بايد زده کړو چه دلته يو بل عشق هم سته چه هغه نو عشق مجازي په عرف کښي دعوام الناس دی ،دغه نو هغه عشق ته وايي چه تعلق يه په مظاهر پوري نيولي وي اوفقط وفقط ئي دغه مظهر معشوق ګرزولي وي اودقيقي څخه ،باقي برصفحه آينده،

(۲) وقت په سابق بيت کښي عشق مطلقا په اصطرلاب داسرار خدايا دسونو سائل ته يو سوال پيدا کيږي هغه داچه عشق مجازي خو په مطلق عشق کښي داخل دی سره ددي چه داخو اصطرلاب وذريعه داسرار والهيه ونه دی بلکه موجب دحجاب دی نو مولنا قدس سره په دي باندي جواب ورکړي خو حاصل ددي جواب په دوه تقريره کيدلاي سي اول داچه لفظ داين په بيت کښي اشاره ده وعشق مجازي ته ولفظ آن اشاره ده وعشق حقيقي ته عشق مجازي په عرف کښي دعارفانو اودحادث الشعرآ. هغه عشق ته وايي چه ناشي دتعيناتو ومظاهر وڅخه وي اوتعلق ئي ظاهراً په مظاهر وپورنيولي وي لکن په حقيقت کښي عشق پرحق جل مجده دی چه ظاهر په دغه مظاهر وکښي دي نه پرمظاهر وبلکه مظاهر ودغه عاشق ته مرايااو حيثيت لري نه دوي مقصود نه ملتفت اليه بالذات دي بلکه مقصود وملتفت اليه حق سبحنه دی اوعشق حقيقي ،هغه عشق ته وايي چه تعلق ئي په حق جل پوري نيولي وي قع نظر دتعيين وتقييد په مظاهر وباندي اوپه دي کښي شک نسته چه داهريو دقسمينو که اين دی که آن رهبرور هنماو اصطرلاب وحق ته دی نو مطلق عشق اصطرلاب داسرار دخداي سو نو سوال دفعه سو ،راغلو دوم تقرير ته دجواب وقت چه تقرير موقوف پر معرفت دسالک مجذوب اومجذوب سالک نو لازم دي چه اول دادواړه وپيژنو بيابه تقرير په لنډ ډول بيان کړو نو وايو چه سالک مجذوب هغه سالک دی چه اول خان په واسطه دمرشد کامل دنقائصو ورزائلو څخه پاک کړي څو مستعد دمعرفت الهي وګرزي پس تردي وروسته معرفت اوعشق الهي حاصل سي ودي عاشق ته نو دوي عاشق من جانب سالک وايي اومجذوب سالک هغه سالک ته وايي ص

بقيه صفحه د ظهور دحق په دغه مظهر كښې غافل وي او مظاهر وده ته داصالت حيثيت لري نه ده مرايانو مقصود و معشوق وملتفت اليه بالذات دده هم دغه مظهر وي وبس دغه عشق نو موجب دحجاب او ننګ وعاروي نه رهبر دغه قسم نه په اين نه په آن مراددی. په ملتحن فيه كښې نه په مطلق عشق كښې زموږ داخل دی نو په ده باندي سوال نه وارديږي . كه ستاعلم زموږ پر تحقيق و تفصيل محيط سي نو به د مولنا قدس سره په دوو بيتو كښې به د تناقض په دام كښې ونه خيږې دوه بيته يو داموجوده بيت يو هغه بيت چه وروسته راځي هغه دا . عشقهاي كز پئ رنګی بود :. عشق نه بود عاقبت ننګي بود :. همدارنګه به د عارف جامي رحمة الله عليه

دغه بيت نو اوس دهغه سوال جواب دی — چه مطلق عشــق نو كله اصطرلاب دی

په سابق بيت كښې تا عشق مطلق ويلی — هم داغه دی اصطرلاب دسر بــــــللی

خو يو قسم مجازي عشــق دبنده دی — هغه كله داســــــــــراروذريعه دی

چه سبــــــــب دی دالله پاک دانوارو — اصطرلاب دی دالله پاک داســــــــرارو

هغه عشــق حقيقــي دپاک مولادی — نه داعشـــق مجازي چه زماوســـتادی

اوس نــو ګوره مولنا داجــواب وايـــي — ماوتاته يه په بنه ژبــــــــه فرمايي

عاشقـــي كه له دي خوا ، او هغي خواوي — عاقبـــت كښې موږ ته دواړه رهنماوي

يعني عشق كه له دجانبه ځخه دحق وي — يادلوري دســــالک ځخه پر حــــق وي

دغه دواړه اصطرلاب زماداســـــــــرارو — رســــــــوي مي دالله پاک ترانوارو

مولنا چه په مطلقـــي عشـــق دغيري — هم ئي دغه دوه اقســــام ځني مراديږي

شک خونســـته چه دادواړه اصطرلابـــه — نو په دغه نکته وسو ستا جوابــــــــــه

مجازي عشـــق نه دی مرادزمابـــــادره — دغه بنه توجيه پيادكړه باخبــــــــــره

كي بــــــياومنوجواب دادی يارانو — چه مرادعشـــــــق مجازي دی دونيانو

نه داعشـــق مجازي چه ننګ وعاردی — زماوســـــــتادزماني چه ســــــــروكاردی

خوبيا هم مقــام مخفي دی زماوروره — تفصيل واره په حاشيه كښې زموږ وګوره

په دوو بيتو كښې د تناقض دلومي خلاص ســـي هغه داچه يوځاي وايـــي مثلب لزعشق روګرچه مجازيست : كه آنهر حقيقت كارسازيست : بل ځاي فرمايي ولي بــايد كه درصورت نمايي وزين پل زود خود رابــــګذراني : راغلو وخلاصــي نه حمي ته د بيت هغه داچه عاشقـــي كه دســــــالک مجذوب خــولوي لوكــه مجذوب ســـالک دخولوي بـــالآخره موږ دله دعارفانو د حـــق ته رســـــوي همدارنګه عاشقـــي كه حقيقـــي دي كه مجازي دعارفانو موږ حـــق ته رهبـــركوي دلخيال نه كوم چه په ارتبـــــاط كښې دي نانه شـــک پاته دي ۱۲

ابو الحفاظ: مولوي صالح محمد الارغستاني.
الراقم: سيد عبد الهادي الهاشمي.

هرچه گویم عشق راشرح وبیان[(۱)]

خه چه وایمه په عقــــــــــل وگمانه
وقـــت چه زه ودغه عشــــق ته ورســــیږم
یعني مخ کښي چه ترعشق په عشق گویان یم
ولي مراد ،دعشقـــــه دلته ذات دحـــــق دی
یادعشقـــــه مرادحــــــالت روحـــــاني دي
مســــتولي گرزي پرقــــلب دهرعاشقـــــه
یادعشقـــــه مرادصفت چه هغه شــــان دی
نودعشــــق شرحـــــه نه کیږي په بـــــیانه
وقـت چه وصل سـي وعشــق ته اي لائقـه
ولي فرق دی دبــــــــــیان ودعیانه
درومي حــــــــالت ویني مشــــــاهده ده
که بـــــیاهم مضمون مجمل درته ښکاریږي

چون بعشق آیم خجل باشم ازان

په بــــاره کښي چه دعشـــق کوم بـــیانه
نوبه خپله سابقــــه ویناشــــــرمیږم
پس ترعشقـــه بـــه خجل په خپل بــیان یم
نوبـــیان ئي په قـــیاس ضعیف مطلق دی
محســــــوس نه دی، کیفیت دوجداني دی
دامعني دلاحـــــق بـــیت ســــره لائقـــه
داهم لوړترهردفتروتربــــــــــیان دی
په قیاس مه کړه خپل ځان ستړي ستومانه
بیابــــه وخوري خجالت پرخپل سابقـــه
دامضمون وتاته بـــــــالکل دی روښانه
نوئـــي ځکـــه په دي طرزمکالمـــه ده
پورته گوره په حاشیه کښي تفصیل کیږي

گرچه تفسیرزبان روشنگراست[(۲)]

که څه ژبــــــه بـــــرملاوایي حـــــالونه
وایي عشق دی، داسي داسي هاسي هاسي
ولي عشـــــــــق خوکیفیت وجداني دی
هوکه داکیف اوریدونکي ته پیداســــــــي
نودعشـــق توصیف نه کیږي په بـــــیانه
بلکه عشق چه سوحاصل په یووجدان کښي
نودژبــــــي قـــیل وقــــال ترجمان نه دی

لیک عشق بیزبان روشن تراست

اوریدونکي ته کوي ښه بـــــــــیانونه
اوریدونکي ته بـــه څه بـــاوریه راســـي
دانوکله ددي ژبـــــــي اســـــامي دی
نوباوربــــي په یقـــین وربــــاندي راسـي
که څه ژبـــــه روښـــــنگره ده هم ځوانه
روښان تردی خودبه خوده په خپل ځان کښي
هم بـــیان ددي بـــیان دسحبـــان نه دی

(۱) وقت چه په سابق کښي ذکردعشق په مختلفو اثاروتعبیراتوو بیانونو باندي وسو نو متوهم به داتوهم کاوه چه عشق په واقع وحقیقت کښي هم دغه مبین ومعبردي وبس اوحال داچه بینهمابون بعیدنو مولناقدس سره په دي بیت اشاره وفرق ته کوي نووايي هرچه گویم الخ ،دایه تعلق وارتباط راغلومعني ته هغه داچه هرڅه چه زه مخکښي تراتصاف په عشق په عقل وقیاس شرحه وبیان دعشق وکړم خوپس تراتصاف به پرخپل سابق شرحه وبیان خجالت خورم ځکه چه بیان وعیان دلته ډیرفرق لري داپرهغه تقدیرچه عشق پرخپله معني پاته سي داهم احتمال لري چه عشق په معني دمعشوق سي چه هغه نوحق جل مجده دی نومعني داچه هرڅه زه مخکښي تروصول وشهودوحق ته شرحه وبیان په عقل وقیاس ددغه معشوق وکړم خوپس تروصول وشهوددحق به په خپل شرحه وبیان خجل وگرزم ځکه چه ډیرفرق سته په مابین کښي داین وآن چیري بـــرلعین لیه لوچیري مشاهده همدارنگه احتمال لري چه مرادله عشق څخه شان دحق جل مجده سي نومعني داچه هرڅه چه زه مخکښي تروصول وشان وصفاتو ته دحق شرحه وبیان په عقل وقیاس وکړم خو چه وشان وصفاتودالله جل جلاله وصل سم لو مشاهده راته وگرزي نو به په خپل سابق شرحه وبیان خجالت وخورم ځکه چه بیان دشان لا تناهي لوړتربیان دی ۱۲
(۲) دلبیت جواب دهغه توهم دي چه دسابق بیت څخه پیدا سو هغه داچه ته ځنگه ده تشریح ورو دبیانه چه وظیفه دژبي ده خجالت خوري حال داچه ژبـه آله دتشریح وتوضیح وبیان ده حاصل دجواب داچه ژبـه که څه آله دتشریح وتوضیح ده لکن عشق په ژبه نه تشریح کیږي نه ئي توضیح کیدلاي سي ځکه چه عشق یو کیفیت وجداني دي په مجردتعبیرئي تشریح وتوضیح نه سي کیدلاي بلکه دغه عشق پخپله بي ژبي په وقت داتصاف دزړه په ده باندي روښان تردی والسلام ۱۲

ابو الحفاظ :مولوي صالح محمد الارغستاني .

نومعلوم سو عشق بي ژبي دی روښانه | د توصیف ئي ژبه نلري هيڅ توانه

خلص ظاهر ژبه تکره په قیل وقال ده | خو دحال ژبه روښانه ترمقال ده

## چون قلم اندر نوشتن می شتافت[1] | چون بعشق آمد قلم برخود شگافت

چه قلم په نوشته کښي زغلیده کړي | چه ذعشق بیان ته راسي ماتیده کړي

قــــلم هرڅه په رونق چه وچلیږي | چه دعشــق بیــان ته راســي نوماتیږي

مراد، دماته دقــــلم خپل ناتواني ده | په اسرار وکښي دعشق ئي ستوماني ده

دقـلم ونوشــتي که لوي کاروان دی | واسرار وته دنشق ستري ستــومان دی

نوقـــــلم پرخپل ظاهره معني پاته | څه خفاؤ مشـــــکل نســــته ماوتاته

یابـــه مراد کړو دقـــلمه عقـــل یاره | علاقــــه ئي پته نه ده زماســــــرداره

عقــــــل تل هڅه کوي دادراکاتو | بــــيانيږي په چابوکو عبـــــاراتو

خو کم وقت چه وګوري دعشق وخواته | ګونګي وګرزي په عجز کښي سي پاته

نوپردي تقدیر صحیح سو دبیت مراده | بنه ئي وګوره ته مه اوســــي نامراده

## چون سخن در وصف این حالت رسید[2] | هم قلم بشکست وهم کاغذ درید

وقت چه عشق مشاهده غواړي زماجانه | ني توصيف په نوشـــــته نه په بـــــيانه

نوبــه خود قـــلم ماتيږي کاغذ څيري | هم بـــه ژبـــه دبـــيانه ســـه وي ليري

دغه دواړه کنايه دعجزه بــــــوله | دغه ځاي نو دبــــيان په ژبــــه لوله

داعجیب غریب ابــــشيات دمولنادي | هم الفاظ ئي دي سليس ډک دمعني دي

هم دعشق ئي په عجبه طرز تشريح کړه | په عجب عجب نمطونوئي توضيح کړه

هم په دي بيتو کښي درسته اشاره ده | چه مقـــــام دمولنامشـــــاهده ده

هم په دي مضمون کوي دی تصريحاته | پرامام بــــــاندي کوي دی تعريضاته

(۱) وقت چه دعشق په باره کښي په سابق بیت کښي ناتواني دژبي په عبارت سره بیان کړه اوس ناتواني دقلم په کتابت سره په دغه باره کښي بیانه وي نووایي :چون قلم اندرالخ .دایه تعلق وارتباط راغلو ومعني ته هفه داچه قلم خو په کتابت کښي ښه سرعت وچابکي لري لکن کوم وقت چه وعشق ته راسي یعني شروع په کتابت کښي دحقیقت واسرارو دعشق وکړي نوناتوانه وعاجزه پاته سي ځکه چه حقیقت واسرار دعشق لوړ تر تحریر دقلم دي لکه لوړ چه تر تقریر دژبي دي لکه تاچه دپخوا پیژندلي پردي تقریر نو قمل پرخپله معنایي حقيقي پاته دی .داهم کیدلاي سي چه مراد دقلم څخه عقل سي نومعني داچه عقل ادراک داشیاؤ بالکه په سرعت کوي خو چه وعشق ته راسي نوعاجزه وناتوانه پاته ســـي ځکه چه کنه وحقیقت دعشــق محــاط دعقــل نه دي لکه تــاچه مخکښي وپیژنــدل داهم کیدلاي ســي چه قــلم څخه عالم مفسر غیر متصف په عشــق مراد کړه ســي نو معني داچه عالم مفســـر تفــسیر وتعریف داشیاؤ په چابکي بــاندي کوي خو چه کم وقت متصف په عشــق وګرزي نو خامــوش وعاجــز پاته ســـي ځکه چه عیان تربــيان لوړ وپیژني پردي دوو تقدیرو مراد دقــلمه څخه معني مجازي علاقـــه ئي واضحه ده ۱۲

(۲) دابیــت تائیدو توضیح دسابق بــیت دي دایه تعلق وارتبـــاط راغلو ومعني ته هغه داوقـــت چه خبـــره په وصف وبیان وکتابت کښي دعشــق مخکښي ترحصول دعشق ودي ځاي ته ورسیږي چه عشق پخپله ودغه واصف ومبــین وکاتب ته حـــاصل ســي نوبه قلم دنوشتي څخه داسرارو دعشــق مات لوکاغذ بــه څیري ســـي همدارنګه بــه ژبـــه ګونګي ؛ته ســي ځکه چه اسرار دعشق مشاهد په قـــید کښي دقـــلم اوبه احاطه کښي دبیان نه سي راکلاي نوماتیده دقلم اوڅیریده دکاغذ کنایه دعجز څخه دی داهم رواچه مراد دعشــق څخه معشــوق سي نومعني دلوقت چه خبره په وصف وبیان کښي دمعشوق په دلاتلوانیه ومخکښي ترمشاهدي دمعشوق ودي ځاي ته ورسیږي چه معشوق په خپله ودغه واصف ومستدل ته مشاهد سي نوبیابه قلم داستدلال مات کاغذ څیري ژبــه بنده ســي ځکه چه سره دمشاهدي استدلال پښي دلرګي دي ۱۲

(۱) وخت چه په سابق کښي ناتواني دبيان په باره کښي دعشق بيان سوه اوس ددغي خبري توضيح په مثال راته کوي نووايي: عقل درالغ .دايه تعلق وارتباط راغلو ومعني ته هغه داچه عقل معاش په شرحه کښي دعشق الهي په مثل دمركب دی په گل وختوكښي كله مركب چه قدرت نه لري چه تگ په گل وختوكښي وكړي همدارنگه عقل معاش قدرت نلري چه شرحه دعشق الهي وكړي بلكه عشق په خپله شرحه دعشق وعاشقي كوي يعني هغه څوک چه په عشق الهي متصف سي نوحقيقت دعشق به كماهي پيداكړي ځكه چه لذت دعشق دعاشق پيژني وبس نولهذادوي وايي چه ژبه دحال قوي ولطيفه ده اوژبه دمقال ضعيفه ده خلاصه

| عقل درشرحش چوخردرگل بخفت[1] | شرح عشق وعاشقي هم عشق گفت |
|---|---|
| عقل عاجزه دی دشرحي څخه دعشقه | هيڅ لارنه لري وكنهي ته دعشقــه |
| بلكه شرحه دعشق كيږي په خپل ځانه | بــيله ځانه په بــل نه گرزي روښانه |
| يعني څوک چه متصف نه سي په عشقه | حقيقت بـه ورمعلوم نه سي دعشقـه |
| مگرڅوک چه متصف په دي صفت سي | پيژندونكي به دعشق په حقيقت سي |
| سرِيه داچه عشـــق صفت وجداني دی | داتقريرزموږ پرظاهربـاندي جاري دی |
| يايه مراددعشقـه ذات دحق جليل دی | هم داغه حق پرخپل ځان باندي دليل دی |
| حق جليل په حق جليل پيژندل كيږي | داســـي نه چه په دليل پيژندل كيږي |
| بـــدهي ته هيڅ دليل نه دی په كاره | پرعبـــث بـــاندي نومه ښنده روړگاره |
| دامذهب دتصوف دبــــــــزرگانو | هم داهل مشـــــــــاهدي دخاوندانو |
| دجملي څخي يوهم زموږ مولنـادی | هم په دي جمله خبــــــــرهراولنادی |
| مولناوايي اســـتدلال پښي دلرگي دي | بي تمكينه ډيري سستي حال هزگي دي |

| افتاب آمددليل آفتاب[2] | گردليلت بايدازوی رومتاب |
|---|---|
| مولنــااوس ظاهروايــــي يومثالــه | پرسابــق بـاندي دليل وايي في الحـالـه |
| حقيقــــت كښي نه مثال دی نه دليله | دتفهيـــم دپاري ذكركــــړي خليلــه |
| وايي لمرخپله روښان بـل دليل څه دی | هم په خپله دی تابـــان بـــل دليل څه دی |
| كه لازم ته دليل بــــولي اي نيک ذاته | نوترلمرته مه تيريږه بـــــــــلي خواته |
| يعني ته كه لازم بـــــــولي زمالاله | پرداعشـــق ويرمعشـــوق يواســـتدلاله |
| نوپردغه دليل ټينگ ســـــه زماجانه | چه هريـوددوي دليـــل دی پرخپل ځانه |
| لكه لمرچه دي تابان شک پكښي نسته | هم دليل دی پرخپل ځان شک پكښي نسته |
| خلص دليل ئپه نظرفكردی بـــي ځايه | كه څه هم امام محــــــــكم پردغه رايه |
| ولـــي دالارډيـــره ډكـــه دازغيانـــو | پرمذهــــنب دتصـــوف دصوفيانـــو |

ددي پنځوبيتوچه هرچه گويم الخ .څخه رانيولي يادي يت سره تفصيل وتحقيق ددي يوي خبري دی چه شرحه دعشق ومعشوق قبل ترکشف دحجاب په عقل وقياس په قلم ولسان كماحقه نه سي كيدلاي شيخ مصلح الدين الشيرازي فرمايي (اي برترازخيال وقياس وگمان ووهم : وازهرچه گفته اندشنيديم وخوانده ايم دفترتمام گشت به پايان رسيدعمر ماهمچنان دراول وصف توماندهايم :۱۲

(۲) دلبيت تمثيل وتائيد دسابق دپاره دي نوارتباط حاصل سوراغلوومعني ته هغه داچه لكه لمرچه دليل پرخپل ځان دی يعني ظهورروښنائي دده په خپل ذات بـاندي ده وبل دليل ته ضرورت نلري همدارنگه ظهور دحق وعشق په خپل ذات باندي دی عقل ئي په استدلال اظهارنه سي كولاي حضرت جنيدرحمة الله عليه فرمايي .ان العقل يحول حول الكون فاذا نظرالي المكون ذاب . لودامام ثوري رحمة الله عليه څخه سوال وسوداسي ماالدليل علي الله وعلي محبته قال الله قيل فمابال العقل قال عاجزلايدل علي مثله خلص داچه صوفيه كرام لاره داستدلال ډكه دازغيانوبولي اووايي اكثرالدلائل لايفيدالاالظن لايغني من الحق شيئاته نه گوري چه مولناقدس سره په آينده كښي پر فخرالملة والدين امام المتكلمين فخرالدين الرازي رحمة الله عليه بـاندي په څنگه تعريض كوي وايي گربه استدلال كاردين بدي: فخرالرازي رازداردين بدي :پاي استدلال پاچوبين بود:پاي چوبين سست بي غمگين بود:۱۲

## (۱) ازوی ارسایہ نشانی میدہد ❊ شمس ہردم نور جانی میدہد

که ســایه څه علامه ده دلمرووره ❊ خو لمر هر دم دی روښانه ورته ګوره

نوبنه داچه لمر دلیل کړو پر خپل ځانه ❊ په ســایه ئې پیژندل څه کوو ځوانه

نوبــه ولي په ضعیف دلیل لګیایو ❊ بیابــه ولي دقــوي څخه بې پروایو

همدارنګه حق په حق پیژندل کیږي ❊ ومخلوق ته ضرورت نه لیدل کیږي

نوبــه ولي ګرزه وومخ بــلي خواته ❊ چه دارنګه دلیل موجودوي ماوتاته

## (۲) سایہ خواب آرد ترا ہمچون سمر ❊ چون برآید شمس انشق القمر

په عادت کښي بنه سایه سبب دخوب ده ❊ لکه نقل ووقصه سبب دخوب ده

وقت چه لمر ددي سـایي وکورته راسي ❊ سایه ورکه سمدستي روڼه رڼاسي

نوده خوبــه ،بــه راویښ دغه بیده سي ❊ دروښان ماحول به ده لره لیده سي

هم دارنګه چه پرقلب باندي عشق راسي ❊ ممکنات بــه دوجوده ســه وباســي

فقــط حــق بــه سبي وده ته مشــاهده ❊ هیڅ ممکن به نه وي ده ته معاهده

نوبـــه ولي وســـــایي ته کړو نظره ❊ دغفلت پیتي بــه ولي وروپرســره

دســـایي ســــه مراد ،داواړه کائناته ❊ مـــاورادپاک الله څه ممکناتـــــه

مراد ،دخوبــه ســه غفلت دحــق دذاته ❊ ده معشوقــه نظاره وي بــل چاته

مراددشمسه بــه عشــق وبــولونیک ذاته ❊ دقــمره بـــه کړو مراد ټول کائناته

دتشبــــیه وجهه ښکاره لکه هنداره ❊ وماهرته دبـــیان زوماســـــرداره

خلص مضمون دمقــام دادی زماسروره ❊ چه دلیل اني نه دی معتبــــــــره

بـــلکه دادلیل ناکام دی سربســـــره ❊ دمعشوقـــــه مورااړه وي نظره

(۱) وقت چه دسابق بیت په دوهمه مصراع کښي دامضمون ادا سو چه که دلیل پر لمر غواړي نو تر لمر مه تیریږه نو سائل ته داسوال پیدا کیږي چه سایه خوهم دلیل پر لمر ده نو ته ولي انحصار پر لمر اخخه غواړي نو مولنا قدس سره په دي بیت کښي جواب وايي داسي چه ســایه که څه نښاني پر لمر راکوي لکن خو یو علامه او دلیل قــاصر دي هر چه لمر دی هغه په خپل ځان دلیل پر خپل ځان دی ځکه چه ظهور دده په ذات خو ددی او ظهور دنور شیانو په سبب دده دی نو معلومه سوه چه لمر دلیل کامل دي نه سایه نو مقتضي دعقل دانه ده چه کامل یو څوک پریږدي او قــاصر اختیاره وي داخو تقریر دمثال سو همدارنګه دممثل بــه باره کښي وایو چه اګرچه سایه یعني مخلوقات دلیل پر ذات دحق جل جلاله کیدلای ســي لکن خو دلیل اني یي قــاصر دي او ذات دحــق جل جلاله پر خپل ذات دلیل کامل او بدهي دي نو خود وایم چه مخ له دو څخه مه ګرزه وه ۱۲

(۲) وقــت چه په سابــق بیت کښي ضعف داستدلال په ســایه یعني ممکناتو بــاندي بیان کړي اوس ئې ضرر ددغه استدلال بــیانه وي نو وایي سایه خواب الخ . دایه تــاســب راغلو معني ته هغه داچه سایه ئې ظاهري ســـړي ته خوب وروه لي حقیقت دامر پرده نه منکشف کیږي لکه نقــل ورقــصي چه ســـړي په خوب وغفلت کښي اچوي وقــت چه لمر پردغه سایه بــاندي راســي نو ســایه ټوله لو،ورکه کړي نو ســړي بــه دخوبــه وغفلته رابیدار ســـي په روڼه رڼا کښي بــه او ســیږي هر څه بــه ورته معلومیږي همدا رنګه چه عشـــق الهي دیو چاپرزړه باندي راسي سایه دممکناتو بـــه ټوله لو فناني کړي او حــق جل جلاله بــه ورته مشاهد ســي دبــرهان اني یعني دذلیله په ممکناتو پر حق به مستغني سي او ،وغیر الله ته به هیڅ کتونکي نه سي نو مراد سایي څخه ماورا، چه کائنات دي دخوبه څخه غفلت په نظر وکائناتو ته دشمس څخه مراد عشق دقمره څخه دافاني هستي علائق دټولو وماهر ته دفن دبیان ښکاره دي خلاصه دمعني داوقت چه عشق الهي پر یو زړه مستولي سي نو به سایه دممکناتو ټوله دغفلته به رابیدار سبي او پر دي دفاني هستي به څیري سي الله ورته مشاهد سي نو به رب په رب وپیژني په ضعیف دلیل په ممکن پرواجب په اثر پر موثر به مشغول نه سي ۱۲

ابو الحفاظ :مولوي صالح محمد الارغستاني .

خودغريب در جهان چون شمس نيست[(۱)] ... شمس جان باقيست اورا امس نيست

چه جهان دى په روښانه دغه څوک دى ... چه عالم دى په تابـــانه دغه څوک دى

چه ميوي راپخوي دغه نوڅوک دى ... چه ښه خوندپکښي ايږدي دغه نوڅوک دى

چه په خپله دي اظهر دغه نوڅوک دى ... منوردى دقـــمر دغه نوڅوک دى

داسي نوروپر تاثيرات چه وي داڅوک دى ... رنګارنګه حـــرکات چي وي داڅوک دى

جواب داچه دانوشـــمس ولمرنوميږي ... هم ښکاره هم ښکاريدونکي معلوميږي

خوســـــره ددي کماله وجماله ... نه قـــائم دى نه باقـــي پريوه حـــاله

داغروب وافول نه ويني لبـــــــيده ... دى پنهان نامي نام نه ويني له ديده

لمردروح دي تل باقـــي نه فاني کيږي ... نه افول نه تحـــــــول پروا ديږي

شمس درخارج اګرهست فرد[(۲)] ... ميتوان هم مثل او تصوير کرد

که څه لمردى يکتنهاپه ټول جهان کښي ... دوم فردئي موجودنه دى په زمان کښي

په خارج کښي دوم لمردى چاليدلي ... دناقـــله حـــکايت چااوريدلي

اتفاق دعقـــلا وو کل بـــه کله ... پردي غوته چه يوفرددي نسته بله

مګرعقـــل جائزيـــولي کثرته ... هم تصويرئي دتمثيل کوي وچته

هم تصويرده کولاي ســـي زمورخياله ... په جرات بـــاندي ويلاي ســـي مثاله

خلص بـــرتردرخيال هيچانه دى بـــللى ... زمورترعقـــل وقـــياس نه دى وتلى

(۱) وقت چه په سابق کښي توصيف دشمس په هغه اوصافوباندي وسوچه تااوريدل نوسائل ته داسوال پيداکيږي چه شمس به نوڅه کمي نه لري نو مولنا قدس سره ددغه ددفعي دپاره وايي :خودغريب الخ .دايه ارتباط راغلو ومعني ته هغه داچه لمرپه دنياکښي يو عجيب اومنورشئ دى چه مثل يي نسته ولي دده روشنائي پرمځکه باندي خپره ده اوپراسمان باندي محيطه ده اوذرات دکون دده په نورمنوردي اوپختيادنعم الله په ده باندي دي وهکذا مګرخوسره ددغه حسن ولطافته دصعودوهبوط وافول وغروب وتحول څخه خالي نه دى لکن شمس دروح دانسان کامل چه متجلي په تجلياتو دذات وصفاتو احديه باندي وي هغه نور محـض دى نه غروب نه افول نه وربکيدل لري والحتمال هم سته چه معني دبيت داسي چه په مثل دشـمس فلکي په دنيا کښي غريب ومسافر بل څوک نسته هميشه په حـركت اوهيڅ قـرار ورلره نشته دافول وغروب اونوروتحولاتوخاوندى لکن ذات دحق جل جلاله چه مشـهوددروح دى هميشه باقـي دى هيڅ تلوتحـول نه وررسـاندي راتلي نوامس کنايه د غروب وورناڅخه ده والسلام ۱۲

(۲) وقت چه دسابق څخه داتوهم کيده چه ذات دحق جل مجده مثل د شمس ظاهري دي نوحق لره نظيرپيداسـو مولنا قدس سره په دروآينده بيتو ددغه توهم دفعه کوي نووايي شـمس در خارج الخ .دايه تعلق و ارتباط راغلوومعني ته هغه داچه په مابين کښي دذات حق اوشمس مثليت نسته اوتعبيرچه په شمس ځني کيږي هغه دمجرد تفهيم دپاره دى مثليت ئي پدي خاطرنسته چه شمس فلکي اګرچه په خارج کښي يوفرددى مثل ئي په وجودخارجي کښي نسته لکن عقل ئي دمثل تجويزکولاي سي اوپه خيال کښي مثل متخيل کيدلاي سي ځکه چه وجودبي په خارج کښي محسوس دى هرچه شمس دذات دحق دي هغه لره نه مثل په خارج کښي سته نه ئي عقل لره دتصوير ګنجائش سته .ليس کمثله شئ وهو السميع البصير ۱۲

ابو الحفاظ :مولوي صالح محمد الارغستاني .

**لیک آن شمسی که شد بندش اثیر[1] ۔ نبودش در ذہن و در خارج نظیر**

مگر هغه شمس چه اوریه دی مخلوقه ۔ چه هغه نو عبارت دی دمعشوقه
نه په ذهن نه په خارج کښ یه مثال ستّه ۔ ترقطعي آیاتو وروسته څه مجال ستّه
بې نظیره بې مثاله حق جلیل دی ۔ منزل قرآن پردي تکي دلیل دی
هو اطلاق چه دشمس وینو پرحق یاره ۔ دافقط تفهیم دی زما وستا دپاره
که دانه وي فرق دی ډیر داین وآنه ۔ سبحان الله سبحان الله سبحانه

**در تصور ذات او را گنج کو ۔ تا در آید در تصور مثل او**

عقل عاجز د احاطي دحق پر ذاته ۔ په وادي تحریر کښي باقي پاته
په دي لاره کښي هیڅ حرف ویلاي نه سي ۔ هم تصویر هم ئي تمثیل کولاي نه سي
هغه ذات په تجلي چه غرتو ته سي ۔ نو بي عقل داد راک څنگه جو که سي
نعم هو متصور بالوجه کیږي ۔ خو خالق وهم رازق پر حمل کیږي
دامعلوم مشهور قانون دموجباتو ۔ تصورئي دموضوع دواجباتو

**شمس تبریزی که نور مطلق است[2] ۔ آفتابست و ز انوار حق است**

مولنا اوس په ثنادشمس رغیږي ۔ هم صحبته پخواني ورپیاد یږي
په نامه دشمس تبریز ورته خل بل سو ۔ اوردعشق دمولنا په زړه کښي بل سو
وعاشق ته دمعشوق نوم خوشگواروي ۔ داو بوي په نامه تري بر خودار وي
وبلبل ته دچمن نوم بنه اسیږي ۔ وبوراته دگلشن نوم بنه اسیږي
مستفید و خپل مفید ته امیدواروي ۔ قمر تل مدام دلمر په انتظاروي
مولنا به خود په جوش باندي رغیږي ۔ په ثنابي دشمس خود ژبه چلیږي

(۱) وقت چه په سابق بیت کښي تصویر دمثال دشمسي فلکي بیان کړي اوس عدم تصویر دمثال دشمسي روحي اود ذات الهي بیانه وي نو وایي لیک آنشمس الخ ،دایه تعلق وار تباط راغلو ومعني ته هغه داچه بند مخفف دبنده دی ضمیر وشمس ته راجع دي اثیر کړي ته دنار همدارنگه فلک ته ویل کیږي نو مضمون داچه هغه ذات چه کره دنارده مخلوق په ذهن وخارج کښي نظیر نه لري برخلاف دشمس فلکي چه هغه هغه لره په ذهن کښي نظیر ویلاي سو ،بیشکه هغه ذات چه دفلکه دطبیعت اوعنصریت خارج وي لود احاطي څخه دجهاتو السته دباندي وي اودعالم الکون والفساد والامکان څخه نه وي دشبیه وعدیل ومثال څخه پاک او لوړ دی ۱۲ (۲) دلیل دی دسابق بیت دپاره دایه وجهه دار تباط راغلو ومعني ته هغه داچه لفظ دگنج په ضمه دگاف مخفف دگنجائش څخه دي نو مضمون داچه په تصور کښي ذات دحق گنجایش وځاي ولي نه لري نو بیا تصور دمثل څنگه رسي تفصیل ددي مسئلي به وقرآن عظیم شان لو احادیثو نبویه لو علم کلام حتي علم منطق ته وسپارو فقط به مصلح الدین الشیرازي رحمه الله په بیت خوله خوږه کړو. اي برتر از خیال قیاس وگمان ووهم :واز هرچه گفته اند شنیدیم وخوانده ایم ۱۲ (۲) یعني شمس تبریز یو نور مطلق لو مظهر دانوار ودحق وو ،لوس دلخبره کوو چه دسره څخه دکتاب بیاتر دي ځایه باید و مضمون ته دمولنا قدس سره څیر سویدي دول چه مولنا قدس سره لول خپل محبوب قدیم لو وطن اصلي په ژبه دنل ذکر کړي هم په دغه واسطه ئي لسرار متعلقه په عشق الهي سري ذکر کړه پس ئي لنتقال وحکایت ته دسلطان لومنځي وکړي په دي مناسبت چه عشق مجازي تذکر دعشق حقیقي رلولي خوږه اثناء کښي دحکایت ځاي پر ځاي په کمال جذبه دعشق الهي سروزږغوي څو چه عشق ئي دشمس دروح په نامه یاد کړي اوږدي مبحث کښي لفظ دشمس مکرر مکرر ذکر کړي نو ددي لفظه څخه و مولناقدس سره ته خپل هم صحبته اومنعم داسرار و توحید شمس الدین تبریزي قدس الله روحه وریاد سو نو ئي مخ وثناته دده رلولراوه لو په ډیر جوش وخروش پدي مورد کښي ویناکوي نو وایي شمس تبریزي الخ ،پس تردي تقریر نوزه گمان نه کوم چه تاته دي په ارتباط اوحسن ترتیب کښي دکتاب شک پاته وي نردي پر خداي سپارم والسلام ۱۲

(۱) وقت چه مولناقدس سره په سابق بیت کښي پرشمس تبریزقدس الله روحه دافتاب اطلاق وکړي اوس ئي په دي بیت کښي تفوق پرافتاب بیانه وي نووايي چون حديث الخ .دايه تعلق وارتباط راغلومعني هغه داوقت چه خبره دشمس الدين التبريزي قدس الله روحه مابین ته راغله نوشمس فلکي دخجالت ځخه دغروب لاره اختيارکړي په دي خاطرچه زماوجودځه شي دي بيله انکشافه دمبصراتوبل څه حاصل نه راوړي اودشمس الدين التبريزي قدس الله روحه ځخه خودانکشاف دحقائقوکماهي حاصليږي نوچيري دغه چيري هغه همدارنګه نوردشمس الدين قدسناالله بسره نوردعشق الهي وودانورغالب پرنوردشمس فلکي :ي پر

| | |
|---|---|
| (۲) چون حديث روی شمس الدين رسيد | شمس چارم آسمان سر درکشيد |
| چه کلام دتبريزي مابين ته راغلی | فلکي لمرخپل ګتلی نوم وه بسايلی |
| فلکي لمرچه ماذکربه باربار کړي | چه پرژبه تبريزي شمس مي داوار کړي |
| اسماني لمرسوخجله به اسمانې کښي | ذخپل شرمه ئي سرپټ کړي په ګريوان کښي |
| ولي نوردتبريزي دعشق انواردي | هم ددغه شمس شغلي دعشق اسراردي |
| دشغلي دعشق توان نه لري دالمره | نه زمين نه داآسمان نه داقمره |
| چه دعشق نوربرتبريزباندي ځليږي | نوبه ولي لمربه خپل نورنه شرميږي |
| (۲) واجب آمد چونکه آمد نام او | شرح کردن رمزی از انعام او |
| وقت چه نوم دشمس الدين زمازړه ته راغلی | نوهم دغه واجب زماومخ ته راغلی |
| چه يولږحصه دده دانعاماتو | زه بيان کړمه په لنډوعباراتو |
| ولي شکردمنعم خودی واجبه | دامضمون تاته معلوم دی بنه طالبه |
| لساني شکراظهردي زماوروره | په دي رمزکښي ونکتي ته هم وګوره |
| وقت به شکرچه زيادت دنعمت کيږي | مولنادي فائدي کله تيريږي |
| نوبه وجدوشوروايي داسي ابياته | چه انعام دشمس بيان کړي ماوتاته |
| مګردابيان مستوربټ عنايت دی | په رمزواشارودحکايت دی |
| .مولنابه سوال جواب وروسته ويل کړي | بالآخرئي حکايت ته ورسپارل کړي |

نحوي دان لله عبادا قلوبهم انورمن الشمس ،نوشمس فلکي به خود خجالت خوري دشمس تبريزي ځخه ۱۲
(۱) وقت چه په سابق بيت کښي بيان :مجرد:ي رسيدو.:دکلام ونامه نه دشمس الدين قدس الله روحه وکړي اوس يولږ انعام دشمس پرخپل خان بيانه وي اوشرحه ددغه قدرپرخان لازم ګني نووايي واجب آمد الخ .دايه تعلق وارتباط راغلومعني ته هغه داوقت چه نوم دشمس الدين روح الله روحه په نطق وکلام کښي راغلي نوواجب دی پر موږ چه يوقدرقليل انعام بي پايانه ځخه دده شرحه وبيان کړونومعني :ده اولي مصراع مصروف :ده وثاني مصراع ته لولفظ! درمزي په يادوحدت باندي اصلي معنابه اشاره په سترګه باورخ باندي :ده

خوبياپراخي پکښي وسوه نوئي دوي کنايه دسره اوشئ قليله ځخه ګرزه وي زمامحترموطالبانوموِلناقدس الله سره دشمس روح الله روحه هغه څه ليدلي چه ماوتادچاځخه نه دي ليدلي اوهغه څه ځن زده کړي چه ماوتادچاځخه نه دي زدکړي نولهذا مولناقدس سره دشمس روح روحه دانعاماتوذکربه داسي لهجه کوي چه زه وته ئي اورواوګورودنوم ئي په توګه وايوچه زين العابدين شرواني ليکلي چه باباکمال جندي (رح) خپل مريداعني شمس تبريزي ته حکم وکړي چه ژرولاړسه روم‌ته چه هلته يوسوخته زړه سته ګرم ئي کړه نوشمس تبريزروم تعولاړي دمولناسره ملاقي اوبه مطلوب باندي وپيژندي نوشمس (رح) دمولنا(رح )ځخه پوښتنه وکړه چه مقصددعلم ومجاهدي ورياضت ځخه څه دی مولنا(رح )ورته وويل اتباع دشريعت شمس (رح )ورته وويل پدي خوهرڅوک پوهيږي نورڅه مولنا(رح )ورته ويل بالاتر ،ترددي څه شمس (رح ) ورته وفرمايل علم هغه دی چه سري منزل ته ورسوي اوقول دحکيم سنائي ورته ووايه ،علم کزتوترانه بستاند.: جهل ازان علم به بودبسيار.:مولنا (رح ) ددي کلماتوځخه زيات متاثرلنده داچه صحبت دشمس ئي اختيارکړي اوزياتي استفادي ئي ځني وکړي ۱۲
ابو الحفاظ :مولوي صالح محمد الارغستاني .

**این نفس جان دامنم برتافت[1] — بوی پیراهان یوسف یافست**

داګړۍ مې روح لمون وپيچل ياره — چه وماته کړه بيان دشمس اسراره
ولي وايه وريدۍ نوم دشمس تبريزه — نودشوق کاسه ئي ډکه سوه لب ريزه
پريعقوب چه ديوسف بوي اوس لګيږي — مشتاق تره تريخوابه خودجوړيږي
دمعشوق نوم بوي عاشق ته اي نوابه — اشتياق ورزياته وي بي ارتيابه
مراددروحه سه خپل روح دمولنادی — ياحسام الدين مخلص داولنادی

**کز برای[2] حق صحبت سالها — باز ګو حالی ازان خوش حالها**

زماروح وه وايي وماته دامضمونه — چه تاثير کړله دشمس سره کلونه
نوپه حق ددي صحبت ماته بيان کړه — داخوشحاله حال دشمس راته عيان کړه
يازماروح زمادصحبت په خاطرژاړي — داخوشرنګ احوال دشمس راڅخه غواړي
وايي ماوتاياران يوله پخوا څخه — نوپه ذي حق دصحبت غواړم له تاڅخه
چه دانبه احوال دشمس راته بنکاره کړي — په بنه ژبه ئي وماته ننداره کړي
ياحسام الدين درخواست وکړي وماته — چه اسراردي ځليدلي دشمس تاته
زه خوتل يم ممتثل ستادبلونو — په صحبت کښي دي اوسيږم دکلونو
نوبه بنه ژبه بيان کړه ماته ياره — څه چه تاليدلي دي دشمس اسراره

(۱) وقت چه ني په سابق بيت کښي بيان دشرحي وانعام وکړي اوس بيان دزيادتي اشتياق ودغه شرحه ته کوي نووايي این نفس الخ .دايه تعلق وارتباط راغلومعني ته هغه داچه مراددمولناقدس سره دروحه څخه خپل روح شريفه دی یامرادحسام الدين دي چه مصاحب مخلص دمولناوواوباعث دتاليف دمثنوي وو خواطلاق دروح پرحسام الدين مولناځپله په ديباجه کښي کړي دي نه ګوري چه ده ويلي دي .ومکان الروح من جسدي .ولفظ دتافت په اصل کښي په معني دپيچلودی خومراددالته ځني تېګيدل دي نوحاصل داچه داګړۍ زماروح ياحسام الدين زمالمون تنګه کړه اواحوال واسرارئي دشمس الدين راڅخه وغ دبنتل پدي خاطرچه زماروح ياحسام الدين په لوريدلو دنامه دشمس الدين مشتاق تره وګرزيدل نومصراع ثاني په بيت کښي پرمنزله دتمثيل داول مصراع دی پدي معني لکه چه حضرت يعقوب علي نبيناوعليه الصلوة والسلام دبويه دقميص دحضرت يوسف علي نبيناعليه الصلوة والسلام مشتاق تره سو همدارنګه روح زماياحسام الدين دلوريدلوڅخه د نوم دشمس الدين تبريزي روح الله روحه مشتاق تره وګرزيدۍ ۱۲

(۲) وقت چه په سابق بيت کښي زيادت اشتياق و شرحه ته بيان کړي اوس تنګه مطالبه ددغه شرحي بيانه وي نووايي :کزبراي الخ ،دايه تعلق وارتباط راغلومعني ته چه داچه زماروح ياحسام الدين وماته وايي چه په خاطرستا دصحبت دشمس الدين سره يادماسره په کلونوباندي يوڅه حال دهغه خوشنمااحوالونوواسراروڅخه دشمس الدين تبريزي راته ووايه بيت پرقسم بنا کېدلي سي په عربي داسي انشدک الله لاجل حق صحبته سينين الخ ۱۲

ابو الحفاظ :مولوي صالح محمد الارغستاني.

(١) وقت چه په سابق بيت کښې بيان دغو ښتني دويلو داحوالو دشمس وکړي پدې بيت کښې نتيجه دويلو ددغه احوالو بيلنه وي نووايي :تازمين الخ .دايه تعلق وارتباط راغلو ومعني ته هغه داچه روح ياحسام الدين (رح )ومولٰناقدس سره ته وايي چه ته احوال واسرار دشمس الدين روح الله روحه ومونږ ته بيان کړه دپاره ددي چه مځکه واسمان په خندااوخوشحالي وکړي لوعقل او روح سترګي ديره ترقي وکړي هغه څه به فهم کړي چه تي فهمولي هغه ته پورته سي چه نه وي ورختلی هغه به ووينی چه نه ئي وي ليدلي په دي کښې شک نسته چه دعشق الهي داسرار وبيانيدل اوبل ته ښودل يولويه نيکي اوستر عبادت دي نوخود به مځکه واسمان خوشحالي په کوي نه ګوري دعرش ته درحمٰن چه دسعد (رضي الله عنه )په وفات ولي په لرزراغلي ودقت ته ددي خبري ښه ښه متوجه سه نوردي پر خداي سپارم والسلام ١٢

(٢) دابيت جواب د سابق بيت دى هم دغه ئي وجهه دتعلق وارتباط ده راغلو ومعني ته د بيت هغه داچه ماوخپل روح ياحسام الدين ته وويل چه اي زما روحه يااي حسام الدين چه ته ليري لويدلى يې دمعشوقه څخه چه شمس الدين روح الله روحه دى لکه مريض ليري وي له طبيبه څخه نوتلسي مه غواړي له ماڅخه هغه څه چه زما تر توان تيروي نوزه ستاسي سوال ته جواب نه سم ويلاي نه اسرار دشمس الدين روح الله روحه درته بيانه ولاي سم داځکه وايوچه دګفتم مقوله آينده بيت دى ان شآء الله الرحمٰن دامضمون په آينده بيتونو کښې درته روښانه سي اوس دي په مخه ښه ١٢

| تازمين وآسمان خندان شود (١) | عقل وروح وديده صد چندان شود |
|---|---|
| اوس حسام الدين وروح دواړه داوايي | مولٰناته عرض په داډول نمايي |
| چه احوال دشمس ښکاره کړه اي سرداره | مونږ ته ووايه اسرار ددي دپاره |
| چه يو دم به په خندامځکه وآسمان سي | عقل وروح ونظرتول به درخشان سي |
| نوبه مځکه اسمان ولي خندان نه سي | په شغلو دشمس به ولي تابان نه سي |
| داسمان مځکي خندا يو کنايه ده | خوشحالي ونيک بختي ته اشاره ده |
| سرِدعشق لره يوشان دى دزړه سره | هم پرملک هم ملکوت لري اثره |
| (٢) گفتم اي دور اوفتاده از حبيب | همچو رنجوري که دور ست از طبيب |
| مولٰنااوس وخپل روح ته په جواب کښې | هم دارنګ حسام الدين ته په خطاب کښې |
| واي اي ليري واقع سوي له حبيبه | لکه سخت مريض چه ليري له طبيبه |
| مقوله دګفتم هغه لاحق بيت دى | متصل چه دى په ده څه صادق بيت دى |
| نومضمون دمقام دادي زماوروره | ورته څيرسه په ښوستر ګو ورته ګوره |
| نه مي توان نه مي طاقت دڅه ويناسته | نه مي تارنګه رنځور لره دواسته |
| نه کولاي سم دداسي سوال جوابه | ښه به داوي چه ساکت سم په دي بابه |

ابوالحفاظ :مولوي صالح محمد الارغستاني۔

(۱) مقوله دگفتم په سابق بيت كښي ده اعتذاراول دي دجوابه ځخه په دي خاطربه ماقبل پوري مربوط سو .راغلوومعني ته هغه داچه مولنا قدس سره وخپل روح ياحسام الدين ته وايي چه تاسي تكليف مه راكوي ماته په بيان دانعاماتوو واسراروډشمس پدي خاطرچه زه په حال كښي دفناء علمي يم فهم مي گنگ دی، توان نه لري چه ثنا. دشمس اوانعامونه دده درته بيان كړي فناء علمي خوتلسي مخكښي زموږ ځخه پيژندلي خواوس بي هم ديادابنت دپاره په مختصرډول ذكركړوهغه داچه فنا. علمي دي ته وايي چه غيرالله دزړه ځخه په مرتبه دعلم كښي وبلسي اوهيڅ التفات واستحضاردغيرنه وي ورسره پاته داحالت ئي داسي راسخ اومحكم سي چه دغير الله ځخه ئي ذهول راسي نوپه حال كښي داستغراق په ذات احدية كښي خپل هوش هم ورته پاته نه سي بلكه دبيخودي په حالت كښي وي نومولنا قدس سره وايي اي زماروحه ياای حسام الدين تلسي مامه مكلف كوي ځكه چه زه دفناء وبيخودي په حالت كښي يم نوتلسي ته به څه جواب دركړم ۱۲

| لاتكلفني فاني في الفناء[1] | كلت افهامي فلااحصي ثناء |
|---|---|
| مولنا اوس وسائل ته كړي خطابه | چه مامكړه مكلف په دي جوابه |
| ولي زه مدحه دشمس نه سم كولاي | نه ئنادده په ژبه سم ويلاي |
| انعامونه چه دشمس دخواپرمادي | بي پايانه لاتعدولاتحصادي |
| زه بي خوده وفاني يم دخپل ځانه | فهم گنگ دشمس به څه وكړم بيانه |
| چه وبحرته دسردشمس نظركړم | په كاچوغه به نوڅه ځن رابهركړم |
| نوبنه داچه مكلف مي نه كړي ياره | نودشمس دماڅخه مه غواړه اسراره |
| كل شئ قاله غيرالمفيق[2] | ان تكلف اوتصلف لايليق |
| مولنا وايي تاسي مه كوي اصراره | دشمس حال مه راسه غواړي په تكراره |
| ولي زه چه په مقام كښي دفنايم | يم بيهوشه دخپل ځانه بي پروايم |
| هركلام چه ووايي غيرهوشياره | خودبه وي نامناسب بي اعتباره |
| تكلف وولافي هيڅ نه دي په كاره | دامئ عذرتي قبول كړه زماياره |
| پدي حال كښي نوبل هيڅه چاره نسته | بي سكوته ئي بل هيڅه لاره نسته |
| نوبنه داچه تاسي ټول دسوال دفتركړي | خداي خبرچه زمادخولي به ځان خبركړي |

(۲) دلبيت په مثل د سابق اعتذاردی دوم ولر دمولنا قدس سره دخوا وسائل ته پدي خاطردسابق سره مربوط سوراغلوومعني ته هغه داچه كل شئ موصوف وروسته جمله ئي صفت دواړه مبتدا غير المفيق فاعل دقال .المفيق مردهوشياران تكلف سره دمعطوفه فعل شرط جزائي لايليق جمله شرطيه خبر دمبتدا احاصل داهرڅه چه مستغرق اوغيرهوشياروايي كه تكلف وكړي كه لافي ووهي دحاله سره ئي مناسب نه دي ځكه چه دي هوشياراوپرخپل هوش نه دي نوپدي مضمون كښي تنبيه ده پردي چه مجيب په ديني اوعلمي مسئله كښي بايدديراحتياطه كاروانخلي دعجلت وارتجاله ځخه ځان وجغوري اودمساعدوقت احترام وساتي اوجواب وخپل نورماله حالت ته حوال كړي چيري قاضي ومفتي هغوته كمال احتياط لازم دی. الله جل جلاله دي زموږ پرحال باندي فضل وكړي آمين ثم آمين ۱۲

ابو الحفاظ :مولوي صالح محمد الارغستاني .
الراقم :سيدعبد الهادي الهاشمي .

| ہرچہ میگوید موافق چون نبود (۱) | از تکلف نیک نالائق نمود |
|---|---|
| څه چه غیر مفیق وایي دزړه ســـره | موافق چه دواقـــع نه وي ســـروره |
| تکلف دی نالائقـــه ښکاره کیږي | وســـــامع ته څه په نفعه تمامیږي |
| چه ویونکي ته نورماله حالت نه وي | وکتونکي ته خوشحاله حالت نه وي |
| داکلام دی بي مزي بي خونده یاره | ماوتاتجربـــــــه کړي په وارواره |
| نووتاته وایم راســـــه زماځانه | اي حســـام الدین ډیریي پرماګرانه |
| چه دابحث مباحثه کړوتر پښنولاندي | اوداخپله دوســـیه کړولاندبـــاندي |

| من چہ گویم یک رگم ہوشیار نیست (۲) | شرح آن یاری کہ اورا یار نیست |
|---|---|
| دایه مثل دسابـــــــق دی اعتذاره | وســــــائل تي یاده وي څلرم واره |
| واي منم ستاســـوال بناپراشـــتیاق دي | زه څه وه وایم خوحال مي استغراق دی |
| زه بـــه څه شرحـــه بـــیان دهغه یارکړم | ستاجواب ته به نوڅنګه ځان عیارکړم |
| چه ني مثل ني نظیرپه دي زمان کښي | نوبي شرحه څنګه راسي په بیان کښي |
| سرپردي چه زمایورګ هم هوشیارنه دی | هم مي فهم هم زبـــان په اختیارنه دی |
| نوته عفوه وبخشـــــــش کوه وماته | زه دخـــداي په امـــان وایمـــه وتاتـــه |

(۱) مثل دسابق دریم اعتذاردی دایه وجهه دتعلق وارتباط راغلو ومعني ته هغه داچه هرڅه چه څوک داحوالوڅخه دشمس وېل کوي اوداوینادواقع سره برابره نه وي دمجرد تکلف واټکل وتخمین په بناوي نودابه ډیرنالائقه ښکاري نوتاسي دماڅخه مطالبه داحوالودشمس مه کوي ځکه چه احوال دشمس روح الله روحه الاقدس په داسي ډول چه مطابق دواقع سره وي نه سم بیانه ولای که ني چیري بیانه وم نوهغه به دتخمین واټکل په ژبه وي اوداخو ډیرنالائقه اوبي وړه کاردي نوښه به داوي چه تاسي ددي سوال اوغوښتني څخه ډډه وکړي اوبه جواب مي مکلف ونه ګرزه وي نوله دي څخه داوخته چه عالم ته په بیان کښي ډیرغوروودقت پکاردي بسایدظنه و تخمینه کاروانخلي نو ردي پرخـــداي پاک سپارم والسلام ۱۲

(۲) مثل دسابـــق څلرم اعتذاردي دایـــه تعلـــق وارتبـــاط داخبـــره بـــاید زده کـــړوچه غـــرض د مولّناقدس سره په تعدد کښي داعتذارونوتفنن لوتاکیدلولشاره وعظمت ته دامرده راغلوومعني ته هغه داچه زه څه ووایم اي زماروحه یااي حسام الدین خویوورګ مي هوشیاراونورمال نه دی به شرحـــه وبـــیان کښي دهغـــه ذات ملتمـــس چه ده لره نظیرنـــــته هغه نوشـــــمس الدین روح الله روحه دی مولّناقدس ســـره ځکه نظیرځني نیـــني کړيځ چه شـــمس روحـــه الله روحـــه ددغه وقت قطب الاقطاب اوفرد الافرادووېدغه باندي تصریح صاحب المنهج کړي ده مولّناجامي رحمه الله په نفحات الانس کښي لیکلي چه شمس الدین تبریزي فرمایلي چه زه په مکتب کښي وم بالغ سوي نه وم څلوېښت شبانروزه به پرماتیرسوه دعشقه دسیرت محمدي (صلي الله علیه وسلم ) به مالره آرزودطعام نه وه که به چاراکول منعه مي کول شمس مرید دابوبکرسله باف تبریزي ووڅوک وایي درکن الدین سنجاسي څوک دباباکمال جندي شاید دټولوصحبت ته رسیدلي وي اودټولوڅخه تربیت اخیستي وپه آخرحال کښي دتورو،وړیوجامي آغوستي اوسفره سره ملابس وودایونمونه ده حال دشمس ۱۲

ابو الحفاظ :مولوي صالح محمد ارغستاني .

ابو الحفاظ :مولوي صالح محمد الارغستاني .

(۱) پنځم اعتذاردي دمولٰنا قدس سره وسائل ته دجواب په هکله دايه ارتباط دسابق سره راغلو ومعني ته هغه داچه مولٰنا قدس سره وخپل روح ياحسام الدين وايي چه شرحه وبيان داسرارودشمس روحه الله روحه زمادادي وقته دهجران وخون جگراواستغراق وقبض ويل وقت ته دوصال وصحو وبسط پريږدي هغه وقت به بياشرحه درته بيان کړم ځکه چه اسرار دشمس بيانيدل مهمه مسٔله ده داچه تازده کړه اوس نوکه زه وته ودي مضمون ته ځيرسونوبه دااشاره په کښې پيداکړوچه مرشد اکمل کولاي سي چه تعبير وسالکانو ته دخپل مقام عالي وکړي مگرهغه وقت چه طالب کامل په کمال جذبه وحرص دخپل تکميل دپاره داکمل څخه مطالبه وکړي لواکمل هم دصحو په حال کښې وي والا فلا ۱۲

## شرح اين هجران واين خون جگر — اين زمان بگذارتا وقت دگر[۲]

مولٰناوايي وروح ته دخپل ځانه — هم درخواست حسام الدين ته پداشانه

زه اوس يمه په حالت کښې دهجرانه — ځگرخون يم نه لرم دشرحې توانه

نوراخي داشرحه پريږدو دازمانه — تربل وقته ئي موخره کړوزماگرانه

چه مي وقت دصحوراسي سم هوشياره — اي زماروحه وحسام الدين روي داره

نودشرحې به هلته کړوبيانه — اوس به ونځنده وودااترهغه آنه

دامهمه مسٔله ده دسائلانو — تلوارمه کوي ځوروانډوالانو

## قال[۲] اطعمني فاني جائع — واعتجل فالوقت سيف قاطع

اوس حسام الدين وايي ومولٰناته — يايه روح داعرض کوي واولاناته

موږيووږي هيڅ دصبرپاورنسته — ته تلوارو کړه په عمرباورنسته

داتيره توره دوقت چه اوس چليږي — داساعت نوماته کله بيادريږي

ماضي پري سوه استقبال نه دي راغلي — موجوده وقت نوماځان ته دی تاکلي

په احوالو مي دشمس کړه خبرداره — وربي تري مي درخواست ستاپردرباره

موجوده فرصت مي مه باسه دلاسه — نااميده مي ددي دره مه باسه

ته پوهيږي چه وقت دی سيف قاطعه — نوبه ستاپه تاخيرڅنگه سم قانعه

(۲) وقت چه مکالمه دمولٰنا قدس سره په باره کښې داعتذارو سائل ته پاي ته ورسيده اوس جواب دسائل دعکس العمل په درشل کښې بيانه وي نو وايي قال (اطعمني الخ) دالول عکس العمل دی دايه تعلق ولرتباط راغلو ومعني ته هغه داچه روح ياحسام الدين دمولٰنا قدس سره داعتذارپه مقابل کښې دلسي وويل چه موږ ته اطعام داطعمه وولذيذه وسه دعشق او حالاتوسه دشمس راکړه ځکه چه موږ وږي وگشنام يولوپه دي باره کښې تلوارو کړه فرصت مه فوت وه چه وموږ ته حصول ددغه غذائي روحاني وکړه سي ځکه چه وقت خوسيف قاطع وزائل دی بيارجوع نه کوي ،حکماء فرمائي عمردانسان يوآن دی هغه ،هغه دی چه دی اوس في الحاله پکښې دي وبس ځکه چه آن سابق تيرسوييايه ولاس ته نه راځي اوولاحق ته ئي رسيده معلوم نه دی نوهوشياربايدپه آن موجوده کښې دخپل ځان دسعادت لاري چاري وپلټي ۱۲

| | |
|---|---|
| باشد ابن الوقت صوفی ای رفیق (۱) | نیست فردا گفتن از شرط طریق |
| همدارنګه روح حسـام الدين ويناكړي | په غوښتنه كښي ټنګښت پرمولناكړي |
| واي صوفي دي ابن الوقت اي زموږ ياره | نوصبـــاتي كارسپارل نه دي پكاره |
| داصوفي وقـت ضائع نه كوي هيڅكله | دحـالي زمان پاي بـنده وي بـالكله |
| تمركزئي دنظر دحــــال پرلوري | وماضي واستقبـــال ته هيڅ نه ګوري |
| موجوده حـال دعمل بـــولي انډوله | ني منظوره ده ماضي نه مستقبــــله |
| نوددي څنډ ترصبـــاپوري ســـرداره | مخالف دی دقـــانون اي خبـــرداره |
| چه داتكي مســـلم سولامحـــاله | نوبه خودزه حال دشمس غواړم في الحاله |

| | |
|---|---|
| صوفی ابن الحال باشد در مثال (۲) | گرچه هردو فارغ انداز ماه وسال |
| اوس حسـام الدين وروح بـيا په تكراره | حال دشمس غواړي مني نه انتظاره |
| واي صوفي ابن الحال هم پاي بند دحال دی | په نظرنه ده ماضي نه استقبـال دی |
| نو اوس موږ ابـن الحـال وبـوله بـاداره | دصبــــاوعده مي مه كړه راپه واره |
| سمدستي احـوال دشمس راته بـيان كړه | داځلاند اسرار دشمس راته عيان كړه |
| چه په دی اب زلال مواوبــيدل ســـي | اوددي آب حـيـاته موچيښل ســي |
| دتفصيـــل دپاره وګوري نيـــك ذاتـــه | دغه زموږ دحاشــيي منهيي خواته |

(۱) دادوهم عكس العمل دسائل په جواب كښي داعتذاردمولناقدس سره دي دايه تعلق وارتباط دی راغلومعني ته هغه داچه روح ياحسـام الدين ومولناته وايي چه اي رفيقه موږ صوفيان ابن الوقت ولوله صوفي ابن الوقت خووقت نه ضائع كوي تابع دوقت وي ناظردحال تارك دماضي واستقبال وي نوستاتاخيروده ته ترصباپوري مناسب دحاله سره دده نه دي نه داموافق دقانونه سره دي نوځكه موږ له تاڅخه احوال دشمس في الحاله غواړواوس داخبره بايدزده كړوچه حال ووقت په اصطلاح كښي دصوفيه كرامو هغه واردات دي چه پرزړه دسالك په شان دبرق خاطف وارديږي اوپايدارنه وي بلكه ژرزائليږي نودغه سالك چه هرحال وتجلي پرده بانـدي وارد سـي دی حـق ددغه په مقتضي دوقت وفاكوي تراخي وځنډنه پكښي رالولي نودي تابـع دحـال وي لودوقت رعايت كوي ماضي وراستقبـال ته نظرنه كوي نودوي ودغه سـالك ته ابـن الوقـت وابن الحال وايي ۱۲

(۲) دادريم عكس العمل دسـائل په جواب كښي دمولنادا عتـذاردي دايـه تعلق وارتبـاط دي راغلو ومعنـي تـه هغـه داچه روح ياحســـام الدين مولناقدس سره ته وايي اي رفيقـه موږ صوفيان ابـن الحال وبـوله ابـن الحـال خوپه مثل دابـن الوقـت وقـت نه ضائع كوي ناظردحـــال تارك دماضي واستقبـــال دی تاخيرستاده دحاله سره مناسـب نه دی په بيـت كښي اشـاره ده ودي ته چه ابن الحال چه په مثل دابن الوقت دی عين ابن الوقت نه دي كه څه دواړه فارغه دماضي واستقبال څخه دي اوپه دي وصف كښي سره شريكان دي مګردافرق لري چه حال نسبت ووقت ته سريع الزواله دي بـل داچه اصلي په اصطلاح كښي دصوفيه كرامووارداتو حال ويل كيږي وقت پدي خاطرورته وايي چه حال مزين دوقت دي لكه روح جسدلره وقت چه صفايي دوقت په حال ده نووقت وحال يوشئ سره بولم حاصل دمعني داچه روح ياحسـام الدين وايي چه موږ ابن الحال وبوله كارموصباته مه حواله كوه نوّمراددماه وّسال څخه ماضي واستقبال دی په بيت كښي دنوروتقريرونو ګنجائش هم سته خودضيق مقام دروبه په داغه قدركفايت وكړووالسلام ۱۲

ابو الحفاظ :مولوي صالح محمد الارغستاني ۰

| تو مگر خود مرد صوفی نیستی[1] | نقد را از نسیه خیزد نیستی |
| --- | --- |
| اوس بیاروح اویاحسام الدين في الحاله | مولنا ته پيشه وي دغه سي سواله |
| چه ته ولي حال دشمس ساتي پنهانه | سمدستي يه ولي نه كوي بيانه |
| نزل وقته وركوي ولي تعليقه | اوس في الحال ئي ولي نه وايي رفيقه |
| ته نه نومردصوفي نه يي زموږ ياره | نسيه دي پرنقدولي ده مختاره |
| نورائه نسيه پريږدوحق شناسه | په لمن كښي څه شي راكړه سم دلاسه |
| نسيه خودصوفي نه ده عادته | په معدوم كله كوي دي قناعته |

| گفتمش پوشیده بهتر سر یار[2] | خود تو در ضمن حکایت گوش دار |
| --- | --- |
| مولنااوس وسائل ته كړي خطابه | په حكمت ولطافت وايي جوابه |
| واي بنه داده چه سِروسِتاتوديارة | پرملانه كړوبيان دشمس اسراره |
| بايدهرځاي سِردشمس نه كړواظهاره | پرنااهلـه چه كوي ځني انكاره |
| سِردشمس هرځاي پاشل نه دي پكاره | په تصريح باندي لائق نه دي اغياره |
| هيڅ فائده ودوي ته نسته په بيان كښي | بي ادبه به غوته سي په دي شان كښي |
| هوبه طرزدحكايت كه سي بيانه | عارفان به سي په پوه نه جاهلانه |
| تاسي دواړه عارفان ياست پزهنرة | توجه كړي حكايت ته سربسره |
| هم به حال دشمس ځن زده كړي عاقلانو | هم به داسِرسي مخفي دجاهلانو |
| داحكمت ولطافت دمولنادى | وسائل ته قناعت دمولنادى |

(١) دالحلورم عكس العمل دسائل په مقابل كښي داعتذاردايه تعلق ولرتباط راغلو ومعني ته هغه داچه روح ياحسام الدين ومولناقدس سره ته وايي چه حال ؤ .وقت مقتضي ددي دی چه احوال دشمس موږ ته بيان كړه سي اوهرصوفي په مقتضادحال ؤوقت عمل كوي نوته چه داحوالو څخه دهغه خوشحال اعراض كوي څه باعث دي شايدچه ته نومردصوفي نه ئي ورنه مراعت به دي دوقت وحال كړي واي حواله به دي استقبال نه كولاي .داهم رواده چه استفهام تقريري سي فافهم هم دارنگه روح يحسام الدين ومولناقدس سره ته وايي چه ته ولي زموږ نقدپه پورر ابدله وي لوته بنه پوهيږي چه پورمعدوم اونقدموجوداو ته دلنيه پيژني چه وجودخيرتر عدم دي نوموږ غولرو چه احوال دشمس سمدستي راته بيان كړي لواستقبال ته ئي حواله نه كړي ١٢

(٢) وقت چه كلام دسائل په باره كښي درد دلعتذار وپاي ته ورسيدى نولوس بيامولناقدس سره خپل اول اعتذارديولوي حكمت په جامه كښي دسائل و حضورته وړاندي كوي نووايي گفتمش الخ . دايه تعلق ولرتباط . راغلو ومعني ته هغه داچه مولناقدس سره وايي چه ماوروح ياحسام الدين روح الله روحه ته وويل چه دامقتضادحكمت نه ده چه هرسرورلزدشمس چه ولوردلومنكشف سي بيابه نوبي مبالاته اظهار وبيان وكړه سي بلكه مقتضادحكمت و وقت داده چه اسرار دشمس پدلسي وجهه بيان كړه سي چه پرنااهلوهويدانه سي نوزمادنه بيانه څخه علم صوفيت زمانه لازميږي ځكه چه حق دوقت سره دملاحظي دحكمت همدغه دي چه سردشمس افشانه سي اورازپه مابين كښي دنااهلوفاش ونه گرزي اورعايت دادب دعرفاؤدالله وكړه سي نوردي پرخداي سپارم والسلام ١٢

ابو الحفاظ :مولوي صالح محمد الارغستاني
الراقم :سيدمولوي عبدالهادي الهاشمي .

(١) دادوم اعتذاردی وسائل ته دایه تعلق ولرتباط راغلو ومعني ته هغه داچه بهترينه خبره داده چه سر دلبرانو ودوستانو په حكايا توو قصو كښي دبل چا راسي لكه داچه داب وعلات دعرفاو . بالله دی نولهذا زه وته وينوچه مولنا قدس سره خپل حالات په مثنوي كښي په حكاياتو كښي مندرج كړي دي نو حاصل داچه مولنا قدس سره وروح اوحسام الدين ته وايي چه تاسي لمرار وتركيز پر بلش وتصريح دلسرار ودشمس مه كوي څكه چه سر ددوستانو په قال كښي دحديث دبل ښه او بهتر دي دپاره ده دي چه اغيار وقوف پرپيدانه كړي لو په بدولهجوئي بدرگه نه كړي اوداوليا . الله لوعشاقو دخداي جل جلاله بي حرمتي رانه سي والسلام ١٢

| | |
|---|---|
| خوشتر آن باشد که سر دلبران [1] | گفته آید در حدیث دیگران |
| مولنااوس وسـائل ته بـيـاگډيري | دوم ځل په اعتذار ورتــه رغيــږي |
| واي زماروحه وحسام الدين كاميابـه | تاسي غوږ ونيسـی ماته په دي بابـه |
| ښه بـه داوي چه حـال واورودياړانو | په قـصوپه نقـلوده ديگرانو |
| مثلاً دااوس قـصه چه ده روانه | په بـيان كښي دبـاچاؤدمهمانه |
| كه ددي كاروان پرڅنگ تی سی روانه | زماؤشمس حالت به تی ته سي روښانه |
| نوبـه ولي پر تصريح كوو اصراره | نوبـه ولي وينه ووبـيده اغياره |
| گفت مكشوف و برهنه بيغلول | باز گو د فعم مده اي بوالفضول |
| قبـول نه كړی سـائلانو اعتذاره | په بـل ځل يي ځني وغوښتی اظهاره |
| ول قبـول نه دی وموږته سـتاعذرونه | سـتادگاي موافق نه دي زموږ فكرونه |
| لږ پيخ ووايه صفادشـمس اسـراره | ولي وايي دپردي ترشـاي پاره |
| بيله غل وغش يي سم راته بيان كړه | حال دشمس صفاپرډاگ راته عيان كړه |
| بيااحـوال وايه زمادفعه مكړه ورورہ | اي صاحب كماله زماحال ته وګوره |
| بوالفضول ماخوذله فضل څخه سرداره | ځني مرادي فضائل اي خبـداره |
| داسـي نه چه دادځانه زماتشريح ده | جوهري وربـاندي كړي هم تصريح ده |

(٢) سائل دپخولغوندي رد دلعتذار كوي لو اصرار پر خپله غوښتنه كوي مولنا ته حكايت كوي وايي گفت الخ دايه تعلق ولرتباط راغلو معني ته هغه داچه روح ياحسام الدين بيلغود ورجوع وكړه وخپل سوال ته وايي چه اي مولنا ښكاره ولږ لوبي غل وغشه لوبي خپلته احوال دشمس بيان كړه زمادفعه دمطالبي څخه مه كوه اي خاونده دفضا ئلو وكمالاتو زاتـده تـر حدو عدا احسان وكړه دملسره په اظهار داحوالو دشمس ثم الفضول فعول ماخوذدي دفضل څخه والفضل والفضيلة خلاف النقص والنقيصة لومراد په فضل دلته فضائل دي هملرنگه جوهري په صحاح كښي دامضمون ذكر كړي دی لوس به دي خبري ته متوجه سو چه شک نسته چه څومره په يو مسئله كښي داهل الفضل والعلم گفت وشنيد لو سوال وجواب لو ردو لستدلال لو عودورجوع ديريږي هغومره دامسئله واضح كيږي لوحكم وتحقيق ته رسيږي خصوصاپه دلسي مكالمه كښي چه په ملين دمولنا قدس سره لوحسام الدين روح الله روحه تبادله كيږي نوپه لوړدوالي كښي دكلام تشويش مه كوه ١٢

ابو الحفاظ :مولوي صالح محمد الارغستاني .

(۱) په مثل دسليق غوښتنه دسائل ده دمولنا قدس سره څخه دايه وجهه د تعلق ولرتباط رلغلو ومعني ته هغه دلچه روح يلحسلم الدين دمولنا قدس سره وايي چه بيا موږ غوښتنه كوو چه ووايه احوال دشمس ښكاره پښكاره وموږ ته پدي خاطرچه لسرلر دشمس يو سرور رمزي دي ښكاره كيدل ئي پكار دي نه پوتيدل ته نه ګوري چه انبياو عليهم السلام څه كول خوښكاره كيدل ددين تي كاوه ددلغه حكمت دپاره دالله جل جلاله دخولو مخلوق ته رالېږل كړه سوي وه نو پر تلازم چه اقتدا. په دوي عليهم السلام پسي وكړي او ښكاره په ښكاره لسرلر دشمس وموږ ته بيان كړي داغه عين حكمت دي نو موږ به ستلسره دپنهاني حكمت كله تسليم كړو لو اغيار به په علت وسبب څنګه ومنو ۱۲

| | |
|---|---|
| بازگو اسرار و رمز مرسلین (۱) | آشکارا به که پنهان سر دین |
| سائلان دمولنا غواړي احواله | اعتذار ور، ردوي په استدلاله |
| وايي ته وايي افشاء د سر علت دی | نوئي خو د په پوتيدلو كښي حكمت دی |
| علت دا بولي چه وينې نه سي اغياره | بي ادبه به توجيه كړي دوي اسراره |
| نو پدي خاطر زه نه كوم بيانه | نو حكمت دا چه زي وساتم پنهانه |
| مو وواي دا افشاء د سر كله علت دی | سر ددي ښكاره كيدل عين حكمت دی |
| انبياو د الله پروردګاره | تول رمزونه يي ددين كړه له اظهاره |
| اقتدا ز موږ د نبيانو په خوي څه ده | اتباع زموږ د رسولانو د خوي څه ده |
| د اسرار د شمس ددين يوه تو ته ده | پوتيدل ئي نو د موږ څخه نقيصه ده |
| نو موږ ته بر ملا د شمس اسرار كړه | بي پردي په صف صفا راته اظهار كړه |
| پرده بردار و برهنه گو که من (۲) | می نخسپم با صنم با پیرهن |
| پرده پورته كړه ښكاره راته ويل كړه | زما و خوي و خاصيت ته نه كتل كړه |
| زه بالكل نه يم راضي په خپل وجدان كښي | چه پرده وي د عاشق معشوق په ميان كښي |
| نو د شمس حال مي خوښ نه دی په پردو كښي | هم دا نه چه وي وينمه په پرده كښي |
| نو ته يو ولري واضح ده تبريز راز كړه | د وصال په نغمو سرور راته شاباز كړه |
| د تسخادر و لزه خلاصه په دي باب كړه | هم په زير و هم په بم مرش خپل رباب كړه |

(۲) دابله غوښتنه دسائل دمولنا قدس سره څخه ده لكه په سليق بيت كښي دايه تعلق ولرتباط رلغلو زمعني ته هغه دلچه روح يلحسلم الدين دمولنا قدس سره ته وايي چه پرده پورته كړه لغ په لغه او ښكاره په ښكاره احوال دشمس روح الله روحه موږ ته ووايه ولي موږ په حين د وصلت دمعشوق سره په قميص كښي نه بيديږو يعني موږ سره دقميصه دتشبيهاتو ورو تمثيلاتو دمعشوق سره نه لوسيږو نو ته نقاب د جماله دمحبوب پورته كړه والا موږ ته دسوال منعه كړو لو نه عذر منو نه مجاز و كنايه قبلوو نه په حكاياتو ساتلي صبر كوو صاف پاك اظهار غواړو نو دوهمه مصراع تمثيل دي يعني لكه عاشق چه دخپل خان او معشوق په ملېين كښي پرده خوښه نه ګڼي همدا رنګه موږ بيان د احوالو دشمس په پرده كښي د نور و خوښي نه ګڼو . لوس به داخبره زده كړو چه ددي بيانه څخه دالستنباط كولاي سو چه شاګرد په معقول استدلال دپاره د تحقيق دمقام دخپل استاذ سره او ږده مكالمه كولاي سي لو دخپل ديني وروحي منفعت دپاره باربار مطالبي ځني كولاي سي ۱۲

ابو الحفاظ :مولوي صالح محمد الارغستاني .

گفتم ارعریان شود او درعیان[1]  نی تو مانی نی کنارت نی میان

مولناواي ماســــائل ته وه ویله  چه احوال دشمس لڅ مه غواړه بالکله

که ته لڅ پخ غواړي سردشـمس الدینه  زه وتاته وایم اي حســام الدینه

نه به ته نه به دي ځنگ نه به دي میان وي  دالاځه نه بـــه همه واړه جهان وي

ولي سردشـمس خودامحبوب حـق دی  چه بـي مثله ووصمداحـد مطلق دی

نوداسـرکه بـي پردي ســي راعیانه  نوبـه چیري تاته پاته ســي خپل ځانه

تالاځه کوي جهان بـه تول بـرهم سـي  تول پردي دممکناتو بـه درهم سـي

خوظهوردحق حـکمت ووبه پردوکښي  اوس نوځه حاجت باقي په پرینښودوکښي

دامهمه مســــئله ده زماوروره  بحــث دوحــدة الوجود ته بنه وګوره

مــوږوتاتـه پخواکـړي دی تفصیلـه  درپیادئـي کـړه فهیـم خیـرک جلیلـه

آرزو میخواه لیک اندازه خواه[2]  برنتابدکوه رایک برگ کاه

مولنابیاوسـائل ته واي خوبـرویه  تـه طلـب پراندازه کـوه نیـک خویه

دپراړه کاني طاقـــت نه لري یاره  ني په توان کښي سته چه یوسي دغره باره

هم دارنګه سردشـمسْ درند ترجهانه  نه ئي غرطاقـــت لري نه دااســمانه

نو ددي سر کشف ته مه غواړه سائله  راځه زه وته په عجزسو قـــــائله

نوثاني مصراع تمثیل ده طالب جانه  مقـصدادي چه مقـام سـي په روښانه

(۱) وقت چه په سابق کښي سائل مطالبه دکشف بلاپردي وکړه لوس بي مولناقدس سره اول جواب وايي ،دایه تعلق ولرتباط راغلو ومعني ته هغه داچه مولناقدس سره وايي چه ماوحسام الدین ته مثلاوویل چه اي حسام الدینه که ته مامکلف کوي په کشف دسردشمس نوسردشمس خودغه محبوب حقیقي جل شانه دي نوکه ته دغه ذات معاین ووبنکاره غواړي نونه به ته باقي پاته سي نه ستاطرف نه ستاوسط بلکه جهان به توله برهم ودرهم سي ځکه چه حکمت دذي الجلال په وجودکښي دممکناتو ظهوردحق په دغه پردو ،وومرایاوکښي دی وقت حق خپله بلاپردي ظاهره سي لکه ته چه غواړي بیانوپردي ته کم حاجت دی نوحتمي به دلپرده ختمیږي لوکون ومکان بـه تول بـرهم وودرهم کیږي لو ظهوربـه سـردکل شـئ هالک الاوجهه کوي بـل داچه ظهوردحق بي پردي موجب دصعقــي دی صعقـه موجب دفناده نه ګوري چه بـني لـرا ئیلوچه ظهوردحـق بـلا پردي وغوښتي مصعوق نه سوه لوقلي نه وګرزیده لوهمدارنګه سردشـمس چه دي ئـائل په وحـدت الوجوددي برملاویـل موجب دتبـاهي دناظلا نوګرزي نوبدي لوجهـر لـغ ویـل لازم نـه دي والسلام ۱۲

(۲) دادوهم جـواب د مطالبي دسائل دی دایه تعلق ولرتبـاط راغلو ومعنـي تـه هغـه دلچه مولناقدس سره وخپل سائل ته دجواب په ذیل کښي لرشـادکوي چه آرزو موطلب کوه لکن په خپله اندازه کښي ترخپل حد تجاوزمه کوه په دي خاطرچه یوکانی دپراړه توان وطاقت ددي نه لري چه غرپه شاواخلي همد رنګه کشف دسرلوعریان شدن دده ترتوان وطاقت زائدامردی نه ګوري وقول ته دالله جل جلاله (( فلما تجلی ربه )) الایه نو مصراع الثاني تمثیل دلولي دی موږ وتاسي له دي مضمونه دازده کړه چه علماء کرام بایدلحاظ دمراتبودسوال لونصحه وخیر خواهي دطالب دخپل ځان جامه وشعاروګرزه وي ۱۲

ابو الحفاظ :مولوي صالح محمد الارغستاني .

(١) دابيت علت دسابق بيت دپاره دی، يعني دخپلي اندازي سره موافق غوښتنه كوه بالاتراندازه مه غواړه تانګرددالخ ،دايه تعلق وارتباط راغلو ومعني ته هغه داچه مولناقدس سره وحسام الدين ته مثلاوايي چه بالاترخپل توان دشي غوښتنه مكوه پدي خاطرچه ونه ګرزي داستاغوښتنه ويني دزړه وروح وجهان يعني چه ددوي دبرهم كيدوسبب وګرزي پدي معني چه كه ته سرشمس دباندي ترپردي وغواړي خوستاسي سره ددي سردزغم توان نسته اوهغه حكمت الهي هم پاي ته رسيږي نوخودبه نه وروح وجهان ختميږي دامعني دخون دل الخ ،نوخوله بنده كړه سترګي پوتي كړه دشمس سردازمان دباندي ترپردي مه غواړه ١٢

| تانه ګرددخون دل جان وجهان[1] | لب به بندود يده بردوزاين زمان |
|---|---|
| مولناپخواســــائل ته وويله | چه بــــالاتر اندازه مه غواړه بــــالكله |
| اوس علت دسابـق خپل ســائل ته وايي | په ناصحـــه ژبــــه داور ته فرمايي |
| كه ته غواړې كشف دسرستاځان به نه وي | هم داكون ومكان جهان بـــــه نه وي |
| محــــدثات كله جوګه دي ددي ياره | چه دبـــاندي ترپرده ګوري اســـراره |
| نه يي توان نه ئي طاقـت هيڅ دليدودي، | بــلكه دغه ئي نووقـت دسـوځيدودي، |
| نوكه ســرددي پردي څخه رابهرســي | سمدستي به پرجهان باندي ماځګرسي |
| همدارنګه كه ســرلڅ مابـين ته راســي | نوحـكمت بــه ده پردي څخه جداسي |
| نوپردي ته بــالاهيڅ نســته حــاجته | نوبــه ولي سمدسـتي نه سي قـيامته |
| نوښه داده اي ســــائله ماته ګوره | چه خوله بنده سترګي پوتي كړونن وروره |
| آفتابي كزموي اين عالم فروخت | اندكي ګربيش تابد جمله سوخت |
| مولناتائيدكــوي دخپل دليلــه | دتوضيـح دپاره وايـي داتمثيلـه |
| چه دالمرچه تول عالم دي په روښانه | كه ترخپل اندازه جګ اوسي تابانه |
| نودده په حـرارت بــه سـي كبابـه | داهمه واړه عالم بــه سـي خرابـه |
| چيري شــمس حقيقــي منورذاته | تجلي بي خودكباب كړي كائناته |
| چه موږ وګورووحـال دجبـرئيل ته | بالاهيڅ حاجت مونسته ودليل ته |

(٢) داتمثيل دي توضيح دسابـق په كوي نووايي آفتاب كزوي الـخ ،دايه تعلق وارتباط راغلو ومعني ته هغه داچه هغه ظاهري لمرچه داعالم روښانه كوي كه څه ترخپل عادي حالت بـالاوځليږي جمله عالم به وسوځي اوبرهم به سي نوچيري شمس دحقيقت كه دپردي رادباندي سي محدثات بـه تول وسوځي سي اوبـرهم ودرهم بـه سي نه ګوري په جبرئيل عليه الســلام ته چه ده په معراج كښي په وقت دوصول وسدرة المنتهي ته څه وويل ،لودنوت مقدارانملة لاحترقت ) يعني كه يوه زره تردي بالاسم تول بـال وپرمي سوځي تمام بشـرمي سوځي همدارنګه هغه حـكمت الهي چه ظهور دحق په پردوكښي دوهم پاي ته ورسيدي نوپردي به حتمي ختميږي اوتو ليرې نوبه چيري ته وجان وجهان ياست نودسردشمس غوښتنه دباندي ترپردي درتوان وتلي خبره ده غوښتنه يي مه كوه دخپل توان په اندازه غوښتني كوه نوپه دي باره كښي خوله بنده اوسترګي پوتي كړه اوس زمان زما څخه ددغه سرغوښتنه مه كوه موقع ئي نه ده والسلام ١٢

ابوالحفاظ :مولوي صالح محمد الارغستاني .

**فتنه وآشوب وخونریزی مجو**[1] **بیش ازین از شمس تبریزی مگو**

په آخر کښي مولنا عالي جنابه — وسائل ته ورکوي داسي جوابه
چه دشمس حال ته مه غواړه بي حجابه — بالامه کوه اصرار ته پدي بابه
ولي حال دشمس که لځ اوبرملاسي — دبغله بي راجګ شروغاسي
ولي وینو منکرین دشمس په بابه — وغافل زړه ته ضرر کوي ربابه
نوفتنه وآشوب مه غواړه اي یاره — خونریزي ته لمون مه وه سرداره
نودشمس حال په پرده دحکایت کښي — وعاقل ته دی کافي په قناعت کښي
پردي ځاي باندي به بس کوقیل وقاله — بالامه غواړي دماځخه دشمس حاله
داآخره فیصله دمولناده — وخپل روح حسام الدین تي داویناده

**این ندارد آخر از آغاز گو**[2] **رو تمام این حکایت باز گو**

په مابین کښي دقصي داسي جریان سو — چه دځان سري پیغام دشمس بیان سو
نوپدي موردشروع زموږ ولناسو — دتبریزپه شغلویت زموږ اولناسو
نودعشق په ولوله اوږده وینا سوه — قصه هیره ومتروکه دهرچاسوه
دعاشقه خوداوږدیري تل کلامه — دمعشوق په باب کښي نلري نمامه
کلیم څه وایي جواب په خپل عصاکښي — چه الله سوال ځن کوي په خپل ویناکښي
خوددي سره سره مولناڅه کړي — اوس وخپل شروع قصي ته ګرزیده کړه
ماووتاته به هیرسوي شئ رایادکړي — دنظره به وتلی راپیادکړي

(۱) په سابق بیت کښي بیان دضرر په ډیروالي کښي اوس بیان دضرر په ډیروالي کښي دتمثیل وکړي دمثل کوي نووايي فتنه وآشوب الخ ،دایه تعلق وارتباط راغلو ومعني ته هغه داچه مولناقدس سره وسائل ته وايي چه مه غواړه فتنه وغوغا او ورنې تو یه ول په غوښتنه دحقائقو دشمس تبریزي ازید واکثرتر دغه وه ولي چه ناپوهان وجاهلان ډیردي ساحته ئي پراخه ده وحقیقت ته وصول نه سي کولاي نو فتنه وغوغامه راجګه وه په دغه قدر کفایت وکړه چه په پرده کښي درته ذکر کیږي وبس اوس باید داخبره زده کړوچه ددي بیت ددوهمي مصراع څخه دامعلومیږي چه مولناقدس سره څه اسراردشمس بیان کړي دي اودسابقه ابیاتو مضمون څخه دلوړچه مولناقدس سره وسائل ته دکشفه داسرارو جواب ورکړي لوانکاروابانې کړي حتي دایي ورته وویل چه ددي کشفه سره به نوجهان خرابیږي نوداخوښکاره منافات دي په مابین کښي دکلامي دمولناقدس سره خوددي منافات روغه لوجوړه داسي کیدلاي سي چه په سابق کښي اباء وانکار دعیان واظهاره بي پردي په ډول وولوهغه چه ددي بیت څخه معلومیږي هغه بیان واظهار په پرده کښي دی نومنافات دمابینه پورته سووالسلام ۱۲

(۲) وقت چه مولناقدس سره دشمس روح الله روحه په باره کښي کلام دومره اوږدکړي چه شاید قصه دي دویونکودخواږخاطره وتلي وي نوددي دتنبیه دپاره مولناقدس سره وايي این ندارد الخ ، دایه تعلق وارتباط راغلو ومعني ته دبیت هغه داچه مولناقدس سره وايي چه بیان دشمس روحه الله روحه اواوصاف دده خوتمام نلري راځه ومخ وقصي ته دباچاواړه وواودغه قصي شرحه تمام وکړوچه ددغه بیانه به اهل فطنت هغه اسرار وفهمه وي چه زماؤدشمس روحه الله روحه په مابین کښي دي په دي ډول چه طبیب الهي به شمس روح الله روحه وبولي مابه سلطان وګڼي اواطبا. به مشائخ نالائق دارشادوپیژني ۱۲

ابو الحفاظ :مولوي صالح محمد الارغستاني ·

(۱) ددي عنوان تعلق وارتباط دسابق عنوان سره پدي خاطردي چه په سابق عنوان کښي باچاطبیب الهي مریض ته حاضرکړي
اوطبیب الهي دباچاپه حضورکښي دمریض معاینه په رنګ ونبض وغیره وکړه اوس طبیب الهي دباچاڅخه دنه حضورطلب کوي دیو
حکمت دپاره نووايي طلبیدن آن الخ ،که موږ ودي عنوان اوسابق ته ښه خیرسوددوي دووترمابین بـه هم تناسـب پیدا کړوپدي
خاطرچه لکه مولّناقدس سره چه دسانله خلوت طلب کړي اوقـصي ته ئي مخ راواړاوه چه اسراروامراض دنفس پکښي وه پلټي
لکه طبـیب الهي چه خلوت طلب کړي چه دمنځي سـرومرض پکښي پیدا کړي اوښه تشـخیص ئي په یقـیني ډول بـاندي وکړي
دصوفیه کرامو په ژبـه به داسـي ووایوچه مرشد کامل بـه په خلوت مرض دنفس اعني محبـت دما سوي الله پیدااوتشخیص کړي ۱۲

## (۱) خلوت طلبیدن آن ولی از بادشاه بآن کنیزک جهت دریافتن مرض ورنج آن کنیزک

| | |
|---|---|
| چه طبـیب الهي وه لیدبـیماره | په حـضورکښي دبـاچاهم وداواره |
| پس حـکیم الهي ویل بـاچاته | چه تـه ووزه خالي خونـه کـړه وماتـه |
| چه زه ښه په تسـلي مرض پیدا کړم | داسي نه چه په حضورکښي ستارسوا کړم |
| بـیایه هم بـیان وتاته زه کومه | داسـي نه چه سراسـرئي پوته ومه |
| خوشاهدپردي خبره پس عنوان دی | سمدسـتي چه متصله راروان دی |
| خلاصه دعنـوان چل ده پردوه راډه | یوتشـخیص دمرض بـل منځي ته داډه |

## (۲) چون حکیم ازاین حدیث آگاه شد — وزدرون همداستان شاه شد

| | |
|---|---|
| چه حـکیم الهي خبـریه خواوو | هم په عشـق ددغه منځي دی اګاوو |
| وه لي ده ئي رنګ ادراړیخوالیدلی | هم ئي نبـض دطبـیب واړء ووکتلی |
| هم اسباب هم علامات ئي اوریدلی | ددوابـد تاثیرات ئي سـنجه ولي |
| خودي تولوظن اجمال راوړي پیغامه | هیڅ یقین ئي فایده نه کړي نیک فرجامه |
| اوس طبـیب الهي کوي دقـته | په یقـین معلومه وي داحقیقـته |
| نوپدي عنوان بـه پورته کړي اجماله | په یقـین بـه کړي واضح دمنځي حـاله |
| نوبه داعنوان تقصیل سي دسابقـه | تناسـب بـه سـي ښکاره تاته لائقـه |

(۲) اول بـه معني دبیت زده کړوهغـه داچه لفـظ دشدپه دواړونیم بیتوکښي په معني دشـده دی نو حاصل داچه وقت چه حکیم الهي په عشـق دمنځي دمخکښو معاینـوپه رنګ ونبـض وغیره اوهم دلرنګه په نه تاثیرددواودطبیبانو دظن غالب په ډول اواجمال په طورپوه سـوي وواوهم دغه وقـت څخه دبـاچاد کامل اسـتعدادپه خاطر همداستان ومطلع دلسرارو دباچاسـوي وونولوس ئي دتحقیق وتثبیت وتیقـن دپاره طلب ځني وکـړي چه نومـوړي ظـن واګاهـي متیقـن اومفصل ودبـاندي نه راوباسـي په دي تقـریر نوبـیـت دعنوان وآینده بیت سره مناسب ومرتبط سواوداتشویش هم دفعه سوچه حکیم الهي پدي وقت کښي کله مطلع اواګاه په عشـق دمنځي په یقین ګرزیدلي ووخوپه آینده کښي ئي اطلاع راځي اوبیانیږي نوپدي خاطردابیت په اکثرنسخوکښي وجودنه لري بلکه شروع پس ترعنوان متصل په دي بیت کیږي چه ګفت اي شه الخ ،شایدپه دي مقام کښي دي نوري توجیهاتي هم وکړه سي خودعبد ضعیف وزړه ته ددغه توجیه الهام وکړه سووالله اعلم ،دصوفیه کرامو په ژبه وقت چه مرشدکامل په عشق دنفس اماره پرماسوي دالله پوه سونودخپل ارشادپه همت دروح ملګري سواودنفس دقیده ئي خلاص کړي والسلام ۱۲

ابو الحفاظ :مولوي صالح محمد الارغستاني .
الراقم :سید عبد الهادي الهاشمي .

(١) وقت چه داجمال ؤظنه فارغ سونوئي په تفصيل وويقين شروع وکړه نووايي گفت اي شه الخ ،دايه تعلق وارتباط راغلو ومعني ته هغه داچه حکيم الهي وباچاته وويل چه خونه خالي کړه يعني ته وه وزه ماوومنځه په تنهائي کښي پريږده اودنورو خويشاوندانوووبيگانه گانو څخه هم خونه خالي کړه فقط ماوومنځه سره پريږده پدي خاطرچه زه له دي څخه تفصيلي پوښتني کوم اوحال ئي تحقيق ته رسوم شايدستاسي په حضورکښي به هغه څه نه سي ويلاي چه ماتي ويلاي سي اوهغه حال به تاسي ته نه سي ظاهره ولاي چه ماتي ظاهره ولاي سي نودسرمراعات لازم دي نوپدي خاطرزه خلوغوارم ،دصوفيه کرامويه ژبه مولنا قدس سره پدي کلام کښي دارلوه ښوده چه مريدچه په ظاهرؤباطن دمرشدسره خالي نه سي دامراضودنفس به ابدا خالي ؤخلاص نه سي . همدارنگه مولنا قدس سره وسِرته دشمس هم اشاره وکړه پدي معني چه سِردشمس په کمال خلودماعداڅخه پيژندل کيږي والسلام ١٢

| گفت ای شه خلوتی کن خانه را[1] | دور کن هم خویش وهم بیگانه را |
|---|---|
| اوس طبيب الهي بـاچاته وايي | ددي خوني سـه وتل ورته فرمايي |
| واي هم ليري کړه داخپل تولـه خوينبانه | هم دارنگه دي همه بيگانه گانه |
| حکمت داووچه مريض وگوري خپله | ځني وپوښتي حالات تول کل بـه کله |
| شايدداسي حال بـه وي دمريض خواته | چه ويلاي بـه ئي نه سي وبل چاته |
| نه ئي خوښ وي خپل قريب نه خپل باداره | چه ددي مريض په حال سي خبـ داره |
| نوبـه کله وطبيب ته حـال اظهارکړي | په حضورکښي به ددوي کله اقرارکړي |
| نولازم دي پرطبيب دامرحمته | پرمريض بـاندي وکړي داشفقته |

(٢) دابيت تفصيل دسابق دى دايه وجهه دتعلق وارتباط ده راغلو ومعني تـه هغـه داچه طبيب الهي وبـاچاته وويل چه څوک دي په دهليزوکښي غوږ نه نسي ږده چه زه دمنځي څخه هغه څه پوښتنم چه اغيارونـي ظهـور نـه دى پکار ،دصوفيه کرامويه ژبه مولنا قدس سره اشاره کوي وديته چه قـاعده دارشاددادى

| کس ندارد گوش در دهلیزها[2] | تا پرسم زین کنیزک چیزها |
|---|---|
| دحکيم الهي بـه لـه وينااده | دى وشاه ته وايي اوس خبـره داده |
| نه به څوک په دهليزوکښي غوږ نيول کړي | نه بـه دادسخن چينه کارکول کړي |
| وه لي زه ســوال عرضه ومه پرمريضه | هـم پوښتنـي زه کومـه دکنيـزه |
| دانه غوارم چه دمنځي حـال رسواسي | چه وهرکس وناکس ته برملاسي |
| سرشـندنه دنااهله وظيفه ده | کتابـوکښي يوه لويه جريمه ده |
| چه يو سرپټ سـي دبـل اي نيک کرداره | ځوبدله يه رانبوه لي زمور سرداره |

چه سالک ومرشدته ظاهراً وباطناً ورسي توله حال خپل دهغه قرباني کړي اوتوله علائق دماسوي الله قطعه کړي اوده ا.ره غير دمرشدبله قبله ومتوجه اليه نه وي اودقبلي څخه داهويته مخ واړه وي اووکعبي ته دحقيقت چه هغه نظردمرشددى توجه وکړي اومقابل کړي مشکاة دقلب دمرشدومرات ته دقلب خپل نوددي خلوص په نگاه به امراض نفسانيه کشف اوازاله بي وکړه سي همدارنگه مولنا وسرته دشمس داسي اشاره کوي چه شمس وايي چه په دهليزوکښي به دماسوي الله دي څوک نه وي زه نفس ترخطاب لاندي راولم اودماسوي څخه ئي روگردانه گرزه وم بنه متفکرسه دشمس مذهب په يادکښي ولره ١٢

ابو الحفاظ :مولوي صالح محمدارغستاني .

ابو الحفاظ :مولوي صالح محمد الارغستاني .

| خانهٔ خالی کرد شاه شد برون (١) | تا بخواند بر کنیزک او فسون |
|---|---|
| چه طبـــيب الهي خلوت غوښتلی | باچاسمدســــــتي داامرو منلی |
| نوخالي يه کړه داخونـه دخپل ځانـه | چيري خپل وونورهمه بــــــيګانه ګانه |
| چه طبيب مي دمعشوق وکړي علاجه | تــداوي وکـــړي ددي مريــض مزاجــه |
| ځوک کانــدي امتثــال دډاکترانـــو | هم دهغه واقــــــعي ښوطبيبــــــانو |
| خودمرض بــه ســـي خارج دده له تنه | هم بـــه ومومي صحـــت دخپل بـــدنه |
| همدارنګه دســــالک دي دغه حـــاله | چه دخپل مرشد بـــــــــه کاندي امتثاله |
| نوامراض نفساني به ځني بـيل سـي | ورنه ستوري بي دبخت سمدستي فيل سي |
| همدارنګه سردشـــمس ګوره ســـائله | هم په طبـــي روحــاني ئي ســه قـــائله |
| خانهٔ خالی ماند و یک دیار نی (٢) | جز طبیب و جز همان بیمار نی |
| مولٰنابنه تفصيـل ومـوږ تـه وايـي | دباچاؤطبــــــيب حــــــال راته نمايي |
| واي خالي خونه سوه پاته بل ځوک نه وه | بي طبيبـه بـي مريضه هيڅوک نه وه |
| دطبــــيب الهي امرپرځاي ســـــــو | څه چه ده غوښته هغه شئ هم برپاي سو |
| بـــــــاچاپره دده دامرامتثال کړي | هم ئي ورک دغوږ نيولو احـــتمال کړي |
| وه لي ده پخوابــــللی ځاني عمر(رض) وو | هـــم ترلـــی وخدمـــت تيــه کمـــروو |
| نوبـــه وه لي خدمت نه کړي دطبيبـــه | ده پخواځان ته ګڼلي ووحبيبـــــــــه |

(١) وقت چه په سابـق کښي امرد طـبيب الهي وبـاچاته ذکرکړي اوس امتثال دمامورذکرکوي نو وايي خانه خالي کرد الخ .دايه تعلق وارتباط راغلو ومعني ته هغه داچه بـاچاخونه خالي کړه خپله هم دبـاندي ولاړي داخونه ئي ددي دپاره خالي کړه چه طبيب پرمنځه خپل لطيف الماخذه کلام ووواي فسون په معني افسون هغه نرم وباريکو خبروته وايي چه په حکم کښي دسحرپه ميلان کښي دقـلب وي لکن کلمات دکفروخلاف الشريعة نه وي په کښي بـخلاف السحر .دصوفيه کرامو په ژبـه روح خپله خونه چه زړه دي ومرشدکامل ته داغيارو څخه خالي کړه دپاره ددي چه مرشد کامل پرمنځه دنفس خپل افسون ودم وکړي اودمرضه دکبر وغيـ : ئـي خلاص کړي . :روح تابع ئي وګرزه وي هـ نګه مولٰناقـــس سره ويېرته دشمس روح الله روحـه دلـــي اشـاره کوي چه اي سائله ته خپله خونـه دزړه داغيارواوما ســـوي الله څخه خالي کړه چه دم وافــــون دشــمس دوحدت ورباندي ووينې والسلام ١٢

(٢) دابـــــيت تفصيل : سابـــــق دی دايه وجهه د تعلق وارتباط راغلوومعني ته هغه داچه باچادلــــــي امتثال دامرد طبـيب الهي وکـړي چه يو ګرز .ونکـي ئـي هـم په دي خونـه پري نه ښودي ماسـوي طـبيب الهي وومنځي بل هيڅوک پدي خونـه کـښي نـه وه صيغه ديارمبـــالغه ددائر معنـــي بـه ګرزيدونکـي دصوفيه کرامو په ژبـــــه بـــايدخونه دزړه چه زړه دي دلــــي خالي داغيارو څخه پاته سي چه جزدمرشد کامل ووسالک څخه بل ځوک نه وي چه کشف دامراضونفسانيه ووازاله ددوي ؤکړه سي همدارنګه مولٰناقدس سره وخپل يار اوصاحب الکتاب اوسائل حسام الدين روحه الله روحه ته داشاره ورکوي چه خپله خونه دزړه دي وشمس الدين التبريزي روح الله روحه ته خالي کړه اوودغه طبيب الهي ته ئي تسليم کړه بيانووګوره اسرارد شمس چه دتوحيد په تجلوبه دي پټ کړي دقصي څخه معلومه سوه چه خلوت دطبيب حاذق خصوصاچه مامون وي ديوحکمت دپاره دزناني سره چه مريضه وي خصوصادمنځي سره جائزدي ١٢

ابوالحفاظ :مولوي صالح محمدالارغستاني .

الراقم :سيدمولوي عبدالهادي القريشي .

**نرم نرمک گفت شهر تو کجاست**[۱] ‖ **که علاج و رنج هر شهری جداست**

اوس شروع سوي دطبيب دخوا پوښتني ‖ په نرمي نرمي مرض لره کتني

په نرمي دي، وغوي دغه بيماره ‖ چه وطن دي چيري ووچيري دي ښاره

داپوښتني زه په دي خاطر کومه ‖ چه هم رنځ وهم علاج معلومه ومه

ځکه هرښار ته جلا آب هواده ‖ هم ئي رنځ هم مخالفه ئي دواده

په دي بيت کښي عجيب درس دی، وطبيب ته ‖ هم دارنګه يوعام پند دي ولبيب ته

اول داچه حسن خلق دطبيبانو ‖ په نرمي باندي کتل دمريضانو

دوم داچه په ډيرغوروتميزه ‖ طبيب وپيژه ني رنځ ددي مريضه

په رقم رقم پښتونوئي پيداکړي ‖ بيا په ښه علاج په طبق ددواکړي

**واندراں شہراز قرابت کیستت**[۲] ‖ **خویشی و پیوستگی با چیستت**

اوس حکيم الهي شفيق مهربانه ‖ دوم ځل کوي پوښتنه ښه پريمانه

وايي څوک دي قريبان په هغه ښارکښي ‖ چه ستاکورؤطن وويه اول وارکښي

قرابت دي وودچاسره پيونده ‖ ښه واضح کلام وايه پدي اورنده

ستادوستان ؤخپلوان څوک وه اي بيماره ‖ بيا په دي وطن کښي څوک وه ستاغمخواره

محبت وواشتغال په څه شي، وو ‖ دل چسپي واتصال ستادڅه شي وو

تاچه واوريده دازماواړه سوالونه ‖ راته وايه کل بشکله جوابونه

ځکه زماسوال ته جواب ستاپه اخلاصه ‖ مريضي به رانبکاره کړي سمدلاسه

(۱) وقت چه په سابق کښي خلابيان کړه اوس ماهو الغرض ومطلب دخلاڅخه بيانه وي نووايي نرم ونرمک الخ ،دايه تعلق وارتباط راغلوومعني ته هغه داچه کاف په نرمک کښي دتصغيردپاره دی، اوکه په دوهمه مصراع کښي تعليليه دی، يعني مالره احتياج دپوښتني پدي خاطردي چه علاج دمريض دهرښارجدادی، ځکه چه طبائع په اوطانوپوري اړه لري نوحاصل دمعني داچه طبيب الهي په نرمي ونرمګي ومريض ته وويل چه ستاښارچيري يعني ته دکوم ځاي ني وطن دي کوم ښاردی، اوداپوښتنه چه زه له تاکوم پدي خاطرچه رنځ ووعلاج دهرښارجدادی، اوس به نوداخبره زده کړوچه طبيب الهي ځکه په نرم ونرمګي پوښتني کولي چه رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمايلي چه ان الله رفيق يحب الرفق الحديث هم دارنګه رسول الله صلي الله عليه وسلم وعائشي رضي الله عنهاته وفرمائل چه عليک بالرفق واياک العنف والفحش فان الرفق لايکون في شئ الازانه الحديث همدا رنګه حق سبحانه وتعالي په سورة آل عمران کښي ارشادفرمايي فبمارحمة من الله لنت لهم ولوکنت فظاغليظ القلب لانفضوامن حولک الاية دحکيم الهي شريعت پدي باره کښي هم زموږ شريعت وونو په دسابق يادلښته سره سره هم تشويش نه درته پيداکيږي پس داخبره هم بايدزده کړوچه لکه چه په نيزداطباؤداجسامو هربلدلره متفاوت علاج دی، همدارنګه په نيز داطباؤدارواحوهربلد معنوي لره مختلف علاج دی، ځکه چه ډيرځله موږ ډيرسلاک وينوچه په ارشادقليل وده ته استعدادکلي حاصل سي بل بيابل رنګه وينووالسلام ۱۲

(۲) داپوښتنه پس ترېلي پوښتني ده يعني وقت چي دښادپوښتنه ځني وکړه اوس په هغه ښارکښي دقرابت وپيوستګي پوښتنه ځني کوي دايه تعلق وارتباط راغلوومعني ته هغه داچه طبيب الهي مخ کښي دمريض څخه دښار پوښتنه وکړه اوس په دغه ښارکښي داقرباؤاودوستانواو ،وابسته ګانوپوښتنه ځني کوي نوورته وايي چه ستاپه دغه ښارکښي قرابت دچاسره ووا وخپلي وو ،وابستګي دڅيشي سره وه لکه عادت چه دطبيب جسماني تجسس دمريضه څخه دی، همدارنګه داب دطبيب روحاني لو مرشدکامل تفحص دمحبته دسالک ماسوي لره نوردي پرخداي پاک سپارم والسلام ۱۲

ابو الحفاظ :مولوي صالح محمد الارغستاني ·

| بازمی پرسیداز جورفلک | دست[1] برنبض نهادو یک بیک |
|---|---|
| چه پرنبض ئي دمنځي لاس قرارکړي | یاطبیب الهي دغه سي کارکړي |
| دګردش دزماني ئي کړي پوښتني | نویه یک په یک شروع کړي پلټني |
| واريدېږي په ګردش کښي دزمانه | یعني هغه شدائدچه پرانسانه |
| هم ددغي تجسس کاوه دمنځي | دهغوئي تفحص کاوه دمنځي |
| څه حالات چه وه ویل ئي دخپل خانه | منځي هم په زیروو زورکاوه بیانه |
| ددي نبض ته ووکامل په انتظاره | خوطبیب الهي ووډيربیداره |
| یابه څنګه تحول راسي په نبض کښي | چه به څنګه تبدل راسي په نبض کښي |
| پای خودرابرسرزانونهد | چون[2] کسی راخاردر پایش خلد |
| چه طبیب څونه څیړي دمنځي حاله | چونچه دلته پیښیدی سړي ته سواله |
| في الجمله په کشف کړي ومرضه | خوپه خواده پیژندلي ووغرضه |
| مجردي تهیوورته شافي وه | اوس نومحضي دتوجه ورته کافي وه |
| خودبه وایمه چه داعبث روزګاردی | نودادومره دقت دلته څه پکاردی |
| پداغه به نوجواب دسوال روښان کړي | مولنالوس په تمثیل موږ ته بیان کړي |
| نودزړه پرازغي وه لي ته ګلي کړي | واي په پښه دي ازغي جګ سي څوحیلي کړي |

(۱) وقت چه په سابق بیت کښي زباني حال دطبیب بیان اوس ئي عملي حال هم بیانه وي نووایي دست برنبض الخ، دایه تعلق ولرتباط راغلومعني ته هغه داچه داقول دمولناقدس سره چه یک بیک مصروف ومصراع ثاني ته دی نوحاصل داچه طبیب الهي خپل لاس پرنبض دمنځي کښیښودي بیائي نوپوښتني یو په یو دګردشه څخه دزماني څني کولي دپاره ددي چه مرض معلوم ومتیقن کړي بیاني دعلاج بندوبست وکړي دصوفیه کرامو په ژبه چه طبیب روحاني اومرشدکامل لاس دفراست وکرامت پر نبض دنفس اماره کښیږدي بیانودګردش دزماني پوښتني څني شروع کړي دپاره ددي چه دده مرض ورمعلوم اووربښیي اودعلاج چاره ئي وکړي لوتابع دروح نسي وګرزوي. اوس داخبره بایدزده کړوچه عالم روحاني شیخ یوسف روح الله روحه په مهنج کښي لیکلي چه مجموعه ارواح څلوېښت فرقي دي څلورله دوي وعالم صورت ته نه دي راکښته سوي بلکه لرواح مجرده دي څلوروعالم صورت ته دپاره دارشاد. دعبادو رانازل سوي دي هغه نو انبیاء مرسلون عارفون مؤمنون دي باقي دودیرش مظهردقهروجلال دي دانولرواح دمنکرینومنا فقینواورنګ کفارو ومشرکینودي ثم بعض دفرقواربعه ثانیه چه وعالم ناسوت ته رانازل سي دپاره دتحصیل د کمالاتونوئي دبعضي عوارض نفسانیه اوتلوثات دنیویه په خاطرحال مختل سي لکن په ادني اشاره میل وخپل حقیقت اصلیه ته کوي اوطلب دعلاج دخپل اختلال کوي نوطلب دطبیب حاذق کوي اومرشدکامل غواړي دامرشد نوځان مقیدپه ارشاددمسترشدوګرزه وي په قدردده داستعدادارشادورته کوي اوهغه دودیرش طائفي ارشادنه قبلوي صحبت دمرشدتاثیرنه ورباندي کوي دجهته دسبقت دعنایت ازلي نومرشددوي پرېږدي ځان مقیدنه په ګرزه وي داحالت نونه پیژني الاولرث محمدي لهذانومرشدون سلاک منعه کوي دکشفه داسرارو، واغیاروته وه لي په دي کښي لوي ضرردي سالک لره نوردي پرالله پاک سپارم والسلام ۱۲

(۲) دابیت دمولنادلوري یو تمثیل دي دفعه دسوال په کوي هغه داچه طبیب دادومره په دقت څیړنه دڅه دپاره کوي حال داچه خومرض په خوالافي الجمله معلوم سوي وواوس خونویولږ شمه کافي وه حاصل داجواب داچه دادزړه ازغی دی په معمولی دول ئي کشف نه سي کیدلای نه ګوري چه دظاهري ازغی دپاره څونه حیلي کیږي نوچیري باطني ازغی نوئي دکشف دپاره کامل کوشش په کاردي سره دلنډوالي دبیان ګمان نه کوم چه وتاته دي په ارتباط ومعني کښي شک پاته وي هوداوایم چه خلد مضارع معنایه په پښتوچه جګ اوڅرخ سي. سوال وجواب په ژبه دصوفیه داسي کیږي چه امراض معنویه دنفس پرمرشدکامل خفي نه دي نودونه تجسس دسالک وه لي کوي جواب داچه هولکن بعض امراض بحسب دصفاتوپرمرشدخفاپیداکړي نوو تفحص نه احتیاج پیداکړي لکه ازغی په پښه کښي ۱۲ ابو الحفاظ :مولوي صالح محمد الارغستاني .

| ورنيابد ميكند ازلب ترش | وزسرسوزن همی جويد سرش (۱) |
|---|---|
| اول پښه پرځنګانه ايږدي سربيره | واږغي ته ته كوي څونه تدبيره |
| بيانوستن پرګرزه وي كوږدي مزغي سي | كه په دي هم درڅخه ورک دغه ازغي سي |
| نوپه ناړولنده وي داځاي چابكه | كه ددي سره بياهم سودرسه وركه |
| اوپه څونه اهميت ازغي ته ګوري | دانوڅومره غمخوري ده ستادلوري |
| ورصرف كړي دي همه واړه حواسه | دمحسوس ازغي كوي دونه وسواسه |
| په دقت پيدا كوم دغه مطلبه | زه چه كړم دباطني ازغي طلبه |
| دابي ځايه اشتغال حاجت ئي نسته | ته واداكاردي عبث ضرورت نسته |
| دسائل دسوال پردي به نه كړي څيري | دابه نوي دانصافه څخه ليري |

| خاردردل چون بودواده جواب | خاردرپا شد چنين دشوارياب (۲) |
|---|---|
| نوپه زړه چه وي جګ سوي څه بي حال وي | چه دپښي دازغي هم دومره جنجال وي |
| زه به وګورم چه څه وايي جنابه | ته نووه وايه دازماسوال ته جوابه |
| صف صفابه ملامت درته سائل سي | يقين داچه قناعت به دي حاصل سي |
| وه لي بالكله ښكاره دغه مطلوب دي | وه لي داسائل شك نسته چه مغلوب دي |
| هم اصرارپربي صالحه پكارنه دي | نوانكاردي پرواضحه څه كارنه دي |
| نوطبيب به بولوحق په جانبه | نوراڅه چه زه ووته سوحق طالبه |

(۱) وقت چه په سابق بيت كښي دپاره دپيداكيدلو دپښي دجګ سوي ازغي يوه حيله ذكركړه اوس دوي نوري حيلي دهغه دپاره ذكركوي نووايي وزسرسوزن الخ ،دايه تعلق وارتباط راغلو ومعني ته هغه داچه دچاپه پښه چه اغزي جګ سي نودي دپاره دپيداكيدلو ددغه ازغي اودپاره دسهلت كښلو ددغه ازغي څوكاره كوي پښه پرځنګانه سربيره ايږدي دښه ليدلو دپاره بيائي په سر دستني ارام پلټي چه په كراره ئي وكاږي كه ئي چيري پيدانه كړي بيانوهغه ځاي دازغي لوندكوي په ناړوچه دازغي واضح ښكاره سي اوپه سهلت ئي دپښي څخه وباسي نووقت چه دونه حيلي وداظاهري اومحسوس اغزي ته جوړيږي نوبه وهغه باطني اوغير محسوس لزغی نه چه لزغی دعشق دی وه لي حيله نه جوړيږي لووه لي په دقت نه پكښي كيږي لووه لي به په غورنه ورته كتل كيږي نودطبيب الهي دقت پرځاي دسائل سوال بيځايه دی ۱۲

(۲) پدي بيت كښي مو لنا قدس سره خپله تطبيق دتمثيل پرممثل لواظهار دجواب په صورت دلستفهام كوي نووايي خاردرپا الخ ، دايه تعلق ولرتباط راغلو ومعني ته هغه دلچه مو لنا قدس سره وايي وقت چه لزغی په پښه كښي دومره دشولرپيدلو چه تابه دخلوند حال وليدي چه دحيلي وتدبيرونه كول نودزړه لزغي څنګه دي پس ته جواب راكړه چه دلوعشق لزغی چه په زړه كښي ښخ دي دپښي تر لزغي كم وي نلبل ديرتر بالادي ځكه چه دامعنوي لوهغه محسوسي دي نو لكه هغه ته مصروفيت تام موجود وو .ودي ته هم كامله توجه پكارده په دقت څيرنه ئي بايدوسي نوطبيب الهي حق په جانب دي سائل دي دخپله سواله صرف نظروكړي نوږدي تقريرتاته معلومه سوه چه كلمه دچون په بيت كښي اداة داستفهام دی اوكلمه دوا ،په معني دبعدوپس ده اوكلمه دده صيغه دامرده معنايه په پښتوور كه نوردي پرخداي پاک سپارم والسلام ۱۲

ابو الحفاظ: مولوي صالح محمد [illegible] غستاني.
الراقم: سيد عبد الهادي القريشي.

| (۱) خاردل راگر بديد هر خسى | دست كى بودى غمازا بر كسى |
|---|---|
| دسابقه څخه داسي سوال پيدا سو | چه نو هر طبيب په هر مرض داناسو |
| په سولوو په پښتنو كړي تميزه | كشفه ولاي سي مرض د هر مريضه |
| مولنا اوس دغه سوال دميانه باسي | په ښكاره ډول ئي منعه وايي داسي |
| هر طبيب كه هر مرض واي پيژندلى | نو به غم ؤدرد پرچانه واي راغلى |
| هر مرشد كه د هر عيب د نفس دواواي | په دنياكښي به نفس خلاص د هر بلا واي |
| تالي وينو چه باطل دي بيخي ډيره | كي په شمير سو تر حسابه به سي تيره |
| ناپوهانه طبيبان تاوه ليدلى | هم ناقصه مرشدان دي پيژندلى |

| (۲) كس بزير دم خر خارى نهد | خر نداند دفع آن برمى جهد |
|---|---|
| مولنا اوس بل مثال وموږ ته وايي | وماتاته ئي كامله زده كړه ښايي |
| يو سړي چه څوزان راوړي دد باندي | بيايه كښيږدي د مركب تر لكى لاندي |
| نو مركب پدي پوهيږي چه دا خاردى | په داغه باندي نو زما بدن پر هاردى |
| مگر داعلاج ئي نه دي زده اي ځوانه | چه دخپله ځانه ليري كړي ازغيانه |
| هغه داچه لكى پورته ښه بالا كړي | بيا ښوروښت ديوي خواوويلي خواكړي |
| په جوتك باندي پښي ووهي دمځكي | نو به بيلي سي دده دازغوڅوكي |
| داسي نه چه لكى ټنگه كړي سپيدلى | لكه داوضيت چه ده دي راايستلى |
| نو پرده رحم پكار ديو عاقله | چه بلي ددي بلاسه خلاص كړي داجاهله |

(۱) وقت چه دسابق ابياتو څخه وسړي ته توهم پيدا كيدي چه هر طبيب به د مريضه څخه په اسوله وو هر مرض تشخيصه ولاي سي بيلي علاج كولاي همدا رنگه په ژبه دصوفيه كرامو چه هر مرشد به د نفس امراض معنويه كشف كولاي سي بيلي علاج كولاي سي نو مولنا قدس سره تو هم مذكوريدي بيت دفعه كوي نو وايي خاردل الخ دايه تعلق وارتباط راغلو ومعني ته هغه داچه د زړه ازغى كه هر دني وخس چاليدلاي نو به غمو نو وهمو موږ هيچاهجوم نه واي راوړي يعني كه هر طبيب طبيب حاذق واي نو به په دنياكښي مريض لومتالم نه واي لوكه هر مرشد مرشد كامل واي په دنياكښي به هيڅ نفس په امراضو نفسانيه ووباندي نه واي مريض سوي تالي خوباطل مقدم دي مثله ولي تادمغروره طبيبانو حال نه وليدي اوتادناقصو شيخانو حال زموږ څخه نه واوريدي نو معلومه سوه چه هر طبيب طبيب نه دي هر مرشد مرشد نه دي هدغه د مولنا قدس سره مطلوب دي نور دي پر خدا اي پاك سپارو والسلام ۱۲ دا تمثيل آخر دي ددي دپاره راوړه سوي دى چه شايد چه يو طبيب دي مرض قلبي لودزړه ازغى وپيژني خو بيايه دفعه وعلاج نه سي كولاي خكه چه ددي ازغى كښنگ وهرچاته ممكن نه دي بلكه طبيب حاذق به دا ازغى كاږي نـ گوري چه يو سړي لاندي تر لكى د مركب ازغى كښيدي دا مركب خو په درد و مرض پوه دي لكن دفعه وعلاج ئي نه دي زده هغسي حركات كوي چه ده نه درد و مرض زياته وي همدا رنگه كيدلاي سي چه يو طبيب دي مرض وپيژني خو داد و يه دا مزجه وغيره لوازم دصحبت به دومره تحليل نه كړي چه د مريض دصحبت موجب وسبب وگرزي بلكه تر پخوا يه بد تروگرزه وي خكه چه دوا چه د مزاجه سره د مريض برابره نه سي ډير خله د مرگ سبب گرزي همدا رنگه شان د مرشد مزور لوپير ناقص دي شايد چه مرض نفساني بسي پيژندلي اوزده كړي وي خودازالي جوگه نه دي خفته راخفته كي كند پيدا رحضرت امام رباني فرمايي دناقصه پيره داسي تښته لكه د پړانگه ۱۲

ابو الحفاظ :مولوي صالح محمد الارغستاني .

| عاقلی باید که خاری برکند | برجهدوان خارمحکم ترزند [۱] |
|---|---|
| په دي بيت کښي په نظردده پرحال کړي | مولٰنامخصوص مرکب موږ ته مثال کړي |
| چه وده ته يه راجع وي تاوانونه | وايي دامرکب کوي داسي کارونه |
| خولکي ئي تنګه کړي پرڅوزانو | وهي مونډي ترنډي غورځي پرنوکانو |
| خوتنګښت ئي دازغيانونتيجه ده | داکوشش وده ته کمه فائده ده |
| چه دځانه څخه ليري دغه خارکړي | نواول بايدي داسي کاراختيارکړي |
| نوغريب مرکب به خلاص ددغه سوزکړي | يايوبل عاقل دده څخه ليري څوزکړي |
| ددنيادمحبت ازغي له ځانه | هم دارنګه بايدوکاري شيخانه |
| چه دجهل ازغي وباسي دلاري | هم اول فرض پرطبيب دي دغه چاري |

| جفته مي انداخت صدجازخم کرد | خرزبهردفع خارازسوزودرد [۲] |
|---|---|
| چه دسوزه دازغيانوپه عذاب سو | دمرکب حالت نودارنګه خراب سو |
| دي شروع کړي غريب داسي عمل کرده | نودپاره ددفاع دسوزودرده |
| بيانوپورته پورته غورځي په جوتکه | چه لکي وربانډي تنګه کړي ښه کلکه |
| پربدن خپل باندي جوړکي سل پرهاره | نودده پرځاي چه خلاص کړي ځان دخاره |
| چه دده دلکي ليري سي داخاره | نوطريق په دخلاصون داده زمايار |
| مزوردنياپرسته مرشدانه | هم دارنګه ناقابله طبيبانه |
| ددفاع دپاره نه پيژني لاره | دغروربه ازغي سل ځايه پرهاره |
| چه کامل عاقل ته وسپاري مزاجه | يګانه ددوي دپاره داعلاجه |
| دنفس ددوي به ليري دغه خارکړي | نومرشدکامل طبيب حاذق به کارکړي |

(۱) وقت چه په سابق بيت کښي مثال په مرکب مذکورراته بيان کړي اوس حال دمرکب مذکورپه دغه وقت کښي راته بيانه وي اولاره دنجات ئي راته ښه يي نووايي .برجهدالخ .دايه تعلق وارتباط راغلومعني ته هغه داچه څه کوشش دخلاصون چه مرکب پکاراچولي دي دده په ډول هغه وده ته فائده نه رسوي بلکه ازغيان ښه ترې ټنګه وي نواول وده ته پکاروه چه طريقه کارئي پيژندلي واي اوځان ئي ددي مصيبته خلاص کړي واي والابيانويوعاقل بايددغه څوزان دده څخه ليري کړي چه دابيچاره ددي زحمته نجات پيداکړي همدارنګه هغه مرشدناقص چه دمحبت ددنياڅوزان اوازغيان ئي په تخرګ پوري نيولي اوسم دلاسه په جګيږي لول بايدپه خپله يوطريقه کاروسنجه وي لوځان ددي مصيبته خلاص کړي والابيانوبايديو مرشدکامل دلبيده را پيداکړي اوداڅوزانو غوزي ئي دتخرګه رلو باسي همدارنګه حال دناپوه طبيب دي ۱۲

(۲) دوم حال دمرکب مذکورپه دغه وقت کښي راته بيانه وي نووايي خرزبهرالخ .دايه تعلق وارتباط راغلومعني ته هغه داچه دغه مرکب نوپه دغه حال کښي لکي پرازغيانوټينګه جفتک جفتک غورځي نوسل ځادبدن خپل زخمي کړي اوداکاردي دپاره ددفع دازغيانودسوزه ودرده څخه کوي مګرداخووده ته فائده کوي بلکه ضرورسوي نوطريقه دخلاصون ئي ليري کيدل دازغيانوده وبس همدارنګه مرشدناقص چه پرنفساني امراضولو معنوي ازغيانوئي لکه محبت ددنيامثلاوزر غوره ولي اوټينګه کړي وي اوپه دغه ازغيانوئي خپل ځان سل ځايه زخمي وګرزه ولي وي وازالي ودفاع ته ئي هيڅ توجه نه کوي نې پيژني بلکه دخپل تزويروحيلوپه درشل کښي غورځيده اوپورته وکښته کيږي خوداوده ته مفيدنه تماميږي بلکه ضرورورته زياته وي نويګانه علاج دده دپاره دادي چه خپل ځان ومرشدکامل ته تسليم کړي چه هغه دده څخه دغه ازغيان ليري کړي همدغه رنګه حالت دناقابله طبيبانودي والسلام ۱۲

ابو الحفاظ :مولوي صالح محمدالارغستاني .

(۱) آن لکدکی دفع خاراوکند حاذقی بایدکه برمرکزتند

اوس حالت دمرکب داسي بيانيږي چه په نفعه يه عمل نه تماميږي

ولي دامرکب اختيار داسي روزګار کړي چه لغتي وترپکي نوخپل کارکړي

دي عمل ته څه فائده څه اهميته کله دفعه دخار کاندي داوضيته

بل ضررئي تاپه سترګودي ليدلی په پخوابيتوکښي تادي پيژندلی

نوبايدعاقل حاذق مرکزته ورسي چه په ورکه دعلت دي بهره ورسي

نوچه ليري دمرکبه سه داخارسي دامرکب به خودپه خوده برقرارسي

هم ناقص مرشدلري دي ته احتياجه چه دده دازغي وسي پره علاجه

(۲) آن حکيم خارچين استادبود دست مي زدجابجامي آزمود

مولٓناد تمثيلاتوفارغيږي اوس نوبيرته ومطلوب ته راستنيږي

واي حکيم الهي کامل طبيب وو هم خاوندد تجربي عاقل لبيب وو

هم استادهم مجرب دحکيمانو هم رهبرهم معالج دمريضانو

په احتياط ؤتجربه کوي علاجه په دقت ؤحوصله ګوري مزاجه

دي مرض تشخيصه وي په ښوپښتونو هم دنبض تخصيص کوي په ښوکتونو

خلص طبيب الهي وو ډيرحليمه آزموده وواحتياط کاره ووحکيمه

(۱) په دي بيت کښي حالت دمرکب پدي بيانه وي چه داغورځيده دده سره دسلوزخموپيښودلوهم وده ته په ازاله کښي دضرر ودردوسوزفائده نه رسوي بلکه کارپرعلت پکاردي نوپه سابق بيت کښي دفاع بلافائده اوضررموجوده بيان سوپدي بيت کښي نفي ددفاع سابقه اوښودنه ددفاع اصليه کوي نووايي آن لکدالخ .دايه وجهه دتعلق وارتباط ده راغلومعني ته هغه داچه داعمل دمرکب چه دی پښي دمځکي وهي اوپورته پورته غورځي دافع وبسنده ده لره دازغيانوددرده څخه نه دی بلکه دخلاصون لاره ئي داده چه يوحاذق دده څخه داازغيان هيسته کړي معقوله هم داده چه سري بايددمرض وددعلت ومرکزپيداکړي بيايه ازاله وکړي معلول به ورک معلل به خپله برقرارسي ، نولفظ دمرکزبه معني دځاي قرارلوجينتلواولفظ دتند مشتق دتين څخه دی معنايه پرشاؤخوادشئ ګرزيدل لوتوجه والتفات ورته کول نوحاصل داچه عاقل بايدپرمرکزواصل ګرزيدل وکړي لوتوجه والتفات ورته وکړي اصل مشکل په ده حل کيږي وبس .همدارنګه حال د مرشدناقص وطبيب ناقابل قياس کړه نوردي پرخداي پاک سپارم ۱۲

(۲) وقت چه مولٓناقدس سره دتمثيلاتوڅخه فارغ سونوبيرته مقصودته را وګرزيدي چه هغه نوتشخيص دمرض دمنځي په نبض لورنګ رنګ پښتوبياندي ورنووايي آن حکيم الخ . راغلومعني ته هغه داچه مولٓناقدس سره وايي چه هغه طبيب کامل چه دی علاج کونکي دامراضواواستادپه طب کښي ووځاي پرځاي يه لاس پرنبضونودمنځي ګرزاوه اوپلټنه وازمينه ئي کوله ،دصوفيه کراموپه ژبه هغه مرشدکامل چه محوه کونکي دامراضومعنويه وواواستادووځاي پرځايه لاس دفراست صحيحه پرنبضونو دمنځي دنفس ګرزاوه اوعزم ئي پرتشخيص دامراضومعنويه ووکاوه اواهتمام ئي په تربييه وارشادکښي کاوه والسلام ۱۲

ابوالحفاظ :مولوي صالح محمدالارغستاني .

## زان کنیزک برطریق راستان (۱) ‌‌ ‌ ‌ ‌ ‌ ‌ ‌ ‌ ‌ بازمی پرسید حال دوستان

اوس طبیب پر طریقه دراستانو ‌ ‌ ‌ ‌ کړي پوښتنه دمریضه ددوستانو

زه ؤته که په کارواچووفطرته ‌ ‌ ‌ ‌ په پښتونو کښي مضمردی لوي حکمته

اول داچه دمریض وحشت زائل سي ‌ ‌ ‌ ‌ ځکه رحم دطبیب ورته حاصل سي

نو الفت ئي دطبیب سره پیداسي ‌ ‌ ‌ ‌ مکمل به خپل حال ورته گویاسي

دوم داچه څوک په دوست پیژندل کیږي ‌ ‌ ‌ ‌ لامحاله همنشین ته کتل کیږي

همنشین بۀ دعطارتل وي خوشبویه ‌ ‌ ‌ ‌ همنشین دآهنگربه وي بدبویه

شک خونسته چه دوستان وي مجلسانه ‌ ‌ ‌ ‌ نه ناشناخته ووهمه بیگانه گانه

## باحکیم اوراز ها میگفت فاش (۲) ‌ ‌ ‌ ‌ ‌ ‌ ‌ ‌ ازمقام وخواجگان وشهرتاش

چه طبیب لره غایت مرحمت وو ‌ ‌ ‌ ‌ پردامنځه ئي نهایت شفقت وو

په حکمت ولطافت ئي وي خبري ‌ ‌ ‌ ‌ هم ترخوله ئي راایستي خوږي شکري

نوپدي خاطردي منځي په گفتاره ‌ ‌ ‌ ‌ وطبیب ته ته ورښکاره کړه خپل اسراره

هم وطن هم باداران ئي کړه بیانه ‌ ‌ ‌ ‌ هم ئي ښارهم ئي خپل کلی کړي عیانه

پلار رمانده دطبیب دخواسوالونه ‌ ‌ ‌ ‌ اولادواروه دمنځي جوابونه

نو معلوم چه حق پرمشرشفقت دی ‌ ‌ ‌ ‌ هم لازم پرکشرانوئي عزت دي

دامضمون رسول الله موږ ته ښودلی ‌ ‌ ‌ ‌ په باربارمو داستاذه اوریدلی

(۱) په سابق بیت کښي حکیم الهي کشف وتلاش دمرض په نبض کاوه اوس ئي کشف وتلاښ په پښتونو کوي نووایي ،زان کنیزک الخ ،دایه تعلق وارتباط راغلو ومعني ته هغه داچه مولٓناقدس سره وایي چه طبیب الهي ددغه منځي څخه پرطریقه د صادقانو اوپاکانو دهواوشهرت نفساني پوښتني دحال ددوستانو ځني کولي یوپدي خاطرچه په حال ددوستانو کشف دحال دسړي کیږي لکه یوروایت چه سوي چه (المرء علي دین خلیله فلینظر احدکم من یخالل ) بل پدي خاطرچه کوم وقت چه مریض لنواع دلطف ومرحمت دطبیب ووینی نودمریض وحشت پورته کیږي اومینه ومحبت ئي دطبیب سره پیداکیږي نوخپل حال مکمل ورته دلوایي خوپه دي مقام کښي لوي مطلوب دی په بعضي نسخ کښي پرځاي درلستان دلستان راغلي چه معني په حکایت ده دانسخه هم صحت لري لکه چه ښکاره ده دصوفیه کرامو په ژبه مرشد کامل منځه دنفس ترتحقیق لاندي راولي اوددوستانو حال ځني پوښتني بیاتي دازلي لاره سنجوي چه سالک په څه ډول ځني خلاصیږي والسلام ۱۲

(۲) په سابق بیت کښي حال پوښتل دطبیب بیان سوپه دي بیت کښي حال ویل دمریضي بیانه وي دایه تعلق وارتباط راغلو ومعني ته هغه داچه کوم وقت چه طبیب الهي په کمال لطافت وعنایت دمنځي مریضي څخه پوښتني شروع کړي نومنځي هم خپل احوال واسرارورده ته ښکاره اوبرملا ویله خپل داستوگنی ځایونه اوخپل باداران اوخپل ښاراوباشندگان دښاروقریه ئي ټول ورته بیان کړه لفظ دتاش په اصل کښي په معني دشریک دی نوددي بیته ماوتادازده کړه چه طبیب که ظاهري وي که باطني باید دمریضه لوسالکه څخه پوره پلټنه وکړي ځکه چه ډیرشیان دي چه دهغه سره علاج ظاهري ومعنوي تعلق لري اومریض وسالک هم باید خپل حال وطبیب ظاهري وروحاني ته مکمل بیان کړي پدغه خاطر ۱۲

ابو الحفاظ :مولوي صالح محمد الارغستاني .

**سوی قصه گفتنش میداشت گوش (۱) — سوی نبض و جستنش میداشت هوش**

که ته وايي وقـــت دمنځي چه گفتارو — په داغه وقـت دطبـيب نوځه کردارو
زه وام ده غـــوږ وونيولـــی پرگفتـــاره — دايه خوي دايه پيشـــه دايه کرداره
هم دنبـــــض وطرف ته يه نظروو — حـــرکت تي منتظره سربســـروو
چه طبـــيب وي بـــاکماله بـــاتميزه — خودپه غوربـــاندي گوري دی مريضه
هم ئي غوږوي وخبـــروته بـــيداره — هم ئـي هـوش خپل اچولـی وي پکـاره
هم په خوله بـــاندي کوي داســـي خبـــري — چه مريض ته وي خوږي هم ترشـــکري
نه ئي عجب نه خودبـــيني يه په مزاج کنبي — نه لويي نه يي زشتي وي په علاج کنبي
په دي بيت کنبي نولوي درس دی هرطبيب ته — په لونفعه تماميږي هرلبـــــيب ته

**تا که نبض (۲) از نام که گردد چهان — او بود مقصود جانش در جهان**

په دي بيت کنبي غرض دادی زمایاره — دسابـق عمل بـاعث بـه کړي اظهاره
طبيب وايي ماچه وه کي سابـق کاره — دابدي خاطرچه کشـــف کړم زه خاره
په سابـــق عمل بـــه لڅ کړمه دارمزه — چه په کم نامه په بنوررائحي دانبـــضه
چه پرهرنامه رگ راغلی په غورځنگه — حـال بـدل سـوهم تغيروخوړي رنگه
نوداغـه چادمريـض زړه تبنتـه ولـی — په کمند کنبي يه دعشق دی راوستلی
نومعلوم سوچه مرض دمنځي عشقه — هم داغه ئي دعلاج دی سرمشقـــه

(۱) وقت چه په سابق بيت کنبي حال ويل دمنځي بيان سواوس بيان دحال دطبيب ددغه بيانه سره کوي نووايي سوي قصه الخ . دايه تعلق وارتباط راغلومعني ته هغه داچه طبيب الهي وطرفته دقصي اووخبروته دمريض ئي پره غوږ نيولی وواووطرفته دنبض اوحرکت ته دده ئي کامل فکرخپل صرف کړي وودپاره ددي چه دمرض علت وسبب پيداکړي نوئي علاج وسي همدارنگه وهرطبيب ته پکارده چه خپل تول جدوجهدپه کارواچوي اودمريض دمرضی تشخيص وکړي اوعلت وسبب ئي معلوم کړي په اټکل وجزاف کارونه کړي همدارنگه هرطبـــيب ته پکارده چه دي په دفعه کنبي دهغه مريضي مراخله وکړي چه دي ئي دعلاج جوگه وي خواه داطبـــيب طبـــيب ظاهري وي که معنوي نومعلومه ســـوه چه دطبيب ناقابل اومرشد ناقـــص څخه پرهيزبکار اولازم دي والسلام ۱۲

(۲) پدي بـيت کنبي مو آنباعث دبيت سابق بيانه وي نووايي .تاکه نبـض الخ .دايه تعلق وارتبـاط راغلومعني تـه هغـه دا چه چابـه ويل چه دسابـق غوږ نيولواونبض سنجولو اودلاحقـه پوښتنوباعـث څه وو اوفائده وحـکمت پکښي څه شـی وونواوس دی وايي چه طبـيب چه سابـق وولاحـق عمل کاوه بـاعث دلوچه دی وگوري چه نبـض دمريض دچاد نامـه څخـه په بنوررائحي نوبـه معلوم سـي چه داغه څوک دمريـض په جهان کنبي مقصـوردي اودداغه ســره ئي تعلق اوعشـق قلبـي ســته اوداغه ئي د مريضي علت وسـبب دي نوبه ددغه علت چاره وعلاج وکړي نوبه دحکمت موافق کاروسي اوفائده به پرمرتبه سي .لفظ دجهان په مصراع اول کنبي په جيم فارسي باندي معنايه تحرک ده نوردي پرخداي پاک سپارم والسلام ۱۲

ابو الحفاظ :مولوي صالح محمد الارغستاني .
الراقم :سيدعبد الهادي الهاشمي .

(۱) وقت چه سابق بيت باعث دخپل سابق ووهمدارنگه باعث دلاحق هم دي لکه داچه پرلبيب باندي ښکاره ده نوپدي خاطر دابيت دسابق خپل سره مرتبط سوراغلو ومعني ته هغه داچه په سبب دپوښتني دطبيب دمنځي ځځه منځي دخپل دښاردوستانو حال وطبيب ته دشميرپه دول بيان کري پس ددغه ئي دبل ښارچه دادخپل ښاره ودغه ښارته راوستل کره سوي وه نوم ورته وا خيستي معني داچه دخپل حالاتو بيان ئي مکمل ورته کاوه سرداچه دطبيب الهي حکمت ولطافت ددي زره ځان ته جلب کري وواومنځي وده ته ديومشفق پلارپه نظرکاته نوځو دبه ئي حالات پره ورته ويل ۱۲

**دوستان شهر خود را بر شمرد**[۱] — **بعد ازان شهر دگر را نام برد**

پـه مابين کنبي مولنا باعث بيان کړي — اوس ئي بيرته دقصي کاروان روان کړي

واي دامنځه سوه لگيا په خپل گفتاره — چه له دي ځځه طبيب غوښتي ووداکاره

دخپل ښاردوسـتان ئي تـوله وويله — وطبـيب تي يک په يکه وشـميرله

چه دخپل ښارۇ، وطني رجـوع وکـره — نودبـل ښارپه نامه ئي شـروع وکره

وه لي داوه دوطنه ځخه بـــهره — ښارپرښاروه گرزيدلي دربـــه دره

نوبـه خوديادوي نوم دهغه ښاره — ځه مده چه کي نيولي ووقـــراره

خلص نودامنځي وويله خپل اسـراره — پدي ښارودغـه ښاروهغـه ښاره

**گفت چون بيرون شدي از شهر خويش**[۲] — **در کدامين شهر بودستي تو بيش**

چه دمنځي دخپل ښارپره سوبـيانه — هم په شميرئي ورته وښوول دوستانه

نوطبـيب دوم ځل وکره داپښتنه — وقـت چه ته سـوي راجلادخپل وطنه

بياپه کم ښارکښي ستاۇيره گذاره وه — دي وطن کښي دي نوکمه ننداره وه

چه طبـيب کوي پوښتني په دقـته — ماوتايه پيژندلي ووحـکمته

فائدي يه دپښتنونودي بسـياره — ماوتاواره زده کړي دي باربـاره

دحـکيم الهي دخولي گفتاره — دابـه کله بـي فائدي وي زماياره

چه يوحرف سي دحکيم دخولي بلنده — پره دفتردنصيحـت دي هم دپنده

(۲) وقـت چه منځه دخپل ښارودوستانو دبيانه فارغه سـوه نوطبـيب الهـي داپوښتنه ځنـي وکره نوسابق بيت بيان دحـال دمنځي دمنځي دخـولوولوس طلب وپو ښتنه دطبـيب دخولاد منځي ځځه دبـل حـال دمنځي دي پدي خاطـر دابيت دسابق خپل سره مرتبط سـو راغلو ومعني ته هغه داچه وويل طبيب الهي ومنځي ته چه هغه وقـت چه ته دخپله ښاره دبـاندي رلوه وتي نوپه کوم ښارکښي سـتاۇيره گذاره لواقـامت راسـتو گه وه ياد امعنـي چه تـه دي ښارته راتلي سـتا په کوم ښارکښي اقـامت وگذاره وه ددي معنـا ووينا. پردي ده چه نسخي مختلفي راغلي دي يـو په با. عربيه چه په معني دزائده برېله په بـا. فارسـيه چه په معني دقبل وپيش ده .اوس دي خبري ته بايدځيرسوچه دامکالمه په ژبه دصوفيه کراموپه مابين کښي دمرشدکامل اودنفس دجاريي ده مرشدکامل دنفسه دده ددوستانو اودوطنه دده دخواهشاتوپوښتني کوي دي جوابونه ورکوي دپاره ددي چه دنفس ميل معلوم کري چه وځه شئ ته دي بيائي معالجه وکري دغه بيان بايدستاپه نظرکښي هرځاي وي والسلام ۱۲

ابو الحفاظ :مولوي صالح محمد الارغستاني .

| | |
|---|---|
| نام[۱] شهري بردزان هم درگذشت | رنگ وروونبض اودیگرنگشت |
| چه طبیب دمنځي وکړه له پوښتنه | چه دي پس تروطن چیري استوګنه |
| دي دښارنوم کې بیان په ژبه باندي | پرداغه باندي سوه تیره مخ پروراندي |
| نه ئې رنګ دپخواني حاله بدل سو | نه په مخ کي یه ښکاره داسي بل چل سو |
| نه ئې نبض تغیروخوري دحاله | لکه ووچه بیاهم ووداسي نورماله |
| نو حکیم الهي په فراسته | هم په خپله تجربه ووطبابته |
| داتصویب کړه چه دي ښارکښي مشکل نسته | څه چه زه غوارم دي ځاي کښي بالکل نسته |
| خواجگان[۲] وشهرها رایک بیکه | بازگفت از جای واز نان ونمک |
| اوس حکیم الهي کوي پرستانه | پردامنځه عرضوي خپل باداراني |
| بیانبارونه عرضه وي پردغه منځه | جواب ونه ورکوي هم دغه منځه |
| وایي څوک دي باداران کم دي ووښاره | منځه سمدستي جواب کړي وراظهاره |
| بیاوي څنګه دي جاي ګیرڅه ئې خورک وو | په دي کورکښي نوستاڅه نان ونمک وو |
| پس ترسوال به في الحال منځه ګویاسوه | سمدستي به په جواب باندي لګیاسوه |
| په دقت باندي طبیب کول سوالونه | په دفعت منځي ویل داجوابونه |
| طبیب وه لي په دي سوال جواب ویناکړي | حکمت داووچه معشوق ئې پیداکړي |

(۱) وقت چه په سابق بیت کښي طبیب دمنځي څخه پس ترخپله ښاره دبل استوګه ني ښارپوښتنه وکړه په انتظاردتغیردنبض اوس په دي بیت کښي جواب دمنځي اونه تغیردنبض بیانه وي نووایي نام شهري الخ ،دایه تعلق وارتباط راغلومعني ته هغه داچه وقت چه طبیب دمنځي څخه داستوګني ښارپوښتنه وکړه نومنځي دهغه ښارنوم ورته واخیستي اوپه عادي ډول ئې خبر ونه دوام ورکړي ني رنګ ني مخ ني نبض تغیروخوري بل الآن کماکان دصوفیه کرامو په ژبه وقت چه مرشدکامل دنفس څخه دپخوانیو استوګنځیوپوښتني کولي څه تغیرنه پکښي راتلي وقت چه دطبیعت انساني دښارپوښتنه ځني وکړه چه په هغه کښي زرگردشهواتو متمکن وونو ئې حال متغیرسو دسببه دانفراددده دهوا څخه دبشریت نو ئې مرشدکامل مرض کشف کړي تفصیل بې بیاهم راسي انشاء الله ۱۲

(۲) وقت چه منځي په سابق بیت کښي دهغه ښارجواب ورکړي چه ددي داستوګني ځاي وو پس ترخپله ښاره اوس نو طبیب الهي ددي څخه دبادارانو اویکه یکه هغه ښاروچه ددي تبادله داستوګني پکښي راغلي وي همدارنګه دځاي وځایګیردنان ونمک پوښتني کوي نووایي خواجګان الخ ،دایه تعلق وارتباط راغلومعني ته هغه داچه طبیب الهي پردغه منځه باندي باداران اوښارونه داقامت ددي ابځایونه دګذاري ددي همدارنګه نان ونمک یعني ملګري ژوندګي شریکه خلق ددي یک بیکه عرض کړه دپاره ددي چه ددي منځي معشوق پیداکړي ،خودادمره دقت په دي خاطروو چه حکیم الهي ته دامارات وواسبابو څخه په ظني ډول داکشف سوي وه چه مرض دمنځي دسوداوصفرا څخه نه دي بلکه بیماري ئې دزړه ده نواوس دادقت کوي چه ظن په یقین بدل کړي ۱۲

ابوالحفاظ :مولوي صالح محمدالارغستاني .
الراقم :سیدمولوي عبدالهادي القریشي .

(١) وقت چه په سابق بيت کښي دقيقي پوښتني دتعين دمرض دپاره بيان سوي په دي بيت کښي دقيق جوابونه سره دنه تعين دمرض بيانه وي نوواېي شهرشهرالخ ،دايه تعلق وارتباط راغلومعني ته هغه داچه منځي په مقابل کښي دعرضونوپښتنو دحکيم الهي ښارپه ښارکورپه کورقصه وبيان وکړي خوبياهم دمنځي نه رګ مخالف حرکت کړي اونه ئي مخ ژړګرزيدلی نو معلوم سوچه ددي ددغوځايوسره غرض وتعلق نه وونه ددي ناحيي وديته مشکل جوړوو ،پدي توله مکالمه کښي بايدموږ دريزد دصوفيه کراموپه نظرکښي ولروځاي ځاي په بيان ځاي ځاي په ترک للاعتماد ١٢

| | |
|---|---|
| شهرشهروخانه خانه قصه کرد [1] | نی رگش جنبید نی رخ گشت زرد |
| چه طبيب وکړي دمنځي پلټني | هم په ښارهم په بادارنوري پښتني |
| منځي خپل حال ښارپه ښارورته بيان کړي | کورپه کورپه کاروبارورته عيان کړي |
| خوطبيب الهي ځومره بيداروو | حرکت ته هم دنبض په انتظاروو |
| خوسره ددي کمالي انتظاره | نبض باقي وو پرخپل حال باندي قراره |
| ني رنګ ژړسونه بدل سودخپل حاله | دپخواپه شان هم پاته وونورماله |
| نوحکيم پدي سرپوه سوکل بکله | چه پدي ښارکښي هم نسته هيڅ مشکله |
| نوبه خودکوي دبل وطن پوښتنه | چه دمنځي دمرض سي پلټنه |
| نبض او برحال خود بدلی گزند [2] | تاپرسيداز سمرقند چوقند |
| په سابق سوال وجواب نه سوتعينه | هم مظنون دطبيب هيڅ نه سويقينه |
| په اسباب واماراتودطب فنه | وحکيم ته وپخښيلي داسي ظنه |
| چه دمنځي رنځ دزړه تن بيمارنه دی | دظاهربدن علاج هيڅ په کارنه دی |
| خوبياهم داوومظنون يقين پري نه وو | داراجح طرف هم دلته تعين نه وو |
| نوطبيب غوښته دنبض په دليله | چه خپل ظن کړي په يقين باندي تبديله |
| خوبياهم نبض تراوسه سرترپايه | پرعادي حالت ولاړووځاي پرځايه |
| ځوچه ذکرسوخوږنوم دسمرقنده | ظن يقين سوتفصيل پس دي ارجمنده |

(٢) وقت چه په سابق بيتونوکښي مکرر مکررنه تبدل دنبض بيان سواوس غايه د نه تبدل بيانه وي نو واېي نبض اوالخ ،دايه تعلق وارتباط راغلو ومعني ته هغه داچه نبض دمنځي سره د دومره سوالووجوابو پرخپل عادي حال باقي پاته ووځه تغيرونه خوړي ځوچه دطبيب دلوري لـه دي ځخه دسمرقندشيرين باز خواست وسودالته ئي نوپه نبض کښي تغير رالي لکه په ورروسته متصل بيت کښي بي بيان راته وکړي هغه ځه چه په کتابودتاريخ دبلدانوپه باره کښي دلفظ دسمرقندراغلی هغه داچه دالفظ معرب دشمركندځخه دي چه مركب دشمرووكندځخه دی نولفظ دشمرنوم دجاريي داسكندروواجاريه مريضه سوه خوددي دجوړښت دپاره اطباؤتبديل هوافيصله وکړه خوهوادغه مکان ومقام دسمرقندددي دمزاج سره موافقه وکړه اوداځګه جوړه سوه نوا سکندرپردغه ځاي ښاربناکړي اوپنامه دمنځي چه شمروومسمي کړي اوکندپه معني دقريي نومعنايه په عربي قريه شمروقت چه معرب سونوسمرقندسوو السلام ١٢

ابو الحفاظ :مولوي صالح محمدالارغستاني .

(۱) وقت چه حال دنبض مخ کښي ترذکر دسمرقند بیان کړي اوس حال دنبض پس ترذکر دسمرقند بیانه وي نووايي نبض جست الخ ،دايه تعلق ولرتباط راغلومعني ته هغه داچه کوم وقت چه نوم دسمرقند دمنځي پرغوږ ولګیدي نوسمدستي ني نبض په غورځنګ راغلی دپخواځخه ني مخالف حرکت شروع کړي اومخ ني سوروو ژړوګرځیدي په دي خاطرچه دسمرقندي زرګراومعشوق ځخه جلاسوي وه نوکاف په ثاني مصراع کښي تعلیلیه دي ازرګرموصوف اوسمرقندني صفت یعني لزرګرسمرقندي فردشد یعني جداشد راغلودي خبره ته چه سرخي دمخ په دي مقام کښي هیڅ مناسبت نلري لکه داچه ښکاره ده نولهذا په اکثرنسخوکښي دلسي لیکل سوي روي سرخش زردشد .شک نسته چه دانسخه موافقه ده دسابق مصراع سره چه ،نی رګش جنبید نی رخ ګشت زرد ،بله داچه مولناقدس سره خودمنځي مریضي په سابق کښي په دلسي دول بیان کړه ،آن کنیزک ازمرض چون موي شد . نوسرخي دمخ به ودیته دکومي خواوي نوښه به داوي چه پردي نسخه اعتماد وکړو نوردي پر خداي پاک سپارم والسلام ۱۲

(۲) وقت چه په سابق بیت کښي حال دمنځي په نبض ورنګ بیان کړي اوس حال ددي په کوګل وسترګو بیانه وي نووايي آه سردي الخ ،دايه تعلق وارتباط راغلو

| نبض جست وروی سرخ زرد شد [1] | کز سمرقندی زرگر فرد شد |
|---|---|
| چه طبیب راوړي پرخوله داسمرقنده | چه دانوم منځي ته خوږ وولکه قنده |
| نودستي نبض سوپورته په غورځنګه | هم دمنځي پرمخ راغلي ژړی رنګه |
| سبب داچه دادعشق په واویلاوه | دزرګرسمرقندي ځخه جلاوه |
| دعاشق رنګ به نووه لي نه ژړیږي | چه وطن یه دمعشوق ورته یادیږي |
| وعاشق ته چه وریادوطن دیارسي | نوبه نبض دده کله برقرارسي |
| چه دعشق په ازغي زړه دچاپرهارسي | نوبه رګ دده له کومي خواهوښیارسي |
| چه دعشق لمبي پرزړه باندي تازه وي | هم به رنګ هم به بدن تول خازه وي |
| چه باچادکل بدن په دي زاوال وي | نوبه کله رنګ ونبض پرخپل منوال وي |

| آه سردی برکشید آن ماه روی [2] | آب از چشمش روان شد همچو جوی |
|---|---|
| اوریدودسمرقند په منځي داکړه | دکوګله ئي سره ساه رابالاکړه |
| بنائسته منځي ته داحالت پیښیږي | چه ترسترګو یه پرپرانښکي تویېږي |
| دباران په شان پریماني یه وي اښکي | دولي په شان رواني یه وي اښکي |
| چه دزړه تونبس ونزلي ته ورجګیږي | نوبه خودباران داوښکوځن جوړیږي |
| عاشق هیڅ ملامت نه دی زماوروره | خوپرزړه باندي یه بل دمني اوره |
| نام وننګ وهیڅ عاشق ته شعارنه دی | بي معشوقه یه بل هیڅ شي پکارنه دی |

معني ته هغه داچه دي منځي پردي بالاچه دزرګري سمرقندي دجدايي په خاطرئي نبض تغیروکړي اورنګ ئي ژړسو خوسره سایه دکوګله هم راوه ایستله اوسمدستي ئي اوښکي ترسترګوراوراني سوي واله غوندي ځني بهیدي ځکه چه دمهجورعاشق زړه دمعشوق په ذکرمتاثرګرزي اوداشتیاق اورئي پرزړه وربلوي تونبونه ئي سرته جګیږي خودبه داښکوباران نازله وي ۱۲

ابو الحفاظ :مولوي صالح محمد الارغستاني .

گفت بازرگانم آنجا آورید[1] خواجهٔ زرگردران شهرم خرید

ترسري ساه ووژړاوروسته لگیاسوه دغه منځه نوپه دي تقریرگویاسوه
سوداگروسمرقند ته راوسنمه په داغه ښارکښي زرگرزه رانیومه
خواجه وبالي زرگرمنځي یارانو وه لي دي خوسردار دزرگرانو
یایه منځه دخپل ځان بولي بساداره دغه وجهه خوښکاره ده زمایاره
یایه دي خاطرخواجه منځي بللی چه دزره رگ ئي په ده پوري ترلی
وه لي دادده په عشق وه گرفتاره معشوق څنگه دعاشق نه وي بداره
دسعدي څخه تاداگفت ښه اوریدلی چه محمودیه دایازغلام بللی
که عاشق څومره عالي وي لورئي شانه ومعشوق ته به تالي وي هرزمانه

دربرخودداشت سه ماه وفروخت[2] چون بگفت این آتش غم برفروخت

وقت چه خریددزرگرځان لره بیان کړی اوس ئي وقت داقامت دالته عیان کړي
واي پدي ښارکښي زه لړه مده برحاله په بغل کښي دزرگرومه خوشحاله
پس تردرومیاشتویه خرڅه سمدستي کرم دخوښاریه مالوفه ښاره ئي نیستي کرم
ددي گفته سري بل سودعشق اوره دغموبساندي هجوم سولوردلوره
په یقین باندي مظنون مرض ښکاره سو وطبیب الهي ته ننداره سو
په دي بیت کښي یونسخه بله راغلی چه مده ئي په شش ماه باندي تاکلي

(۱) وقت چه په سابق کښي دمنځي حال په کوگل وسترگوونبض وغیره بیان کړي اوس حال ددي ددي په ژبه بیانه وي نووايي گفت الخ ،دایه تعلق وارتباط راغلومعني ته هغه داچه منځي وویل چه پس ترنوروښاروزه سوداگرودسمرقند ښارته راوستم په دغه ښارکښي زرگرانیولم دخواجه نوم ئي پرزرگریه هغه خاطرکښیښوه چه تادموږه په اشعاروکښي ولوریده لوس به په دي مبحث کښي دصوفیه کراموپه ژبه داخبره زده کړوچه مراددسمرقنده طبیعت انساني دی لو مراددزرگره هوي دبشریت ده اومراددمنځي څخه نفس دی، علاقه دهریوه ښکاره ده نومعني داچه کوم چه طبیب الهي لومرشد کامل دنفس سره دده پرلوطلنوو بسلدلنوتکلم وکړي د پلره دلستخراج دمرض دنفس نوروقت چه و ښلدنه دطبیعت انساني رلورسیدي چه هغه محل وومتمکن دهوي دي نونبض دمحبت دنفس حمرکت وکړي لورنگ ئي بدل سوځکه چه دی دلنه دهوي څخه دبشریت جدا گرزیدلی نوموږچه والنجام ته دقصي خیر سونویه دلوپیژه نوچه نفس څویه محبت کښي دهوي وي دمرض معنوي په خلاص نه سي لونه به دسلطانه سره دروح مقلرن سي نوردي پرخداي پاک سپارم والسلام ۱۲

(۲) وقت چه په سابق بیت مجردرانیول دزرگربیان کړي پدي بیت کښي مده داقامت ددي دزرگرسره بیانه وي نووايي دربرخودالخ ،دایه تعلق وارتباط راغلو معني داچه منځه وايي چه کوم وقت چه زه زرگررانیوم نودري په بعضي نسخوکښي شپږ میاشتي دده په بغل کښي وم لوپس تردغه مدي ئي خرڅه کړم خودمنځي ددي گفته سره سم اوردغم ولگیده اوهغه حالات پرعارض سوه چه تاثي نمونه ولوریده لوهغه حالات چه دشانه سره دعاشق لازم وي ۱۲

ابو الحفاظ :مولوي صالح محمد الارغستاني .
الراقم : سید عبدالهادي القریشي .

(۱) وقت چه لوېده مکالمه په مابين کښې دطرفينو تيره سوه اوس نتيجه وثمره دهغې مکالمي بيانه وي وايي چون زرنجورالخ ،په بل عبادت وقت چه فارغ سوله تفتيش څخه نوئي شروع وکړه په ماهو الغرض من التفتيش دايه تعلق وارتباط راغلو معني ته هغه داچه هغه وقت چه حکيم الهي پس ترديره کوششه اومتبادله مکالمو رنځ درنځور پيدا کړي لواصل ووعلت دهغه دردوبلا يه دريافت کړي چه هغه نومريضي دمنځي دعشق په خاطر وه نوئي گفت الخ ،چه هغه نوآينده بيت دی ،حاصل داچه دتيرسووسوالواوجوابواولوړدومکالموڅخه فقط

**چون زرنجوراين حکيم اين راز يافت — اصل آن درد و بلا را باز يافت**

پس ترديرتپ وتلاښ مرض پيدا سو
وحکيم الهي ته هويدا سو

چه مظنون ووهغه اوس ده ته يقين سو
چه مجمل ووهغه اوس ده ته تعين سو

چه کوشش کوي مقصود به نوخود مومي
چه طلب کوي مطلوب ته به خود رومي

داعجيب غريب کتل دطبيب يارهٖ
دادقيق انيق ويل دطبيب يارهٖ

ماوناته دعبرت بسته دفتر دی
ماوناته دحکمت بسته مصدر دي

زملوستاکوشش په شام وپه صباکښې
هم په درس وپه تدريس هم په فتوي کښې

لازمي دی مسخره نه ده زماورورهٖ
په سطحي نظرهيڅ وقت مه ورته گورهٖ

**گفت کوئی اوکدام ست وگذر — او سرپل گفت وکوئی غاتفر**

چه طبيب الهي په لوي حکمته
مشخص کړي هم مرض هم ئي علته

مرض عشق علت زرگرسوپيژندلی
دغه نوم طبيب دمنځي اوريدلی

اوس طبيب کړي پلټنه دزرگرهٖ
چيري کورومحله چيري گذرهٖ

منځه وايي په جواب کښې دطبيبه
ورته بنه يي محله دخپل حبيبه

وايي گذرئي سرد پله محله داده
په نامه دغاتفردامسماده

يا سرپل دسمرقند يوه توته ده
غاتفرپه دغه ځاي کښې يو کوڅه ده

داخبره سينه لويقين سوه چه مرض دمنځي عشق پرزرگرپلندي دی دا لاوچته نه لوي نه ده چه زرگرچيري لوپه کم ښارومحله کښې دی نوپه دي خاطرپه پس کښې تردي بيت دهغه پوښتنه کوي ځکه چه په علاج کښې دزرگر وپيدا ېښت نه هم ضرورة ستهٖ ۱۲

(۲) وقت چه په سابق کښې رنځ درنځوردزرگردناصي دريافت سولوس دزرگرددريافت پلټنه کوي دپلره ددي چه دعلاج پره زمينه برابره سي نووايي گفت الخ راغلو معني ته هغه داچه حکيم الهي پس تر پيدا ښت دمريضي دمنځي څخه پوښتنه وکړه چه د هغه زرگرچه ته مينه وعشق ورسره لري کوڅه ومحله ئي چيري لولاره درفت وامدئي چيري ده نومنځي په جواب کښې پرطريقه دلف ونشرغيرمرتب ورته وويل چه راه گذرئي سرد پله وواوکوڅه ئي غاتفروه چاويلي چه سرپل نوم دښار دی په ترکستان کښې څوک وايي دايو محله دمحلاتوڅخه دسمرقندوه مگروقت چه ومعني ته ذگذرنظروکړونوبه اولي معني ته ترجيح ورکړهٖ ۱۲

ابو الحفاظ :مولوي صالح محمد الارغستاني.

(١) وقت چه دسابق شخه تعين مكمل حاصل سونواوس طبيب الهي ومنځي ته درفع دمرض اطمنان ورکوي نووايي گفت انگه الخ ،دايه تعلق وارتباط راغلومعني ته هغه داچه حکيم الهي پس ترښووني دمحلي دزړ گروويل چه ته نواوس دعذابه دمرض خلاصه سوي يعني وقت چه مرض تشخيص سواوعلت ئي پيداسونو ئي دعلاج زمينه مکمله برابرسوه نودجهته دترتب دمسبباتوپراسبابوعادة وايم چه ته نودعذابه درنځ خلاصه سوي ،معني دبيت دصوفيه کراموپه ژبه هغه وقت چه مرشدكامل ونفس ته دده تعلقات واحدابعدواحدذكر کړه اومبل دده ئي وخواهشاتوچه هغه يومعنوي مهلک مرض دي په پوره اومکمله توگه تشخيص کړه اوترعلاج لاندي ئي ونيوي نودغه مرشدباصواب ودغه نفس ته وويل چه اوس نودعذابه د خواهشاتوخلاص سوي دمطمئنه په نامه به ياديږي اود سلطانه سره دروح به مقارن ئي ١٢

(٢) وقت چه په سابق بيت كښي مجرد اطمنان دخلاصيت بيان کړي پدي بيت كښي چابكي اودول دخلاصيت بيانه وي

| آن کنیزک را که رستی از عذاب | گفت آنگه آن حکیم باصواب (١) |
|---|---|
| ودامنځه ته وايي داسي گفتاره | اوس شفيق حكيم ولي دكردگاره |
| ددي رنځه به سي خلاصه ته بالكله | ستامرض ماته معلوم سوكل به كله |
| دزړ گردخواوتاته ووتاكلي | څه عذاب چه ستاپه برخه وراغلي |
| داخبره درته وايم په اخلاصه | اوس به ورك سي داعذاب ته به سي خلاصه |
| بيله غمه خوش مزه گرزه برحاله | مطمئنه زندگي كوه خوشحاله |
| ومريض ته ئي په داډول گفتاروي | دطبيب حقاني داسي كرداروي |
| درعلاجت سحر ها خواهم نمود | چونکه دانستم که رنجت چیست زود (٢) |
| دمريضي منځي داسي تسلي كري | اوس په ښه لهجه ويناد غه ولي كري |
| هم وماته ښه معلوم سوتاريه تاره | واي ماوپيژندي ستامرض بيماره |
| هم به زه كوم تركيزستاپرمزاجه | نوبه زه ژرسم لگياستاپه علاجه |
| زماپه كاربه حقيقت هم ننداره سي | په علاج كښي به دقت درته ښكاره سي |
| په حكمت به دتاليري سي عذابه | نوته مه كوه تشويش هيڅ پدي بابه |
| نوبه خودصحت مومي مريض اسانه | چه طبيب داسي شفيق وي مهربانه |

نووايي چونكه الخ ،دايه تعلق وارتباط راغلومعني ته هغه داچه طبيب الهي ومنځي ته رويل چه وقت چه زه پوه سوم چه ستامرض څه دي نوژرترژره به ستاپه علاج كښي دسحرغوندي دقت په كارواچه وم اودمرض علاج به دي سمدستي وكرم نوزمونږ دتقريره داتازده كره چه لفظ دزودپه مصراع اوله كښي متعلق ترمصراع ثاني پوري دي نوردي پرخداي پاك سپارم والسلام ١٢

ابوالحفاظ :مولوي صالح محمد الارغستاني.

| | |
|---|---|
| **شادباش[1] وفارغ وايمن كه من** | **آن كنم باتو كه باران باچمن** |
| چه طبيب په مرض پوه سوسربسره | هم وعده ئي دعلاج كړه زابهره |
| نومنځي تـه داوايـي زمالالـه | چه خوشحاله اوسه مه اوسه ملاله |
| سه فارغه بيغمي دځان پيشه كړه | داخوره خبـره زمادخواته زده كړه |
| زه بـه ستادصحت پره كوم پالنه | لكه ښه بـاران چه اوري پرچمنه |
| خوشحالي وسوكالي دي سوه په برخه | شادماني وكامراني دي سوه په برخه |
| نوبـه ولي نيكبـخت نه وي دامزاجه | چه طبـيب الهي يه كړي علاجه |
| بـخت ختلى بـه پرغرودهغه چاوي | چه طبـيب الهي دده پرخواوي |
| **من غم[2] تو ميخورم تو غم مخور** | **برتو من مشفق ترم از صد پدر** |
| ياطبـيب الهي داسـي فرمايي | داډ گرنـه كـښي ومنځي تـه داوايـي |
| وايي ته غم مكوه زه ستاغمخواريم | هم په طب هم په حكمت زه برخورداريم |
| مطمئنه اوسـه مه اوسـه پريشـانه | زه پرتايم ترسـل پلاره مهربـانه |
| الهي طبيب هميش شفيق وي | دبـي وزلوبـي وزلانوتل رفيق وي |
| په اخلاقوبرجستـه هم خيرالناس وي | په اعمالوښائسـتـه ينفع الناس وي |
| خدايه ته موږ ددي خلقوپيروان كړي | هم ددوي دمدرسـي موشاگردان كړي |

(١) پدي بيت سره تائيدو تصديق اوكامل اطمنان دهغه وعدي دى چه په سابق بيت كښي ئي كړي وه نوپدي خاطرني تناسب وارتباط په مابين كښي دبيتينوپيدا سو، راغلومعني ته هغه داچه حكيم الهي ومنځي ته د كمال اطمنان دپاره وويل چه خوشحاله اوفارغه دتفكره اوبيغمه دعاقبته اوسه پدي خاطرچه زه ستاسره هغه څه كوم چه باران ئي دوښوسره كوي باران خووښوته نماؤتازه گي وركوي همدارنگه به زه وتاته صحت وخوشحالي دربه برخه كوم نوكلمه دكاف په كه من كښي تعليليه مربوط ترمصراع ثاني پوري دى. دصوفيه كرامو په ژبه چه مرشد كامل ونفس ته پس ترلستمال دده په واسطة دروح وويل چه مطمئنة اوسه زه به ستاڅخه ازاله دمحبت دماسوي الله وكړم ١٢

(٢) لكه په سابق بيت كښي اطمنان دمنځي دپاره وركړل سوپدي بيت كښي هم منظور كامل ډاډودي دپاره دي ته پوهيږي چه مقام مقتضي دكامل اطمنان دحكمت په منظوردي نوته ويني چه حكيم الهي دامضمون په يوه لهجه پس تربلي لهجي ذكركوي دتائيد وتاكيدپاره لوس نوگمان نه كوم چه تـه دي په تعلق وارتبـاط شك ئي راغلو معني ته هغه داچه حكيم الهي ومنځي تـه دپاره داطمنان لوكامل ډاډپـل ځل خطاب كوي اوورته وايي چه زه ستاغم خورم ته هيڅ غم وتشويش مكوه ځكه چه زه پرتاترسل پلاره مهربانه اومشفق يم په يوروايت كښي راغلي چه ( الا ب من علمک ) اوشک نسته چه اب معنوي باعث دحيات دروح دى چه هغه اصل دبدن دي نوداحق ده چه مرشد كامل اوطبيب الهي اومربي دروح ددېروپلرو ونو حيثيت لري نوصدد تعين درتبي دپاره نه دى ١٢

ابو الحفاظ :مولوي صالح محمد الارغستاني .

(۱) وقت چه طبيب الهي سر کشف کړي لوېدي باره کېښي ومنځي ته وعدي ور کړي نو لوس طبيب الهي ومنځي ته دالمر کوي چه دلماجري سر دي پټ وساتل سي افشاء دي ونه سي نو وايي هان وهان الخ،دايه تعلق ولرتباط راغلو ومعني ته هغه داچه حکيم الهي ومنځي ته دلسي امري خطاب کوي چه آگاه لوسه ياته وساته ته وساته دغه رازچه زملوستا په مابين کېښي دي وهيچاته ئي مه وايه حتي که باچاهم ستاځخه ډيره مطالبه وکړي ځکه چه په پوټيدلو کېښي دسر ډيري فائدي دي چه مولنا قدس سره بي په پس بېټونو کېښي راته بيان کړي خلص مطلب دطبيب الهي داچه دلماجري سر زملوستادي شائع نه سي ترملوتادي ودريم ته تيرنه سي په يوروايت کېښي راغلي چه کل سرجاوز الاثنين شاع ۱۲

| | |
|---|---|
| ^(۱)^ هان وهان اين راز را با کس مگو | گر چه از تو شه کند بس جست جو |

چه طبيب منځي ته وښودي خپل ځانه
اوس طبيب کوي پر منځه داتګکاره
چه داسروراز مه وايه وبل چاته
حتي بالکل يه مه وايه وبل چاته
بايد داسر افشانه سي لوړدلوره
هم دلرازشندلي نه سي کورپه کوره
داطبيب وه لي کوي دومره ذقته
ځکه داطبيب خاونده وودحکمته
حکمت دادي چه سرپټ وي افشانه وي
وهرچاته برملا وورسوانه وي
مولنا بي فائدي راته بيان کړي
په دليل وپه تمثيل يي ښه روښان کړي

| | |
|---|---|
| ^(۲)^ تا تواني پيش کس مکشاي راز | بر کسي اين در مکن زنهار باز |

طبيب بيا خپل مخاطب ته نصيحت کړي
پټکني ته داسراروئي دعوت کړي
چه ستاتوان وي وهرچاته حال مه وايه
دغه زماوستاويلي قال مه وايه
دروازه دسرپر سربانـدي کره بنده
دازمادلوري وبوله يوبنده
زه پر تابانـدي کوم خپل تمام وسه
چه چدي سرخبرنه سي کس ناکسه
وه لي داکار ،رده وي اهل خبره ته
هم داکارنه قبلوي اهل حکمته
دحکمته برخلاف چه وي يوکاره
دهغه پرخوله راورنگ نه دي پکاره

(۲) دوم لمريه پوتيدلو دسر دي دمبالغي ديپاره چه مقلم ئي اقتضاکوي دايه تعلق ولرتباط راغلو ومعني ته هغه داچه طبيب الهي دوم ځل ومنځي تـه خطاب ولمريه پوتيذلو دسر کوي اودلسي ورته وايي چه څومره ستاتوان وي په ورلندي دهيڅ سړي خپل سرمه لڅه وه لومي افشاکوه اوپرهيڅ سړي دغه دروازه دخپل سرخامخامه خلاصه وه حکيم الهي دادومره تاکيدپدي خاطر کوي چه فوائددپوتيدودسرنهايتي ډيري دي چه يوشمه يي مولنا قدس سره په پس بيتونو کېښي راته بيان کړي نو لهذا طبيب الهي پردي مسئله زيات ترکيز کوي لومولنا قدس سره په ادله ولوامثله تفصيل ووضاحت ور کوي نوددي مضمونه ماوتاته دامعلومه سوه چه هرهغه شئ چه پرډيروفوائدومشتمل وي اهتمام ورته پکاردي وروسته دلوايم چه دصوفيه کراموژبه پيادولره موږ ئي ډيرځله دصفحي دتنگي په خاطر پريږدو ۱۲

ابو الحفاظ :مولوي صالح محمد الارغستاني۔

(۱) وقت چه مولنا قدس سره دطبيب الهي دګفت وګو په فارغه سو نوئي شروع په تشريح دده دکلام وکړه چه په تائيد و دليل وو تمثيل بلندي روښانه وګرزي نووايي چونکه الخ ،دايه تعلق وارتباط راغلو ومعني ته هغه داچه وقت چه ستادزړه اسرار ستا په زړه کښي پټ وساتل سي نو به ستادزړه مراد ژر تر ژره حاصل وګرزي لکه داچه دآينده حديث مفهوم دي نوپدي خاطر احرارو رحمهم الله سر ساتل دخپل ځان پيشه وخوي ګرزه ولي وه لذا قالو ،(قلوب الاحرار قبور الاسرار) يعني لکه اخراج چه دمدفون دقبره څخه ښه نه دي همدارنګه اخراج د

| | |
|---|---|
| چونکه[1] اسرارت نهان در دل بود | آن مرادت زودتر حاصل بود |
| مولنا وس ملوتاته ښه وغيږي | په دليل وپه تمثيل راته ګډيږي |
| دطبيب دوصيت پره کوي تشريحه | په دليل وپه تمثيل کوي توضيحه |
| وايي هر څوک که سر وساتي پنهانه | عاقبت بـي ګټه ده ته وي پريمانه |
| اول داچه څوک سر وساتي په ځان کښي | هغه مراد به يي سي حاصل په لږ زمان کښي |
| دوم داچه خپل مقصد بـي وي پلاسه | دغلطو تبصرو به وي دی خلاصه |
| دريم داکه وناهلو ته اظهار سـي | په بدلو ترحمو بـي ګنهګار سـي |
| حاصل دا دسر ساتل دی مهم کاره | افشا والی ئي خالي نه دی دخاره |
| ګفت پيغمبر[2] که هر که سر نهفت | زود ګردد با مراد خويش جفت |
| مولنا وايي دليل پر خپل مرامه | په حديث زموږ دنبي عليه السلامه |
| ولي ويلی پيغمبر دی داکلامه | چه څوک وساتي خپل سر وخپل مرامه |
| نو به ژر سي بريالی مراد بـي حاصل سي | څه چه دی غواړي هغه ته به واصل سي |
| سر په زړه کښي وساتي خاموش دګفت سي | ژر تر ژره به دمراده سره جفت سي |
| دهر څه که درسول قول وتلی | پرداتو کوتورو ستر ګو مو منلی |
| ملوتاته تجربه هم ده حاصله | چه په پټه کښي دسر نفعه کامله |

ماخفي في القلب ښه نه دي نو معلومه سوه چه سر ساتل مهم کار دي لودمراد ژر حاصليدو وسيله ده دلغه زموږ مطلوب دی ۱۲

(۲) دابيت اثبات دی مضمون لره دبيت سابق پدليل نقلي بلندي دايه تعلق وارتباط راغلو ومعني ته هغه داچه ويلی دي پيغمبر عليه السلام چه هر هغه څوک چه دخپل زړه سر پټ وساتي ژر به دی وګرزي دخپل مراد سره جفت لوملګري صاحب دمنهج ليکلي چه قال النبي صلي الله عليه وسلم (کل من ستر سره ازدوج وتقارن مع مراده عجالة)

حاصل داچه هر هغه څوک چه سر خپل پټ کړي مالک په دخپل امرو کارو ګرزي ځکه چه بيهقي وطبراني وابو نعيم دمعاذبن جبل (رضي الله عنه) څخه روايت کړي چه عليه السلام وفرمايل (استعينوا علي انجاح الحوائج بالکتمان فان کل ذي نعمة محسود) نو ددي نقلو نو تاته معلومه سوه چه دسر ساتل مهم کار دي نو ځکه طبيب الهي پس تر کشفه دمرض دمنځي پر منځه دسر ساتلو اصرار او تر کيز کاوه ۱۲

ابو الحفاظ :مولوي صالح محمد الارغستاني .

الراقم :سيد عبد الهادي الهاشمي .

(١) وقت چه په سابق بيت کښي اثبات دمطلوب په دليل نقلي باندي وکړي اوس ئي اثبات په عقلي ومحسوسي باندي کوي نووايي دانه چون الخ ،دايه تعلق وارتباط راغلومعني ته هغه دلچه مولٓناقدس سره شاهد دتمثيل په ډول پرسابق مطلوب ومدعي قائمه وي نووايي وقت يودانه اوتخم په مځکه کښي پټ سي نونتيجه ئي دلسي چه پوټيده ددغه داني اوتخم سراسرشين گنبتي دباغ سي يعني لکه پوټيدل دداني وتخم چه موجب اومفضي وزغونه بباغ ته گرزي همدارنګه پوټيده دسر مفضي ولنجاح ته دمراد گرزي چه هغه نووصاحب ته مرادزرغون بـاغ لو محل دتماشي دی نوبدي خاطرطبيب الهي پرمنځه دکتمان اصرار کوي ١٢

| دانه چون اندرزمين پنهان شود[1] | سراوسرسبزی بستان شود |
|---|---|
| مولٓناپس ددليله مثال وايي | ماوتاته فهميدل دمقال بنايي |
| واي ته وګوره ودي سِر ته عاقله | بيباکي مه کوه مه کښينه غافله |
| يودانه چه سي په مځکه کښي پنهانه | ماوتاپه سترګوليدلی داداستانه |
| دادانه نوياګلشن سي يابوستانه | خوشنماوي ځني جوړسي ګلستانه |
| نومحل دتماشي وودميوي سي | هم دعيش ودعشرت بلي ډيوي سي |
| دامنظرودا ثمرعيش عشرته | نتيجه دپوټکنی وودسترته |
| که داتخم وي ښکاره نه سي پنهانه | نتيجه بي وي نحسيت کامل حرمانه |
| زرونقره گرنبودندی نهان[2] | پرورش کی يافتندی زيرکان |
| مولنااوس موږ ته وايي بل مثله | چه په ښه ډول توضيح کړي ممثله |
| واي که سره زروسپين زرنه واي پنهانه | پټ په مځکه کښي دوي نه واي الي الآنه |
| نوبي چيري پرورش واي په خپل کان کښي | نوبي څه نشانماواي په خپل ځان کښي |
| نوعزت ددوي هم دغه استتاردی | خوپرنشاوونمائي استمراردی |
| چه دمځکي دريښوسي راتبعيده | بسيانه نشانه نمانه ئي تزيده |
| سمدستي نومخ روان سي پرتلفه | دزرګردسوټکانوسي هدفه |

(٢) داشاهدآخرد تمثيل په ډول پرسابق مطلوب ومدعي دی دايه تعلق وارتباط راغلومعني ته هغه دلچه کچيري سره زر وسپين زرپه مځکه کښي پټ نه وايي نويه کله دوي نشا ونماپه کان کښي پيداکولاي نوعزت دزروپه استتارکښي دي ځکه چه موږ وينوچه دزروحالت پس تراستتاره دنشاونماپرخوا روان نه دی بلکه دتفرق ونقصان پرخوا خوځيږي همدارنګه سردزره داستتارپه وقت کښي عزيزدي پس ترافشادرنګ تبصرو ،وترجموهدف ګرزي اوخاوندئي دنقلي دليل ترعهده لاندي راځي نوددي حکمت په خاطرطبيب الهي ومنځي ته دکتمان اواستتار پوره وصيت کاوه نوماوتاپه دي مقام کښي دازده کړه چه پوټيده دزره دمراديومهتم بالشان امردی لهذانوزه وته وينوچه حکيم الهي ومنځه ته په پوره پره دپوټيدودسروصيت کوي اومولٓناقدس سره ګوروچه په دليل نقلي اوشواهدو ،وامثله محسوسه ددغه مرام اثبات کوي نوردي پرخداي پاک سپارم والسلام ١٢

ابوالحفاظ :مولوي صالح محمدالارغستاني .

### وعدها و لطفهای آن حکیم[1] ‌‌— کرد آن رنجور را ایمن زبیم

| | |
|---|---|
| مولنا چه دحکیم وصیت تایید کړي | په دلیل وامثله وویه تشیید کړي |
| نوئي بیرته مخ راواړاوه قصي ته | ماوتابي منتظرسوونکتي ته |
| وای په رنګ رنګ ښووعدودي طبیبه | هم په نرم کلمو ددي لبیبه |
| رنځوروه وتي دغمه وودبیمه | چه ووده ته اطمنان ورکړي حکیمه |
| درنځوردزړه ګل وه لي نه غوړیږي | چه شبنم دشفقت باندي اوریږي |
| هم طبیب الهي وي پرمهربانه | هم ووده تي دعلاج وي اطمنانه |
| نوبه وه لي ایمن نه سي دی له بیري | نوبه ولي غم دده سه نه سي لیري |

### وعدها باشد حقیقی دلپذیر[2] — وعدها باشد مجازی تاسه‌ گیر

| | |
|---|---|
| مولنا اوس دی نیولي داتصمیمه | چه وعده کړي دوه اقسامه ته تقسیمه |
| یووعده ده صادقه زړه قبلونکي | بل وعده کاذبه غم زیږه وونکي |
| چه وعده وي حقیقي اودلپذیره | نتیجه ئي خوشحالي وي دضمیره |
| مطمئن موعودله سي کل به کله | په موعودئي اطمنان وسي بالکله |
| چه وعده وي مجازي زړه غورځه وونکي | وجیبه ئي خوابدي زړه نه منونکي |
| دموعودله به زړه وي ناقراره | په موعودباندي بي نه وي اعتباره |
| نوتشویش واضطراب بي نتیجه سي | په داغه غم به موعوډله اخته سي |

(۱) وقت چه مولنا قدس سره ددلیله وو امثله څخه فارغه سونوئي بیرته وقصي ته رجوع وکړه نو وايي وعدها الخ ، دایه تعلق وارتباط راغلو ومعني ته هغه داچه مولنا فرمائي چه مواعید واقعیه وواوالطافاتو نفس الامریه وو دغه طبیب الهي ومریض ته داسي حالت وباخښی چه دی مامون دهره خوفه اوبیري وګرزیدي پدي خاطرچه دمریض حسن اعتقاد پرطبیب الهي باندي حاصل سوځکه چه دده وعدي حقیقي ولیدي اواطمنان کامل ورته موجود سودلسي نه لکه د پخولني اطباؤ مواعید چه په تزه پرونلپوهي ني وعدي ورکولي لولاني وشافي ئي دطبابت عیسوي وهلي اومرض حقیقي ئي هیڅ کشف کړي نه وواودوائي دمریض په حق کښي ګمراه ګرزیده نودلوضعیت به کله مریض ته امن بخښش کړي اوڅه اطمنان بي ورساندي حاصل سي ،اوس دا عرض کوم چه په دي مقام کښي دصوفیه کراموژبه هم په نظر کښي ولره موږخوبه بلرباروتلسي ته ددوي دژبي ترجمه کړیده ۱۲

(۲) وقت چه په سابق بیت کښي وعدي مطلق ذکر کړي اوس ئي تقسیم ودووقسمینو ته دامتیازدپاره کوي نو وايي وعدها الخ ،دایه تعلق وارتباط راغلو ومعني ته هغه داچه وعدي دوه قسمه دي یو مواعید الصادقة الحقیقیة چه زړه ئي قبلونه کوي اواطمنانورباندي کوي بل المواعید الکاذبة المجازیة چه وزړه ته غم وربه برخه کوي ځکه چه ظهوردآثارنه ورباندي راځي نوسړي دمایوسی په کنده کښي بندي پریږدي نولفظ ددلپذیروصف ترکیبي معني ئي زړه قبلونکي همدارنګه لفظ دتاسه ګیروصف ترکیبي معني ئي غم ورکونکي حقیقي په معني دواقعي وصادق مجازي په معني دغیرواقعي وکاذب دصوفیه کراموپه ژبه وعدمرشدکامل دلپذیرلظهورالاثرپرخلاف دمرشدناقص لعدمه ۱۲

ابوالحفاظ :مولوي صالح محمدالارغستاني .
الراقم :سیدمولوي عبدالهادي القریشي .

| وعدهٔ اهل کرم گنج روان (۱) | وعدهٔ نا اهل شد رنج روان |
|---|---|
| مولناچه پر قســـمينو داوعده کړه | اوس بـيان يه دهر قسم نتيجه کړه |
| واي وعده داهل الله ده خير رســانه | خزانــه جاريــه تــل وي روانــه |
| دطبـــيب الهي موقـــدم وه ليد | هم پر منځه هم بــاچاموکرم وه ليد |
| تول وعدي صادقانه ئي کړي برپايه | په عمل بـاندي يه راوړي سـر ترپايه |
| نوداهل کرم داخوي ووپيشـــه ده | چه په هروقت کښي برپايه يه وعده ده |
| دزړه رنځ دي تول وعدي دکاذبـانو | دنااهله نالائقــــــــه جاهلانو |
| ماوتاکه پخواني درس ښه رايادکړو | پرغروره طبيبــــان ښه راپيادکړو |
| نوبـه ماوتاته دادرس سـي اسـانه | چه وعــده دنااهلانو رنـځ روانــه |

| وعدها بايد وفا کردن تمام (۲) | ورنخواهی کرد باشی سرد وخام |
|---|---|
| چه فارغه داقسامو دوعدوســــو | هم فارغ دنتائجودقسموســـــــو |
| نواوس داسـي وصيت کړي وماوتاته | چه وفادوعدي مه غورځه وه شـــاته |
| بـل پرځاي تبوله وعدي که هوشمنده | چه په دي کردار بــه تـه سـي عزتمنده |
| ورنه ته به سي بي توله په بيان کښي | دکاذب نوم به دي ولاړسي په جهان کښي |
| نوښه داچه دراستي عمل اختيار کړي | دعهودوکاذبــــه ځان بـــــرکنار کړي |
| دسردي ودخامي سه ځان گوښه کړي | وفايي دتول عهودوخپل پيشــــه کړي |
| نوبــه تـه سـي معززســنگين جليله | نه بـــه سپک نه بـــه رســوايه نه ذليله |

(۱) وقت چه په سابق بيت کښي وعده پردوه قسمه بيان کړه اوس په دي بيت کښي نتيجه دهر قسم بيانه وي نوايي وعده الخ ،دايه تعلق وارتبـاط راغلو ومعني ته هغه داچه مولنافرمائي چه وعدي داهل کرم لکه طبيب الهي يو خزانه جاريه ده فيوضات ئي غير منقـــطعه دي او وعدي دغير المتاهلين يو رنځ ومرض دروح دي څه اثر نه ورباندي مرتبيږي نه اسرار پکښي ليدل کيږي بلکه دمايوسي ترجمان جوړيږي (قاالشـاعر ولاخير في وعد اذاکان کاذبا) ولاخير في قول اذالم يکن فعل ) همدارنگه دصوفيه کراموپه ژبه وعدي دمرشد کامل يويې پايانه اوروانــه خزانــه ده چه فيوضات ئي انقـــطاع نه لري مسترشـــدين په سـيري بـــلانهايه کــښي لــه دوي څخــه کامله اســتفاده کوي هرچه مرشد ناقـــص دي دده لرشادو ســالک تــه دروح مــرض دي دده فطري اســتعداد دخاورو خاوري کوي ۱۲

(۲) وقــت چه مولنا قــدس سـره داقسامو ونتائجو څخه دوعدي فارغه ســـونوئي په وصيت دايغاء دوعدي شـــروع وکړه نوايي وعدهاالخ ،دايه تعلق وارتباط راغلو ومعني تــه هغــه داچه مولنـــا قــدس ســره فرمائي چه په وعدو بايد کامله وفاوکړه ســي پرطبـــق ددي قـــول دالله جل جلاله ( واوفو بـالعهد ان العهد کان مسئولا ) (۲) اوفوا بـعهدي اوف بـعهدکم ) همدارنگه پرطبـق ددي قـول دعليه الصلوة والســلام ( المؤمن اذاوعدوفا ) يعني مؤمن کامل هغه دي چه هرگنه ئي وعده وکړه په هغه بـــاندي وفاکوي داوعده خواه دده وودالله ترمابـين وي اوکه دبندگانو سره وي راغلو معني ته ددوهمي مصراع هغه داچه که چيري ته نه غواړي کول دوفا يعني که چيري ته وفاپه عمل نه راوړي نوبـه اوسـي ته سـوړاعني بـي فائدي څه ثمره بــه له تاڅخه نه اخستل کيږي نه به څه اثر درباندي مرتبيږي او همدارنگه به اوسـي ته اوم اعني دڅه منفعت اخستلوشـي بـه نه ئي نوبه خودوهر چاته مهمان اوسپک ښکاره سي دصوفيه کراموپه ژبه سالک بايد دخپل مرشد سره په تماموعدو وفاوکړي والامهان اوسپک به سي او ومطلوب ته واصل نه وگرزي ۱۲

ابو الحفاظ :مولوي صالح محمد الارغستاني

| وعده کردن راوفا باشد بجان[1] | تابه بیني درقیامت فیض آن |
|---|---|
| مولانا وصیت کوي بـــیادوم واره | ماوتابــــــــاعث کوي پروفایاره |
| راي په ښه اخلاص وعده خپله برپاکړه | هم داخپل روح ښائســــته پدي وفاکه |
| نوبــي ته خوري ثمره په آخرت کښي | هم بي فیض وفائده گوري په قیامت کښي |
| په دنیاکښي بـه سرخ رویه باعزت یي | په عقبـي کښي بـه خاوندتاج وتخت یي |
| وفاداره بـه مقبـول وي په جهان کښي | هم شیرین بـه وي په زړه دهرانسانه کښي |
| هغه څوک چه په وعده کښي وفاداروي | دده ژونــــدپه معزز پرافتخـــاروي |
| دازائدنـــه دي دځانـــه ماویلـــی | علماؤکتابـــــــوکښي دي لیکلي |

| دریافتن آن ولی رنج کنیزک راوعرضه داشتن رنج ومرض کنیزک راپیش بادشاه[2] | |
|---|---|
| دسابق عنوان مضمون رنځ کشف کول وه | هم داغه سِر دهرچاســــي پوټول وه |
| نقط منځه ووطـبـیب سـره حـالي وه | دتشخیص خونه دېل چاسـه خالي وه |
| حـتي خپله بـــاچانه سوخبــــرداره | په علت دمرض نه سوبــــرخورداره |
| اوس ددي عنوان مضمون داډی ســرداره | چه بـــاچاهم په دي سِر کړي خبــرداره |
| ځکه رنځ که څه مکشـــوف اوبرملاســو | خو تعلق ئي دباچاســـره پیداســـو |
| وولي کشف که دمرض څومره مضبوط دی | خوعلاج ئي په باچاپوري مربوط دی |
| په اسبابودطبــــیب وو کاروبـــــاره | ماوتادا پیژندلـــــــي په واروارہ |
| وقـــت چه داتقـــریروتاته نندارہ ســو | نو تعلق دعنوانینوهم ښکاره ســـو |

(١) په دي بیت کښي په مثل دسابق وصیت په ایفادوعدي دی لکن په دوهمه مصراع کښي دسابق بیان دضرر دعدم ایفاوو، اوپه دي بـیت کښي بـیان دنفعي دایفادی دایه تعلق وارتبـاط راغلو ومعني ته هغه داچه وعده بایدپه زړه وروح اوکامل اخلاص باندي برپایه کړه سي اودخلافه څخه ئي کامله ډډه وکړه سي ځکه چه ددي عمل فیض وبرکت به وفادارپه قیامت کښي ووینی داسي نه چه ثمره دوفاپرقیامت مقصوره ده بلکه وفالره په دنیاکښي هم یري فائدي ستـه لکه علماؤکرامو چه په خپلو کتابـوکښي دوفادنیوي منافع وفائدي لیکلي دي وبعضوته موږ په اشعاروکښي هم ځاي ورکړي دصوفیه کرامو په ژبه بایدپه وعدوڅتصفیي تزکیي دنفس دمرشد کامل سره په کمال اخلاص وفاوکړه ســي ځکه چه سالک به نوډ ذغي وفافیض وبرکت په فناکښي داغیاروڅخه وه ویني ١٢

(٢) دسابـق عنوان خلاصه مضمون نقط رنځ کشفه ول لوسِر پټ ساتل وورددي عنوان خلاصه مضمون دباچا هم خبـریدل لودعلاج لاره سنجه ول دي نوزه گمـان نـه کوم چه تـه دي په تعلق وارتبـاط کښي دعنوانینوشک ولري راغلومعني تـه هغـه داچه داغنــوان ثابــت وکائن دی په بیان کښي دپیداکیدودهغه ولي رنځ لره دمنځي هم دارنگه داعنوان کائن وثابت دي په بیان کښي دعرض دړوړ اوپیشه وز دمرض ؤرنځ دمنځي په وړاندي دباچا، اوس داخبره بایدزده کړچه جزء اول دعنوان دپاره دمجرحکایت دسابق لتمهید اللاحق ذکرسوي دي مقصودپه بیان جزء ثاني دعنوان دی لکه داچه پروینښ فکرپوشیده نه :د ١٢

ابو الحفاظ :مولوي صالح محمدالارغـــتاني .

(۱) دابيت تذکره دسابق او تمهيد دلاحق دي نوږدي خاطرئي دسابق ابياتو اوعنوان سره تعلق ولرتباط قائم سوراغلو معني ته هغه داچه مولنا قدس سره پدي بيت کښي حکايت وتذکره دسابق دپاره دتمهيد دلاحق کوي نووايي چه هغه حکيم الهي چه مهربانه وو پر منځه وباچاوغيره باندي کوم وقت چه يه رازوسِر دمنځي پيداکړي لوعلت دمرض په مخفي دول ورته کشف سو او صورت حال درنځ ئي ښه ورته واضح سو نوئي قصد دملاقات دباچاوکړي لکه آينده بيت چه بي بيان راته وکړي نو دابيت تفصيل دجزء اول دعنوان دی حکايت وو تذکره دتمهيد دپاره سوي ده مقصود په بيان جزء ثاني دعنوان دی لکه داچه تادموږ ځخه په سابق کښي هم واوريده والسلام ۱۲

## آن حکيم مهربان چون راز يافت (۱) — صورت رنج کنيزک باز يافت

مولنااوس موږته وايي داداستانه — چه حکيم الهي دی مهربانه
پټ ئي سِردمنځي کشف يک تنهاکړي — هم دمنځي عشق زرګرلري پيداکړي
دااول جزء دعنوان دی اي لائقه — پدي محضي حکايت کړي دسابقه
خومقصودئي په عنوان جزء ثاني دی — هم داغه تکي مطلوب حقاني دی
دوم جزدعنوان دادي ګوره ماته — چه مرض دی عرضه وي اوس وباچاته
داعنوان به مکمل موږته روښان کړي — مولنابي زيرپه زورراته بيان کړي
چه ويونکي مولناشيرين زبان وي — نوبه کله پس مانده دغه بيان وي

## بعدازان برخاست عزم شاه کرد (۲) — شاه رازان شمۀ آگاه کرد

چه حکيم الهي پره خپل غرض کړی — په دقت وپټګنی يه کشف مرض کړي
اوس داغواړي چه باچالره ديدارکړي — په دااصلي واقعه ئي خبردارکړي
نوروان سودباچاسره ليدل کړي — هم په دي باره دده سره کتل کړي
ترلقاوروسته ئي سِرورته عيان کړی — يوحصه دحال دمنځي ئي بيان کړی
ول دمنځي مرض نه دی دصفراسه — نه پيښ سوي داعلت دی دسوداسه
بلکه زړه ئي يوزرګردی تښتولی — دهجران په لمبوځاي پرځاي سوه ځلي
نوسبب دمريضي ئي دغه عشق دی — دزرګرسره پيوندئي سرمشق دی
چه باچاپه دغه حال باندي داناسو — په مضمون دآنيده بيت نوګوياسو

(۲) وقت چه دتذکري وتمهيده فارغ سونوئي شروع په مقصود باندي وکړه نووايي بعدازان الخ، دايه تعلق وارتباط راغلومعني ته هغه داچه حکيم الهي پس ترهغه چه دمنځي مرض ئي په هغه دول باندي تشخيص کړي چه تاني بيان ولوريدي ولاړسو اوقصدئي وتګ ته پرلوري دباچاوکړي اوباچائي په ځه شمه دحال دمنځي خبر کړي هغه داچه مريضي دمنځي دصفراوسوداء وغيره ځخه نه ده بلکه مريضي دزړه دعشقه ځخه دزرګرورپيښه ده وعلاج ته ضرورة لري دصوفيه کراموپه ژبه مرشد کامل جګ سوروح ئي په ځه امراضو دنفس خبر کړي اوپه ګډه ئي دعلاج بندوبست شروع کړي نوردي پرخدالي پاک سپارم والسلام ۱۲

ابو الحفاظ :مولوي صالح محمد الارغستاني .
الراقم : سيد عبدالهادي القريشي .

(۱) وقت چه طبیب الهي باچاپه څه حال دمنځي خبر کړي نوباچاپه مقابل کښي ددي خبري دنیازواحتیاج په پول داسي عرض وکړه چه اکنون تدبیرچیست الخ ،دایه تعلق وارتباط راغلومعني ته هغه داچه باچاپس دخبره په حال دمنځي دطبیب دخولي څخه داسي وویل چه اوس نوته وایه اي طبیب الهي چه تدبیروعلاج زما دمشکل ووغم څه دی ددي مشکل دحل کولواوددي غم دليري کولودپاره تعجیل وتلوارزماپه نظربنه بولم دتاخیروځنډموجب وسبب ئي څه دی نه رامعلومیږي نوزماآرزوداده چه زماسره په دي لوي غم ودردکښي ژر همکاري وکړه سي لوتاخیرورنه کړه سي معني دبیت په ټیه د صوفیه کراموروقت چه هغه روح چه په کمندلودام لوملګري ومحبت کښي دنفس راغلي ووداودعشق ومحبت سره ددنیاد نفس غوندي مشت وګریبان ګرزیدلي وو ومرشدکامل ته مراجعه وکړه لومرشدکامل ودغه روح ته څه احوال دنفس بیان کړه اودده مرض په حب ددنیا وروښودي نوروح ودغه کامل ته وویل چه اکنون بګوالخ ،۱۲.

| | |
|---|---|
| شاه گفت اکنون بگو تدبیر چیست (۱) | درچنین غم موجب تاخیر چیست |
| مولناوای چه باچاخبرپه رازسو | وطبیب ته مخاطب په ډیرنیازسو |
| ویل اوس نوتدبیرڅه دي راته وایه | هم سبب دتاخیرڅه دی راته وایه |
| زه په دومره غم غمجن طاقت مي نسته | زمامریض لره بي تاطبابت نسته |
| حال زماوطبیبانوتالیدلی | دتزویرکتاب ددوي دي ماویلی |
| اوس نوته ماته راوښیه علاجه | دمعشوق زمابه په څه روغ سي مزاجه |
| باچانه دی ملامت چه کړي تلواره | بي معشوقه عاشق نه لري قراره |
| که څه صبردی په هرشي کښي پکاره | خوعاشق ته بي صبري لویه شعاره |
| گفت تدبیرآن بودکان مردرا (۲) | حاضرآریم ازپئ این دردرا |
| طبیب وویل باچاته تدبیردادی | دزرگرحضورودي رنځ ته دوادی |
| اوس نوزه وته بایدوکړوداکاره | پس په دي رنځ پسي داکارکړوروي کاره |
| چه زرگرکړوراحاضردسمرقنده | په داغه باندي جوړیږي زموږ دردمنده |
| ولي زړه چه سي په عشق باندي پرهاره | دجوړښت دپاري نسته بله لاره |
| هغه داچه جوړه داسي زمینه سي | دوصال پنتکی وزړه ته ئي پنه سي |
| فقط دغه یوه لاره دجوړښت ده | یکتنهاداغه چاره دپرورښت ده |
| نودوادمنځي دغه بله نسته | هم شفادمنځي دغه بله نسته |

(۲) وقت چه په سابق بیت کښي باچادطبیب الهي څخه تدبیروچاره وغوښته طبیب الهي په دي بیت کښي هغه تدبیروچاره ورته بیانه وي نووایي گفت تدبیرالخ ،دایه تعلق وارتباط راغلومعني ته هغه داچه طبیب الهي وباچاته وویل چه تدبیروعلاج دمنځي دادی چه هغه زرگرسمرقندي چه معشوق دمنځي دی دسمرقنده څخه دلته راوه لواودمنځي درنځ دوایي په وسي وه لي دعاشق دزړه پرهاریله وصاله دمعشوق نه جوړیږي دصوفیه کراموپه ژبه کوم وقت چه روح طلب دثمري دطبیعت جسماني وکړي اودهغه په عشق ومحبت مرهون سي نوچاره ني بي وصوله وخپل مشتهي ته بله نسته خوبک تنهابه مرشدکامل ددغه پیوند وو،وصول شکیده وخلاصیده په یوحکمت وتدبیرباندي کوي لکه زه وته چه په مانحن فیه کښي گورو۱۲

ابوالحفاظ :مولوي صالح محمدالارغستاني .

| مردزرگررا بخوان زان شهر دور [1] | بازروخلعت بده اوراغرور |
|---|---|
| اوس حـــــکيم الهي مجرب ذاته | دحضور طريقــه ښه يي وبـــاچاته |
| واي راوغواړه زرگردسمرقـــــنده | په خلعت وپه انعام ئي کړه خورسنده |
| هم په زرهم په نعمت ئي برخوردار کړه | هم په دي مينه الفت ئي زړه بيدار کړه |
| هم ســـره زروو خلعتونه ورعطاکړه | هــم په دغــه نعمتونو يــه خطاکــړه |
| داســـي نه چه تي راوغواړي فقـــطه | نه خلعت نه وي نعمت نه وي الفتـه |
| وه لي دارنگه غوښتنه په ســـــطوته | وزرگرته پيښه وي کامل وحشـــته |
| نوشـــــايددخپل وطنه برکنارســـــي | دسلطان ددبد[illegible]ـه بـه فرارسي |
| چه علاج دمريض وه وزي زموږ دلاسه | نوبـه کله سي مريض [illegible]نځه خلاصه |

| قاصدي بفرست کاخبارش کند [2] | طالب اين فضل وايثارش کند |
|---|---|
| نوطبـيب دامشـــوره ورکړه بـــاچاته | چه قـــــاصد ته وليږه [illegible]گرخواته |
| داقـــاصددي نوزرگربه دي خبــــرکړي | چه باچابــه تاپرهرچابـــهره ورکړي |
| هم قاصددي ورته گډ په خوش کلام سي | چه زرگرطالب مطلق ددي انعام سي |
| دباچاحســــــن نيت دده په بابـــــه | وزرگرته دي بيان کړي باب په بابه |
| چه زرگرخاونددي انعام کلام ســــــي | خامخاپه ئي منل ستادپيغام سي |
| دشـــــيرين کلام اثرمودې ليدلې | هم موقـــــدردانعام دې پيژندلې |

(۱) وقت چه طبيب الهي په سابق بيت کښي تدبير حضور دزرگرورته وښودي په دي بيت کښي طريقه دحضور ورته ښيي نووايي مرزرگرالخ ، دابه تعلق وارتبـاط راغلو ومعني ته هغه داچه طبـيب الهي وبـاچاته وويل چه دازرگرسړي دليري ښاره دسمرقند وخپل ځان ته راوبـوله مگرهوپه دي چل چه زروو خلعت ورکړه ودده ته هم په دغه بـاندي خطاکړه او ، وخپل لورته ئي مائل وگرزه وه چه دده ووفراورونه کړي ، نواوس که موږ وتاسي وعمل وکردارته ددي حکيم الهي ځيرسونوبه دده عمل کردحکمو ومصالحو وفوائدو ډک ووينو اوونورو طبيبانوته به ني ددرس لوحه وخط کـښ وگرزه وواود صوفيه کرامو په ژبه بـه دمرشـد کامل تد بيرد سـالک دپاره يوه ضـروري امـر وگڼو اووسالک ته به دکامل تفويـض اواطاعـت فرمـان صادرکــړد نوردي پرخداي پاک سپارم والسلام ۱۲

(۲) په دي بيت کښي دوهمه طريقه دحضور ورته ښيي پدي خاطر نوتعلق ديښينو حاصل ســوراغلوو معني ته هغه داچه طبيب الهي وبـاچاته وويل چه ته قــاصدوزرگرته ور وليږه اوداقــاصددي وزرگرته اخبــارېه غوښتنــه وخلعــت و انعام دبــاچاوده ته وکړي لوداقــاصددي زرگرداسـي آماده اوعيارکړي چه دې قبـول دفرمان ووانعام دبـاچاوکړي اوطالب ددي فضل وتفضل وگرزي ، نو له دي مضمونه ماوتاهم دازده کړه چه قاصد بايد خاوند دفراست وفصاحت وامانت وي لکه داچه پرلبيب شخصيت پوشـيده وپټه نه ده اودامو هم زده کړه چه قاصد بايد دمرســل اليه زړه دمرســل وخواته مائل کړي اووقبـول ته دمحتو ياتو ده رسالي ئي بايد عيار کړي نوموږ وتاسي بايد دطبـيب الهي وخبـروته هرځاي په دقت متوجه ســو ځکه چه دده معمولي خبري دحکمته خالي نه دي ۱۲

ابو الحفاظ :مولوي صالح محمد الارغستاني .

| | |
|---|---|
| [(1)] تا شود محبوب تو خوشدل بدو | گردد آسان این همه مشکل بدو |
| اوس طبيب الهي راوړي حجته | دسابق دپاره وايي داعلته |
| واي ته وکړه مخکښې کاراي سلطانه | چه محبوب دې سي خوشدله وشادانه |
| يعني منځه به خوشحاله په زرگرسي | هم داغه بي تداوي دزړه ځيګرسي |
| په راتګ په دزرګرپراخه ميدان سي | په داغه به ستاهمه مشکل اسان سي |
| يعني لاربه سي پيدا ستاومجهودته | هم داغه ده ذريعه ستاومقصودته |
| وه لي داراتګ په دي طرزومنواله | عشق دمنځي ګرزه وي مخ پرزواله |
| وقت چه مينه دزرګرباته سوه شاته | روغ رمته منځه پاته سوه باچاته |
| خوداغه اصلي مقصودزموږ په بيان دی | په تمام دقصي دامجمل روښان دی |
| [(2)] چون به بیند سیم زر آن بینوا | بهر زر گردد ز خان و مان جدا |
| بياحکيم الهي وايي باچاته | چه حالت دزرګرداغوږ نيسه ماته |
| چه سپين زرووسره زرووينې فقيره | خودبه دی پدغه دام ګرزي اسيره |
| هم دکلي وودسرايه به جداسي | هم دخپله خانه دانه به تنهاسي |
| نه په وګوري دکورلوښولرګوته | نه به وګوري ونوروپرګنوته |
| نوبه سمدستي زرګرراځي وتاته | دسفربستربه واچوي وشاته |
| دی په طمعه به مال ودمنال وي | ستامنظوربه دمعشوق صحت کمال وي |
| هرانسان په خپل مقصدپسي روان وي | هرسړي په خپل مطلب پسي دوان وي |

(۱) وقت چه په سابق کښي طريقه دبلني وحضوربيانه کړه اوس علت وسبب دنوموړي طريقي بيانه وي نووايي تاشودالخ ،دايه تعلق وارتباط راغلومعني ته هغه داچه طبيب الهي وباچاته وايي چه ته نوموړي طريقي اوزما نبودلي لاري په کارواچوه دپاره ددي چه ستامحبوبه منځه خوشحاله سي اودخپل معشوق زرګرپه وصال برحاله سي نوپه دغه کړه وړه به ستاومقصودته لارهواره سي اوستاتوله مشکل به په دغه باندي حل سي نولفظ دبدوپه دواړومصراعوکښي ضميرراجع وزرګرته دي داهم کيدلاي سي چه مصراع ثاني کښي په معني ده دووسي يعني په منځه ووزرګربه ستامشکل لسانه وګرزي په ژبه دصوفيه کرامو ،مرشدکامل وبندي روح ته وايي چه ته خواهشات د دنفس ونفس ته حاضر کړه چه ماته ئي لاره دمحوي هواره سي اوازاله ئي وکړه سي نوته به دقيده ووغمه خلاص سي اونفس به ستاپرمقتضي رفتارکوي والسلام ۱۲

(۲) وقت چه طبيب الهي طريقه ووعلت دبلني بيان کړي اوس حالت دبلل سوي په قبول ونه قبول بيانه وي نووايي ،چون به بيندالخ ،دايه تعلق وارتباط راغلومعني ته هغه داچه طبيب الهي دپاره داطمنان دزړه دباچاوايي چه کوم وقت چه يومحتاج زرګرغوندي سپين زرووسره زر ووينې دپاره ددغه زروبه ترکوراوتراسبابودکورتير سي اوددغه زروپه طلب پسي به روان سي نوګوياکي طبيب الهي وباچاته دااطمنان ورکړي چه دغوښتني سره دزرګرپه نمط مذکورحضورده ضروري دي پداغه باندي دمشکل حل دي نوته مطمئن اوسه ۱۲

ابو الحفاظ :مولوي صالح محمد الارغستاني .

| زرخردراوالہ وشیدا کند (۱) | خاصہ مفلس راکہ خوش رسوا کند |
|---|---|
| دطبيب قول سوخلاص خبره داده | ددي هيسته مقوله دمولانا ده |
| وايي زرگرزه وي هرعقل پريشانه | هم ددوي په حب كښي تل وي سرگردانه |
| خاص محتاجه بيچاره مسكين فقيره | په خپل دام كښي سمدستي راوړي اسيره |
| نومفلسه چه دزروپه سوداسي | خامخابه ذلت باندي رسواسي |
| زرگرځه چه زروعقل كړي ورړنګه | ډيرپوهان ئي شووه كړي درګرنګه |
| چه بنده دزروو گرزي هرڅوكه | په نظر كښي به دخلقوسي هيڅ څوكه |
| ماوتاته درسول قول كافي دی | تعس عبدالدينارراته شافي دی |

| زراگرچہ عقل می آردولیک (۲) | مردعاقل بایداورانیک نیک |
|---|---|
| داجواب دهغه سوال چه ويل كيږي | چه زرعقل ته په نفعه شميرل كيږي |
| وه لي زردآخرت يومزرعه ده | مقتضي دعقل هم دغه نكته ده |
| نوبه داززعقل وه لي كړي پريشانه | بيابي وه لي كړي رسواوسرگردانه |
| دوي خودواړه يودبله دي يارانه | په دوي دواړوويشتل كيږي يونښانه |
| جواب داچه زرپه اصل كښي فتنه ده | داسي نه چه دهرعقل مزرعه ده |
| ډيرعقلونه محوه سوي دي په زره | په وادي كښي دحيرت وي دربدره |
| هوكامل عقل صافي دكدورته | زروده ته مزرعه دآخرته |
| مګردارنګه عاقل كم دی جنابه | ګمان نه كړم چه زرګروي ددي بابه |

(۱) وقت چه مخاطبه دطبيب الهي وباچاته په سابق بيت پاي ته ورسيده اوس مولناقدس سره څوبيتونه دتائيدوتكميل دپاره په خپله ژبه وايي داسي زرخردراالخ .دايه تعلق وارتباط راغلومعني ته هغه داچه مولناقدس سره وايي چه هغه خبره دطبيب الهي چه زرگربه دزرودپاره كوروسامان دكورپريږدي اوتاته به راځي حق وپرځاي ده پدي خاطرچه زرعقل پريشانه اوسرگردانه كوي اوعاشق وشيدائي پرخپل ځان گرزه وي خصوصاً هغه مفلس ومحتاج چه هغه نوبالكل رسوا اوترنام وننگ تيرگرزه وي ځكه چه احتياج دزمري څخه گيدو جوړه وي چيري بل نوخودبه محتاج لو پرزروشيدلزرگرخپل كوروُاسباب دكور پريږدي اوورحضور ته دباچابه راځي نو دطبيب الهي خبره حق اوپرځاي ده كه موږوتلسي وخبره ته حكيم بنه ځيرسو نودااشاره به هم پكښي پيداكړوچه پرينښول دځان ومان په طمع دمال حكمت نه دی نه گوري چه زرگر ئي څنگه دمرگ په بندركښي ودرلوه لكه داچه به په قصه كښي درته واضح سي په ژبه دصوفيه كرامو هيريدل دوطن روحاني په اختياردخواهشاتوجسماني موجب دهلاك حقيقي والسلام ۱۲

(۲) وقت چه مولناپه سابق بيت كښي زرمطلقامذموم وگڼل حال داچه دغه زرنظروبعض عقول ته ممدوح دي نودپاره ددفعي ددغه سوال ئي دابيت منعقدكړي لكه تفصيل چه موږ په اشعاروكښي درته ليكلي دي دايه تعلق وارتباط راغلومعني ته هغه داچه زراگركه عقل راوړي يعني زراگركه په بعض مواردوكښي په مقتضي دعقل مصرفيږي اومزرعه دآخرت جوړيږي اودنيكنامي موجب گرزي نه درسوايي سبب ليكن ددي كارجوگه نه دي مگرهغه عاقل چه پوره اوپوره عاقل وي مگرداندرمن كبريت الاحمردی والسلام ۱۲

ابوالحفاظ :مولوي صالح محمدالارغستاني .

(۱) وقت چه وناظرته داسوال پیداکیدي چه کوم وقت چه حکیم دامره وباچاته په حضوردزرگر همدارنگه دبیانه څخه دفوائدو دحضورفارغ سونوباچاپه مقابل کښي دده څه عمل اختیارکړي نو مولنا قدس سره ددفع وتتمیم دپاره دابیت منعقدکړي نووایي چونکه الخ ،دایه تعلق وارتباط راغلو معني ته هغه داچه مولنا قدس سره وایي کوم وقت چه باچادحکیم الهي څخه تیره سوي مخاطبه واوریده نوئي دده مخاطبه وپند په زړه وپه روح باندي قبول کړي دصوفیه کرامو په ژبه کوم وقت چه روح مقید دمرشدکامله څخه دخلاصون لاره دخواهشاتونفسانیه

| چونکه سلطان از حکیم آن را شنید | پند او را از دل و جان برگزید |
|---|---|
| مولنا اوس تتمه ومور ته وایي | مرتبطه دا قصه راته فرمایي |
| واي باچاچه واوریدی گفت دحکیمه | چونچه زړه دشاه قابل ووهم سلیمه |
| نو یه پند لره ددي طبیب منل کړه | هم په زړه هم ئي په روح باندي چنبل کړه |
| هغه زړه چه وي قابل او حق شناسه | وناصح ته آمده وي سم دلاسه |
| نو به خامخا د زړه وي قبلونکی | هم به گفت له دناصح وي دی منونکي |
| چه باچاحکیم منلي په رهبردی | نو یه خود قول منلی سربسردی |
| هرسامع چه نلست دښه نیت پرکمپل وي | دویونکي په وینا بي خود عمل وي |
| گفت[۲] فرمان ترا فرمان کنم | هرچه گوئی آنچنان کن آن کنم |
| چه باچا پند ومنلی په زړه یاره | اوس په ژبه باندي هم کوي اقراره |
| وایي ستا فرمان حتمي زه قبلومه | خامخا بي په عمل باندي راوړمه |
| څه چه ته وایي داوکړه هغه کړمه | ستاوینا پرغبرگوستر گوزه منمه |
| چه باچا اخلاص اختیار کړي سربسره | نوپه خپل مقصود سوځکه بهره وره |
| داخلاص ووصداقت قوي کاروان دی | ومنزل ته رسیدونکي هرزمان دی |
| خدایه ته مي کړي په برخه صداقته | هم اخلاص هم دولیانور فاقته |

روڅخه واوریده نوئي قبول دمرشدکامل د زړه دکومي قبول کړي ۱۲
(۲) وقت چه باچاپه سابق بیت کښي په زړه منته کړي وه اوس په دي بیت کښي په ژبه اقرار ښکاره کوي نووایي گفت الخ ،دایه تعلق وارتباط راغلو ومعني ته هغه داچه باچاوطبیب الهي ته پس ترقبوله په زړه په ژبه داسي وویل چه ستاامروو فرمان زه اجراکوم او امتثال ئي کوم او هرڅه چه ته وایي چه داسي وکړه هغه زه کوم نولدي مضمونه موږ وتلسي داخبره زده کړه چه ومامورته دآمر حکیم پره اخلاص او کمال انقیادپکاردي اودده چمتوالي وامتثال ته په باطن وظاهرمهم کاردی اودامو هم زده کړه چه په دغه سي انقیاد وامتثال ومطلوب ته وصول راځي نه گوروحال ته دباچاچه په څومره آبرو وعزت وخپل مطلوب ته وصل سو مطلوب څه دمزید خاوندوگرزیدي لکه تفصیل چه تاپیژندلي او وبه ئي پیژني انشاء الله تعالي والسلام ۱۲

ابو الحفاظ :مولوي صالح محمد الارغستاني .
الراقم :سيدعبد الهادي الهاشمي .

(۱) ددي عنوان تعلق وارتباط دسابق عنوان سره پدي خاطردی چه په سابق عنوان کښي امروباچاته وو، لوپه دي عنوان کښي امتثال دهغه امردی، همدارنګه تعلق ددي عنوان دسابق بیت سره پدي خاطردی چه په بیت کښي امتثال په خوله ویل اوپه عنوان کښي په عمل راوړل پدي کښي شک نسته چه داهم وجهه دتناسب ده داپه تعلق وارتباط راغلومعني ته هغه داچه داعنوان ثابت دي په استولوکښي دباچاخپل استازي وسمرقندته دپاره دراوړه لویعني راوستولواوحاضریدلودزرګرپه ژبه دصوفیه کرامو داعنوان ثابت دي په استولوکښي

## (۱) فرستادن بادشاه رسولان بسمرقند بآوردن زرګر

اوس بـه زه وته په ګډه داسـلاکړو — ارتبـاط دعنوانینو بـه پیداکړو
دسابق عنوان مضمون خلاصه داوه — دحـکیم دخوابـاچاته داوېناوه
چه ته واسته وه قاصدحاضرزرګرکړه — هم وده تـه ورعطاتـه مـال ووزرکـړه
خلاصه ددي عنوان عمل کول دي — دحکیم فرمان پرځای باندي راوړل دي
سمدستي ئي ولیږله رسـولانه — سمرقـند ته ئي روان کړه قـاصدانه
نوپدي خاطر تعلق بسته کامل سو — ارتبـاط دعنوانینو هم حـاصل سو

## (۲) پس فرستاد آن طرف یکدو رسول — حاذقان کافیان وبس عدول

وقـت چه امردطبـیب سووبـاچاته — چه ته ولیږه قـاصد دزرګرخواته
سمدسـتي باچاچمتوسـو امتثال ته — په اخلاص ئي ګردن کښېښودی مقال ته
نوچابـک ئي وزرګرته کړه روانه — دده لورتي ولیږله رسـولانه
چه زرګردوي کړي تشویق دباچالورته — هم حـاضرئي کړي دستي دبـاچاکورته
رسـولان وه حاذقـان هم خیرکانه — هم کافي وه هم شـافي ډیرعادلانه
دبـاچالیږل ددغه سـي اشـخاصو — چه موصـوف پدي صفاتوخواصـو
ترجمه ده دباچادلیاقـت ته — حـکایت کوي دده دځراکته
سـفارت کوي دده دېره تدبـیره — په دي سِربـاندي پوهیږي هردبـیره

دروح مفیدخپل فطري استاذي لره وطرف ته دسمرقندجسماني ودینوي چه معشوق دخپل ملګري نفس حاضرکړي چه مرشد کامل ئي علاج وکړي والسلام ۱۲

(۲) تعلق وارتباط ددي بیت دعنوان ودسابق بیت سره پرمتوقدذهن پوښیده وېټ نه دی فکرېکښي ووهـه راغلومعنـي تـه هغـه داچه مولـنا قدس سره وايي چه باچافرمان دطبیب الهي پرځای رلوړی ووروسته ترفرمان ئي یودوه رسـولان خیرکان وویـنده ډیر عادلان ولیږل وسمرقند ته دزرګر دحاضر بدلـو دپاره اوس داخبره بایدزده کړوچه حاذقان وکافیان په اصطلاح کښي دفارسیانوجمعه ده اومرسل الیه خودوه وه نووه لي ئي جمعه راوړه وجهه ئي داده چه تثنیه وجمعه پرقاعده دفرس متساوي ووبرابردي لکه دثاني بیت څخه چه معلومیږي هغه داچه تاسمرقنده آمدند این دوآمین اولفظ دبس په باء عربي باندي په معني دډیروزیات اولفظ دعدول جمعه دعادل ده اولفظ دپس په فاء فارسي باندي په معني دبعدبیله تاخیره ددوورسولانودلیږلوڅخه هم دباچالیاقت وکامل تدبیرمعلومیږي ۱۲

ابو الحفاظ :مولوي صالح محمد الارغستاني .

(۱) وقت چه مولٰنا قدس سره په سابق بيت بيان داستولو درسولانو وسمرقند ته وكړي اوس بيان درسيدلو ددغو رسولانو وسمرقند ته كوي نووايي تاسمرقند الخ ،دايه تعلق وارتباط راغلو معني ته هغه داچه راغله هغه دوه اميران چه باچاليږلي وه دسمرقند ښارته بيانو په وراندي دزرگر راغله په داسي حال كښي چه دباچادلوري ئي پرزرگرباندي زيري دحالي تحفي اومالي گوزاري كاوه ،دصوفيه كرامو په ژبه وقت چه دروح مقيدخپل استاذي

| [1] تاسمرقند آمدند آن دو امير | پيش آن زرگر زشاهنشه بشير |
|---|---|
| مولٰنا چه درسول ياداستول كړه | سمدستي ورپسي يادرسيدل كړه |
| وايي راغله سمرقند ته رسولانه | ځكه دوي ته صادرسوي وو فرمانه |
| په دقت يه توجه وه په خپل كاركښي | څوزرگرئي كړي پيدا په دغه ښاركښي |
| دباچازيرى ئي ده ته كړي وروړاندي | مفصل ئي ورته يادكړى لاندي باندي |
| ځكه دوي وه ځيركان دخپل زمانه | هم پوهان هم فصيحان هم عادلانه |
| په ښه خلق اوهوښياري ئي وو بيانه | په لهجه دجلب زرگرته سوه گويانه |
| مولٰنا به ددوي گفت موږ ته يادگار كړي | په دروبيتو به نومشت نومنه خروار كړي |
| [2] كاي لطيف استادكامل معرفت | فاش اندرشهرها ازتو صفت |
| رسولان نواوس په دي لهجه ويل كړي | دزرگرددي صفاتو يادہ ول كړي |
| وايي طبعه دي لطيفه باريک بين يي | هم استاددزرگري دسرزمين يي |
| هم كمال دي دي ښكاره هم معرفته | په ښاروكښي دي پاشلى دي صفته |
| هرڅوک ستاپه زرگري باندي قائل دى | دخاوندد زروزړه تاته مائل دى |
| نوپه دي خاطرموږ راغلو ستاوخواته | يومقصدلروچه وبي وايو تاته |
| مقصدداچه آينده بيت په ناطق دى | هم دده سره ملگري خپل لاحق دى |
| دايو گفت درسولانو وزرگرته | دوم داچه اوس ئي وايي بهره ورته |

وسمرقند جسماني ودنيوي ته ورسيدى اودمعشوق سره دخپل ملگري نفس ملاقي نوئي ودغه معشوق ته په حالي ومالي تحفو حيله جوړه كړه چه مرشدكامل ته ئي حاضركړي چه هغه ئي علاج وكړي ،پدا سي مواضعوكښي چه موږ داجمال په ژبه خبري كو هغه په دي خاطرچه موږ وتلسي په سابق كښي ددي مضمون مفصل تحقيق وتفصيل لو ريدلي دي نوردي پرواحدذات جل جلاله سپارم ۱۲

(۲) وقت چه رسولانو وزرگرته دباچابشارت په سابق بيت كښي ذكركړي نوپدي بيت كښي تفصيل ددغه بشارت په عجيب لهجه باندي راته كوي نووايي كاي لطيفه الخ ، دايه تعلق وارتباط راغلو معني ته هغه داچه رسولانوپه سفارت دباچاوزرگرته وويل چه اي نرم طبيعة كامل المعرفة ستاد كامل استاذى اودپوره زرگري صفت په ښاروكښي شندل سوي اووتولواقطاروته رسيدلى نو پدي خاطرموږ تاته رااستول كړه سوي اودا پيغام موتاته راوړي لفظ دكاي ،په بيت كښي مركب دي دكه بيانيه اواي اداة النداء ۱۲

ابوالحفاظ :مولوي صالح محمدالارغستاني .

الراقم :سيدمولوي عبدالهادي القريشي .

| نک فلان شه از برائی زرگری [2] | اختیارت کرد زیرا مهتری |
| --- | --- |
| در اتګ زموږ مقــصد دادي نیک فرجامه | چه دلوي بـــاچار اوري موپیغامه |
| هغه داچه زموږ بـــاچاغواړي زرګره | چه په دي فن کښي استادوي بهروره |
| تي خوبن کړي یې په دي ټوله وطن کښي | ځکه تابولي سرداریه دغه فن کښي |
| چه کامل وي په کمال خودبه محبوب وي | ددنیادباچهانو بــــه مطلوب وي |
| کمال داره په خپل فن کښي بنه اِســیري | په مابـین کښي داقـرانو بنه ځلیږي |
| کمال داره مجلســـي وي دشـــاهانو | بـــي کماله په هیڅ نه ارځي یارانو |
| دغه حــــال دکمال داره دصنعت دی | تردي لوړ مقـام کمال دشـریعت دی |

| اینک این خلعت بگیر وزر وسیم [3] | چون بیائی خاص باشی وندیم |
| --- | --- |
| رســـــــــولانووویله وزرګرته | چه دااوس خلعت دي ونیســه ځګرته |
| موږ راوړي دي سپین زرهم داسره زره | اوســـني خلعت دي دادی سربســـره |
| وقت چه راغلي پرباچابه محــترم یي | دخاصانو دپاچابــــــه مکرم یي |
| عزت مندوبـــهره مندبـــه دهرچایي | هم ندیم وهمنشـــین بــه دبـــاچایي |
| هرحاجت وضرورت به دي برپاي وي | هم غوبنتنه هم هرنازبه دي پرځاي وي |
| په آب روۇبعزت بــه دي ژوندون وي | که دي څه دخپل وطنه سه بیلتون وي |
| خوش مزه ژونددبل بنارګلي ګلزادی | لالهـان ژوندوطـن عـذاب دنـاردی |

(۱) وقت چه په سابق بیت کښي تعریف دزرگرپه کمال معرفت اوزیات شهرت باندي وکړي اوس ئي پدي بیت کښي ثمره بیانه وي نووايي نک فلان الخ ،اول بـه زده کړوچه لفظ دنک په بـیت کښي مخفف دی داینک څخه معني یه بعربي ،هذاالآن په پښتودغه ګړي اوس به نوراسومعني ته دبیت هغه داچه رسولان دباچاوزرگرته وایي چه داګړي فلاني باچادپاره دزرگري تالره اختیارکړي دي یعني ته ئي دپاره دصنعت دصیاغة خوبن کړي اومختاره کړي یي ځکه چه ته کامل اوفائق پراقرانویدي فن کښي دصیاغت ئي ،دبیته داراوخته چه باچادپاره دصناعت دملک باید دبه استاذمطالبــه وکړي اوپوهان وهوشیاران رسولان ور ولیږي اورسولان دي دغه استاذمتشــوق وګرزه وي په بنو صفاتـودي یادونــه وکړي والسلام ۱۲

(۲) وقـت چه رسولانوپه سابـق بـیت کښي تشویق دزرگر په خبروباندي وکړي په اوسني بیت کښي تشـویق په سـوغات ومال بـــاندي کوي نووايي اینک الخ دایه تعلق وارتبـاط راغلو معنـي تـه هغـه داچه رسـولانوپه سـفارت دبـاچاوزرګرته وویل چه هغه سـوغات چه مـوږراوړي اودغـه خلعت چه سره زروسپین زردي تي قبول کړه وقت چه ته وحـضورته دباچاراسـي خوددده دخاصانو اوندیمانوؤ مجلسانوڅخه به یي ،بیت داوبنوده چه کمال داره شخصیت ته لیږنه دمالي سوغات جایزده همدارنګه وده ته وعده په قرب منزلة سوغات ګرزیدلاي سي ،بګیرپه بیت کښي امرحاضردي معنایه ونیسه ۱۲

ابوالحفاظ :مولوي صالح محمدالارغستاني.

**مرد مال خلعت بسيار ديد[1] — غره شد از شهر فرزندان بريد**

مولٰنادرسولانو گفت بيان کړي — سمدستي ئي دزرگر حالت عيان کړه
واي زرگرچه خلعت وليدۍ بسياره — سمدستي غره په دي سوناقراره
دخپل ښارؤداولاده څخه جدا سو — سمدستي روان پرلوري دباچاسو
ملامت ئي مه گڼه مال لوفتنه ده — ددنياناوکۍ ډيره ښائسته ده
مال وجاه دي خطاکړي ډيرپوهانه — په خپل لومه يه بندکړي هوښيارانه
دزرگرداففقيرزړه کله صبريږي — نوبه ولي په دي لومه نه بنديږي
خداي دي ماوتاله دي لومي رهاکړي — قناعت دي مي په زړه کښي رب پيداکړي

**اندرآمد شادمان درراه مرد[2] — بيخبر کاآن شاه قصد جانش کرد**

مولنايه اوس دحال کوي بيانه — کوم وقت دۍ چه ووپرلاره راروانه
واي په شوق وخواشحالي ووسفره — خودخپل انجامه هيڅ نه ووخبره
دزرگرپه خپله مينه وورفتنه — دباچاقصدووده دروح کندنه
وهرچاته چه اجل سي ورپه واره — دمرگ ځاي ته ورروان وي په تلواره
زرگرنه گوري په څومره عجلت درومي — په داغه تگ باندي خپل اجل به مومي
خلعت نه وودادمرگ يوه بانه وه — خووده ته دسروزروخزانه وه
په جريان کښي دقصي به خبردارسي — په دي رازبه سرترپايه برخوردارسي

(۱) په سابق بيت کښي بيان دحال دخلعت په ورانډي کيدووزرگرته وسوېدي اوس بيت کښي بيان دډيرايسيدودغه خلعت وزرگرته کوي دايه تعلق ووارتباط راغلوومعني ته هغه داچه هغه خلعت ومال چه پرلاس درسولانووزرگرته کښيښوول سودغه نوودغه زرگرته ډيرښکاره سواودي زيات وربانډي غره سوحتي خپل ښارواقرباءئي پريښودل سمدستي پرلوري دباچاروان سواوپه معمول کښي بي ملامت هم نه گڼوځکه چه فقرخوهغه څه دي چه صبروربانډي گران دي اومال ودنياهغه فتنه ده چه صبرځني گران دي ډيرپوهان دوقت ئي خطاکړي اودخپل محبت په جڼ کښي ئي راوستلي دي اوډير هوښياران ئي په خپله لومه بندکړي ،نوزرگرهم يوڅوک دي چه پردغه لورئي حرکت وکړي الله پاک دي زموږ وستاسي قناعت نصيب کړي اوحق تعالي دي موددي لومي څخه بچ کړي آمين يارب العلمين ۱۲

(۲) وقت چه درسولانوکړه وړه اوددوي وينا وورپيغام ئي وزرگرته ښکاره اوبيان کړ اوس نوعمل کرددزرگرپه دغه مقابل کښي بيانه وي نوواپي اندرآمد الخ ،دايه تعلق وارتباط راغلومعني ته هغه داچه دغه زرگرپس ترعمله ووينادرسولانوپه زياته خوشحالي دباچاپرلورراوخوځيدۍ اولاره ئي په ډيرشوق وذوق قطعه کوله خبرنه ووچه باچاددة دروح قصدکړي اودۍ دخپل معشوق دخلاصون دپاره قرباني کوي نودبيته داوخته چه حب ددنياوجاه دمحب دهلاک وسيله ده الله دي موږ وتاسي وساتي ۱۲

ابو الحفاظ :مولوي صالح محمد الارغستاني .

**آسپ[1] تازی برنشست وشاد تاخت ــ خونبهائی خویش را خلعت شناخت**

اوس یو بل حال دزرګرچه بیانیږي ــ چه په څه ډول سفر ته روانیږي
واي پر ښه آس باندي اوس دی سپریده کړي ــ هم په خوښه خوشحالي یه زغلیده کړي
لاري چاري دسفرئي آماده سوي ــ خپلي ویني په خلعت ورته ښکاره سوي
په خلعت چه قبول کړي څه دنیاوه ــ خو هغه دده دوینو خونبهاوه
خونبهائي په خلعت وپیژندله ــ بیا یه کله وبل لوري ته کتله
پاک الله چه ومرګي ته وي بللي ــ خامخابه پر اجل باندي ورزغلي
چه وچاته اراده سي دباداره ــ دی په خپله کړي مختار داجل لاره

**ای[2] شده اندر سفر با صد رضا ــ خود بپای خویش تا سوی القضاء**

مولنا وماوتا ته په دي بابه ــ په عام ډول راته کاندي داخطابه
واي قضاء الهي چه وچلیږي ــ پر اجل دیوسړي چه وڅرخیږي
نو مرګ ځاي ته دهغه حاجت پیدا کړي ــ دبل هرڅه این وآنه ئي جدا کړي
پرداغه خوائي سفر په سل رضاوي ــ پر خپل پښو روان طرف ته دقضاوي
دهر څه څخه بي فرواکوي سفره ــ په اجل خپل باندي کله وي خبره
زرګر واره په سفروي ډیر خوشحاله ــ داجل په دام کښي ولویږي في الحاله
ماوتاګورو چه ختم دادوران دی ــ شپه ورورځ وینو چه داکاروان روان دی

(۱) وقت چه په سابق بیت کښي خوځیده دزرګر دباچا پر لوري بیان کړه اوس طرز وطریقه ددغه خوځید وبیانه وي نو وايي آسپ تازي الخ، دایه تعلق وارتباط راغلو ومعني ته هغه داچه زرګر پر کړه آس باندي سپور سو او په زیاته خوشحالي بلندي دآس زغلیده کوله خپله خونبهائي خلعت په نظر ورغلي وه یعني داپیغام دباچا وزرګر ته خلعت ښکاره سو خو په حقیقت کښي خلعت نه وبلکه دده مرګ پیغام وو نو دبیته دا راوخته چه اجل وچاته معلوم نه دی کوم وقت چه الله پاک دچا دمرګ فیصله وکړه نو دي دمرګ اسباب خپله ځان ته برابره وي او خپله دمرګ پر لور حرکت ورکوي او ځان ور رسوي دحدیث پاک مضمون دی چه الله پاک وایي چه کوم وقت چه زه اراده وکړم چه دیوبنده روح په یو ځاي کښي قبض کړم نو زه وده ته دهغه ځاي دورتګ حاجت پیدا کړم دی په خپل اختیار وخوښه وهغه ځاي ته ور سي ۱۲

(۲) وقت چه خوځیده دزرګر دمرګ پر لور دخوشحالي پر طرز په سابق بیت کښي بیان کړي لوس په عام وشامل ډول دغه مضمون بیانه وي نو وايي اي شده الخ، دایه تعلق وارتباط راغلو معني ته هغه داچه مولنا په عام ډول خطاب کوي واي اي هر هغه څوک چه ته سفر په خپل رضا باندي کوي او په خپلو پښو وطرف ته دمرګ ورځي او خپله دمرګ ځاي لاري چاري لټوي یو قصه په کتابو کښي لیکلي چه سلیمان علیه السلام دمځکي پر میان په یو مجلس کښي ناست وو چه یو نابلده څوک راغلي او پدغه مجلس کښي کښیناستی ویو بل سړي ته ئي په تیز نظر وکتل سستي دمجلسه ولاړ سو او غائب سو هغه کتلي کرده شده شخص په ریږدسوادسلیمانٔ څخه دالله په نامه غوښتنه وکړه چه ما دباد په ذریعه دمځکي پاي ته ورسوه سلیمان هم هغسي وکړه خو څه لږ پسته هغه نابلده شخص بیا مجلس ته راغلي سلیمان علیه السلام ورته ویل اي درب ماسله څه سړو چه هغه ته دي په داسي تیز نظر وکتل او دومره دي بیقراره کړي چه دما څخه په نامه دخداي دمځکي پاوغوښتي دي دالله ماسل ورته وویل چه اي دالله پیغمبره ما دالله امر وسو چه ددغه روح دمره دقیقي بعد دمځکي په پاي کښي قبض کړم نو ماوده ته دتعجب او حیراني په نظر وکتل چه یاالله په دمره لږ وقت کښي دمځکو په پاي کښي څنګه قبض کړه نو مي الله ته عرض وکړه الله راته وویل ورځه دي به هغه ځاي ته خپله ورسوي نو چه نیته پوره سوه زه هغه ځاي ته ورغلم دي موجود وو روح مي قبض کړي وجهه داوه ۱۲

(۱) وقت چه په سابق بيت کښي حال دمحضر دمرگ په داډول بيان کړي چه دي په خوښه خوشحالي ذمرگ
خوانه روان وي اوخپل په مرگ خبرنه وي اوورسره ملاقي سوي نه وي اوس ئي حال دملاقات اومخامخ کيدو
ددمرگه سره بيانه وي نووايي درخيالش الخ ،دايه تعلق وارتباط ترجمه ومعني داده چه په خيال کښي دمحضر
مغ کښي ترملاقات دمرگ داوي چه زه به باچااوعزتمند اوسردارجوړيږم ناڅاپه وقت دملاقات دمرگ ورباندي
رالي لوعزرائيل عليه السلام ورته حاضرسي اوداستهزاء په ډول داسي ورته ووايي چه اوس ولاړسه راوړه هغه

| | |
|---|---|
| درخيالش ملک عزمهتری[1] | گفت عزرائیل روآری بری |
| دي په خيال دبــــاچهي اوعزونازوي | په طلب دســــرداری ئي رازنيازوي |
| عزرائيل عليه السلام ورته حاضرسي | هرڅه ورک ئي دضميره وخاطرسي |
| عزرائيل واي وگوره خپل خيال غرورته | څه چه تاغوښته ټول راوړه زماحضورته |
| نه باچاســه عزت مندهم ســه مهتره | داټول وکړه ســتادپاره دي بــهتره |
| عزرائيل په اســـتهزاء دغه ويناکړي | الاڅه لاردا جله بـــــه پيداکړي |
| په لبيک دعزرائيل هرڅوک خاموش سي | اين وآن يه همه واړه فراموش ســي |
| يــا الله پروردگاره پاکــه ذاتــه | ددارنگه اســـتهزاء راکړي نجاته |
| چون رسيد از راه آن مرد غريب[2] | اندر آوردش به پيش شه طبيب |
| دسفره چه راستون ســوداززرگره | دطبــيب په ملاقــات سوبــهره وره |
| ددنيادباچهانوداقـــانون وي | ميلمنوته ئي جوړکړي ميلمه ستون وي |
| عزت مندميلمه چه راسي دي دربارته | نوخواص دملک ئي راســي وديدارته |
| بــياددوي په مشــوره کړي ملاقــاته | هم ددوي په واســطه درومي بـــاچاته |
| نوزرگرچه عــزت مندميلمــه نوميږي | اوس پرلاس دخاص الخاص طبيب پيشيږي |
| څه دي خيال چه دطبيب به څه گفتاروو | څه دي خيال چه دباچابـــه څه کرداروو |
| دحـــکيم الهي لوړحـــکمتونه | دبـــــاچادانفعاله جگ همتونه |

څه چه تاپه خپل خيال کښي درلوده يعني ولاړسه هغه ملک وعزؤمهتري اوس زما په وړاندي راوړه داوينا دعزرائيل عليه السلام وده ته خوددلستهزاء په ډول ده ولـي اوس خوده ته موقع دنگ نسته دمرگ نيته ئي پره ده خودلوينـاوده ته دپاره دتوبيخ ده، پرياطلوخيالو بـاندي کيږي نودغه محضر خاموش پاته ســي هر څه ئي هيرسي ۱۲

(۱) وقت چه حال دعام محضر الموت دزرگرپه لرتباط ذکر کړي نوبيرته وقصي ته دزرگرراغلي نووايي چون رسيد الخ ،دايه تعلق وارتباط راغلو

ومعني ته هغه داچه مولٓنا قدس سره وايي هغه وقت چه ورسيدي دلاري څخه وښارته دباچاهغه غريب ومسافر
سړي چه هغه نوزرگروو نوراتگ وکړي په ده باندي طبيب الهي وحضورته دباچا داهم يونوعه عزت دزرگروو
چه دي په ملگري وفرمايش دداسي خاص الخاص شخصيت چه هغه نوطبيب الهي دی باچاته ورځي والسلام ۱۲

ابو الحفاظ :مولوي صالح محمد الارغستاني .

| | |
|---|---|
| سوی شاہنشاہ بردش خوش بناز (۱) | تا بسوزد بر سر شمع طراز |
| داخواصوزرگربـــوتلي دشـــاه خواته | دطبيب پرلاس په نازپيش سوباچاته |
| زرگرراوســـتي دي كورته خپلي طمعي | چه غايه يه سوه سوځنگ پرسردشمعي |
| طرازنوم دى، ديوښارپه ملک دچين کښي | نرۆښځي ښائسته په روي زمين کښي |
| معني داچه پيش په نازســــودازرگره | په بـــغل کښي يه پرته وه داخبــــره |
| چه په نازۇ په نخروبــــي مهماني کړي | پس برسربـــه يه دمنځي قربــاني کړي |
| اوس دمنځي ودشــمعي تشبــيه يادکړه | دخپل فنـه ئـي په ښه تـوگه پيادکــړه |
| وه لي تافن دبـــــيان تول دى، کتلى | مختصروومطـــول دي دى، ويلـــى |
| شاه دیداورابسی تعظیم کرد (۲) | مخزن زررابدو تسلیم کرد |
| چه بـاچاوليدزرگرزيات ئي تعظيم کړل | خزاني وزرئي ټوله ورتسـليم کړل |
| وكاسب ته چه ميلاوكسب وسامان سي | خامخابـه نوخوشحـاله دازمان سي |
| په داغه بـاندي بــاچادده زړه ښادکړي | هم په دغه ئي داخپل ملت ابادکړي |
| نه دازرسوه بي فائدي نه ســوه عبـثه | دزرگره ئي په رانيوى، نفســـــــه |
| هــم دارنـگه تــاک تيکونــه وفرمانــه | دبــاچادلوي حــکمت دي ترجمانه |
| ماوتابــــــــاچاپه خواووپيژندلي | په حـــكمت وودانائي مووومنلى |
| چه په ځنگ کښي الهي طبيب اوسيږي | نوبـــه وه لي په كارونونه پوهيږي |

(۱) وقت چه په سابق بيت کښي پيشي دزرگرپرلاس دطبيب مطلقاً ذكرسوه اوس پيشي دزرگرپه نازباندي سره دغايي ذكركوي نووايي سوي شاهنشاه الخ ،دايه تعلق وارتباط راغلومعني ته هغه داچه دغه زرگرخواصو په ملگري دطبيب الهي وطرفته دباچابـوتلى په ډيرنازونوازش خوددي عمل كردوپرمولي غايه ومطلب داوو چه دازرگرپرسردمنځي قرباني سي يعني نازونوازش دزرگرپدي خاطرووچه حيله دده ومرگ ته جوړسي اودي پداسي توگه مړکړه سي چه منځه ئي دعشق دمرضه ځخه خلاصه سي ،نومراددشمعي ځخه منځه ده په علاقه دښائسـت په دواړو كښي طرازنوم دښار په صـن كـښي چه نروښځي ئي په نهائي درجه کښي خوشرنگه اوښائسـته وه ددي ښيتوځخه داخبره را خيـږي چه ديومهم كاردپاره لوي تدبير ونه اوتكړه مشاورين اومالي لگښتونه په كاردي نولهذاته ويني چه داجريان دقـصي په ځه ډول وړاي تـــه رســيږي نوردي پر خداي پاک سپارم ۱۲

(۲) وقت چه په سابق بيت كښي حال ددید دزرگردباچاسـره بيا نيده اوس حـال ددید دبــاچادزرگره ســره بيانه وي نووايي شاه ديدالخ ،دايـه تعلق وارتبـاط راغلومعني ته هغه داچه كوم وقـت چه بــاچازرگروليده نوئي دده ډيرتعظيم وكړي اومخزن دزروئي ودده ته تسـليم كړي چه پدي كاربه ديوي خوازرگرخوشحاله اوپه كاروه لويږي دبلي خوابه دملت په منفعت هم تمام سي نونه به سيخ سوي نه كباب داسي پرمنفعته كارونه دباچادلوي حكمت ترجماني كوي خصوصاً چه ځنگ كښي دحكيم الهي اوسيږي ۱۲

ابو الحفاظ :مولوي صالح محمد الارغستاني .

(١) وقت چه په سابق بيت کښي تسليم دزرووزرګرته ذکرسو، اوس دول دتصرف پدغه زروکښي بيانه وي نوايي پس بفرمودالخ ، دايه تعلق وارتباط راغلومعني ته هغه داچه باچاپس ترتسليم دمخزن وزرګرته وويل چه ته ددغه زروڅخه دانواع دګينوجوړکړه ، بنګړي ، حميلونه ، پاي زيبونه ، کمربندونه ، ځکه چه دادوقت مستعمله ګڼي وي نودبيته داخبره راوخته چه هرسړي چه په يو کاسب کارکوي داحق لري چه دخپلو غوښتوپه کسب ووکارکښي وکاسب ته اظهاروکړي اوانواعي دحصول دکسب وريادي کړي اوخپلي غوښتني تکي پتکي ورته بيان کړي والسلام ١٢

(٢) وقت چه په سابق بيت کښي ګڼي دښائست دبدن وځان بيان کړي اوس ګڼبي دښائست دبيتي ودرباربيانه وي نوايي هم زانواع الخ ، دايه تعلق وارتباط ، راغلومعني ته هغه داچه باچاوزرګرته داهم وفرمائل چه ته ددغه زروڅخه موږ ته قسم قسم لوښي جوړکړه داسي لوښي چه دباچا دمجلس وودربار ، سره ښائي خومقصددباچا په خپل ټول کردوکردار اوپه ټول ګفت ګفتار اوپه ټوله ښودنه واظهار رضامندي دزرګراوده زړه په الفت کښي راوستل وه ځکه چه پداغه تکي بلندي دباچامشکل حل

| پس بفرمودش که بر ساز دز زر | از سوار و طوق و خلخال و کمر |
|---|---|
| چه زرګرتي ورتسليم زروسامان کړي | نووده ته ئي صادرداسي فرمان کړي |
| چه ته جوړددغه زروداشيان کړه | پايزيبونه حميلونه هم بنګړيان کړه |
| هم خوشرنګ کمربندونه ځني جوړکړه | هم په دي صياغت زموږ وطن راموړکړه |
| وه لي دازيورغوښتنه دملته | دوي دماځخه تل غواړي داخدمته |
| ته سرداردزرګرانوئي قابله | نودهرچاړه وتاته دی مائله |
| هرکاسب چه په خپل فن کښي وي استازه | خودبه هرسړي وده ته وي په نيازه |
| نوته زموږ ملت ته وکړه داسي کاره | چه دتل دپاره ستاسي يادګاره |
| خلص په ښه لهجه په ورين تندي خوشحاله | دزرګرزړه مسخرئي کړی في الحاله |
| هم زانواع اواني بيعد د | کان چنان در بزم شاهنشه سزد |
| بل باچازرګرته داسي خبرورکړي | ورتعين ئي دده کارټول سربسرکړي |
| ول ددي زروڅخه جوړکړه ته استازه | دهرقسمه څخه لوښي ښه ممتازه |
| داسي لوښي ځني جوړکړه اي هوښياره | چه لائق وي دباچادلوړدرباره |
| يعني داسي صياغت وکړه زرګره | چه دربارپه ښائسته سي بختوره |
| وه لي ته خويي استاذداستاذانو | سرغنه يي دداټولوزرګرانو |
| خوپدي وينا باچالره حکمت وو | خومقصدئي دزرګردزړه الفت وو |

کيږي اودحکيم الهي حکمت وربانديي ظاهريږي نوپدي خاطرباچادزرګره سره زيات ملاطفت کاوه اوډيرارمان دشفقت ئي وده ته ښکاره کول همدارنګه حکيم الهي دزرګرپه ارتباط يوحکيمانه تګ لاره اختيارکړي وه چه ښکاره ئي زرګرته دپيرزوييني لاس ورغځولي وواوپدغه بانديي تدبيرالمنزل قائم وو والسلام ١٢

ابو الحفاظ :مولوي صالح محمد الارغستاني .

| زرگرفت آن مردشد مشغول کار [۱] | بيخبر از حالت آن کارزار |
|---|---|
| وقـــت چه امر دباچاســـو مکمله | اوس نوپاته وزرگرته ســـــوعمله |
| نوزرگرزرکړه راجم مشغول پکارسو | په ډيرشوق ئي صياغت خپل کاروبارسو |
| مگردی، وناخبـــــــره نه پوهيږي | چه داکاريـــــه مي په مرگ راتماميږي |
| چه اجل راسي ځيرک عقل نادان سي | هم ئي فکرهم سنجش ئي واړه وران سي |
| ځرخک نه گوري ډېرلوړمســـــافته | غنم ويني ســـــترگي خلاصي دآفته |
| خودلوي داســه ړوندســـي هغه آنه | چه اجل تي نيژدي ســـــوي وي زمانه |
| په تلواربـاندي راکوزسـي پرغنومه | ســم دلاســه سـي بـندي په هغه لومه |

| پس حکيمش گفت کای سلطان مه [۲] | آن کنيزک را بدين خواجه بده |
|---|---|
| چه زرگرپه صياغت باندي لگياســو | دهمه واړه اغياروبـــي پرواســـو |
| پس حـــکيم الهي صادرفرمان کړي | وبـــاچاته ئي هم داامراعلان کړي |
| ويل اي باچادرتول کړه خپل کوششه | دغه منځه وزرگرته کړه بخششـــه |
| حـــکيم وه لي دغه کارورته فرمايي | دحکمت نکته ئي وروسته راته وايي |
| اوس به زه وته وايوحـــکيم مختاردی، | ځکه ده ته سپارل ســوي دغه کاردی، |
| نوبـــــــه لاونعم نه وايوزماوروره | دحـــکيم الهي حـــکمت ته گوره |
| څه چه وايي حـــکماء ددين ســرداره | زماوســـتاترفکرلوړدي په باربـــاره |

(۱) وقت چه دباچاد کرداره فارغه سونوئي دزرگرپه کردارشروع وکړه نووايي زرگرفت الخ ،دايه تعلق وارتباط راغلومعني ته هغه داچه مولٰناقدس سره حال دزرگردباچادکارپه هکله بيانه وي پس ترهغه چه دباچاحال ئي وزرگرته دکارپه هکله بيان کړي نووايي دغه زرگرنوپس ترماجرازرراجمعه کړه اوپه خپل کاردصياغت مشغول سوطبعي هم داده چه وکاسب ته چه دخپل کسب شرائط اوسامان الآت برابرسي موانع رفعه اودواعي موجودوي نولاچاره دغه کاسب په خپل کاروکسب مشغوله کيږي نو زرگرســره دوجوده دټولوشرائطواوســره دمرفعي دټولوموانـع خودپه کاربـــاندي مشـغول سوبـــامولٰنا وايي چه زرگرخومشغول په کارســومگردي بيخبروودحـــالته څخه دهغـه جنـگ چه دزړه مخ تـه راځي کـه چيري دي په دغه حالت باندي خبـرواي بيابـي نوکله دعوت قبـــلاوه چيري شغل ۱۲

(۲) وقت چه په سابـق کنبي دطبـيب الهي پواســطه مشــکل د زرگردمالي ناحــبي حل اودي په کارمشغول ســواوس حـکيم الهي په لته کنبي ددي سوچه وزرگرته مشکل عشرتي وخانگي هم ورحل کړي نووايي پس الخ ،دايه تعلق وارتباط رغلومعني ته هغه داچه وروسته ترمشغول والي دزرگرپه خپل کاردصياغت نوحکيم الهي وباچاته وفرمائل چه اي باچاچه مهتراوسردارئي دغه منځه چه ستامشعوقه ده ودغه سيدزرگرته ورکړه حکمت دحکيم الهي پدي فرمان کنبي هغه څه دي وروسته بـه راسي خلاصه ئي داچه پدغه خاطرمنځه دعشقـه دزرگرخلاصيږي بدن ئي جوړيږي دباچامطلوب وسرته رسيږي ،په عين حال کنبي دغه فرمان يوامتحان دامتثال په هلکه هم دي که څه هم حکيم الهي دامتحان قصدنه درلودي ځکه ده ته خپل عمرمعلوم وو والسلام ۱۲

ابوالحفاظ :مولوي صالح محمدالارغستاني .

(۱) وقت چه حکيم الهي په سابق بيت کښي وباچاته امر دبخښش دمنځي وکړي اوس نکته ددغه بخښش بيانه وي نووايي تاکنيزک الخ ، دايه تعلق وارتباط راغلو معني ته هغه داچه حکيم الهي وباچاته وايي چه نکته وحکمت زمادامروتاته داده چه دامنځه به په وصال دزرگرخوشحاله اوجوړه سي اوداوبه دوصل بي وژونکي داوردعشق سي حاصل داچه بخښش کښي دمنځي فائده داده چه دابه دخپل معشوق په وصال جوړه سي اومريضي به ئي ورکه سي داخوزموږ هم مطلوب وو بيابه وگوروچه موږ پوره مقصدته کوم وقت په څه ډول

| تا کنیزک در وصالش خوش شود | آب وصلش دفع آن آتش شود |
| --- | --- |
| اوس حکيم الهي باچاته وايي | خونکته ئي دبخښش ورته فرمايي |
| واي نکته دبخښش داده اي سلطانه | داخبره پرځان مه عرضه وه گرانه |
| وه لي ستاکلي مطلوب جوړښت دمنځي | په بخښش پوري مربوط روغښت دمنځي |
| نودامنځه کړه خوشحاله په وصاله | دمعشوق سري يوځاي کړه لامحاله |
| چه معموره دادوصل په شيدوسي | دعشق اوربه ئي نومړپه دي ابوسي |
| تن بي روغ بدن بي جوړسي دم پدمه | اعاده بي سي بايللې هوس بېرمه |
| بيابه وگوروچه څه کاردې پکاره | نوهغه عمل به واچه ووېښکاره |
| داياغي مطلوب به ژرراته حاصل کړي | ستامات زړه به دمقصودسره واصل کړي |
| [۲] شه بدو بخشید آن مه روی را | جفت کرد آن هردو صحبت جوی را |
| چه حکيم الهي خلاص خپل مقال کړې | نوباچايه سمدستي هم امتثال کړې |
| بنائسته منځه بخښش سوه بي وسواسه | دنکاح غوټه بسته سوه سم دلاسه |
| داعجيبه کارمه بوله دزړه سره | باچاتاووپيژندلې په عمره |
| نوبه کومي قرباني ته حاضرنه وي | نوبه کومي ستوماني ته حاضرنه وي |
| منځه څه وسربندنه ته حاضره | نوبه کله وسواس راسي پرخاطره |
| ځوک چه ځان جوړ کړي عمردمصطفا | دانوکله بياپرزړه راوړي دنيا |

رسيږي چه دهغه به هم ورو سته بيان راسي خلاصه داچه زرگر به په نيز دمنځي بستري مريض سي خپل رنگ به بايلوي دمنځي عشق به ځني زائل زرگر به مړسي منځه به روغه رمته وباچا ته پاته سي دايه باچا وپوره مقصدته رسيدلی والسلام ۱۲

(۲) وقت چه مقال دحکيم په سابق بيت کښي يادسو اوس امتثال دهغه ياده وي دايه تعلق وارتباط راغلو معني ته هغه داچه کوم وقت چه حکيم الهي باچا ته امر په بخښش وکړي نوباچاوبخښله هغه مياشت مخي منځه اوده جفت کړه هغه دوه صحبت طلبونکي چه يوه منځه بل زرگرحاصل داچه باچاامتثال دامردحکيم الهي وکړي اوهغه خپله مملوکه قمري طلعت منځه ئي وزرگرته بيچون وچراپه نکاح باندي ورکړه اودامنځه وزرگريودبله طالبان دصحبت وه هريومحب داخروو حکيم الهي دادازدواج عمل وکړي پدي خاطرچه دحکيم الهي علم وو چه که دافعل ونه سي مرض لره دمنځي دوابل شي نه سي راتلاي نولاچاربه دمطلوب دحصول دپاره داکارکيدي نوځکه وسو ۱۲

ابو الحفاظ :مولوي صالح محمد الارغستاني .
الراقم :سيد عبد الهادي الهاشمي .

(۱) وقت چه سابق بیت کښي بخشش دمنځي وزرگرته بیان کړي اونتیجه دهغه بیانه وي نووایي مدت شش ماه الخ ،دایه تعلق وارتباط راغلومعني ته هغه داچه په مده دشپږ ومیاشتودوي یودبله آشتي اومقصدشړلو حاصلیدل سره وکړه اودمحبت ولذت شپي اوروځي سره تیره ولي څوچه منځه جگه جوړه اوکامل صحت ئې پیداکړي داځه بعیده خبره نه ده هرعاشق چه دمعشوق په وصال بهره ورسي زخمي زړه رغیږي نوبدن به خود ورسره جوړیږي وه لي زړه خودبدن باچادی، وقت چه په خپل مقصدکښي بریالي وي عسکربه خوددهرغمه واندوه څخه خلاص سوي دکامل صحت وخوشحالي خاوند وي تخصیص دشپږو میاشتوبه دي خاطر دي چه کامل تحول په دغه مده کښي راځي نه گوري دلمر وشپږومیاشتني حرکت چه په باندي بهار وخزان داشجاروراځي همدارنگه نه گوري واقلي مدي دحمل همدارنگه محب د محبوساتودده طرا وت په بهاروخزان لره لري لوېدي مضمون کښي اشاره ودي نه هم ده چه مرشدباید په قطعه کښي دحب ددنیادزړه څخه د سالک دتدریجه کار واخلي والسلام ۱۲

| مدت[1] شش ماه می راندند کام | تا بصحت آمد آن دختر تمام |
|---|---|
| ددي منځي ووزرگرنوبنه آشتي سوه | چه مده ئي دصحبت پره شپږمیاشتي سوه |
| جگه جوړه سوه دامنځه بختوره | په بغل کښي اوسیدله دزرگره |
| هرعاشق چه دمعشوق په دیدن مورسي | داتوکره توکره زړگي به ئي خودجوړسي |
| چه زړه روغ سونوبدن به خودجوړیږي | وه لي زړه خودبدن باچانومیږي |
| چه باچابه خپل مقصدوي رسیدلی | نوعسکربه په څه غم وي ژړیدلی |
| خودبه دواړه وي کامیاب به صحت منده | هم په امن وبه امان به کوي ژوند |
| خلص چه شپږمیاشتي سوي تیري مرادحاصل سو | دمریض صحت به پره ډول کامل سو |
| اوس به وگوروحکیم چه څه کردارکړي | پدي باب کښي به نوڅه امراختیارکړي |
| بعدازان از بهراوشربت بساخت | تا بخورد وپیش دختر می گداخت |
| اوس چه شپږمیاشتي سوي پره کوي گذره | شربت جوړسوله دپاره دزرگره |
| چه زرگره په خپله وچیښل شربته | په بدن کښي یه ښکاره سوه داسي پته |
| ښائسته بدن ئي مخ پرویلیدوکړي | څوخاوند یه دبستروودلویدوکړي |
| دی ومنځه په یوه کورکښي اوسیږي | شپي وروځي په زحمت باندي تیریږي |
| حکیم وه لي کړي مختاره داسي کاره | په الهام الهي به ووکرداره |
| دامقصدبه مفصل وتاته راسي | تشویش مکوه سودابه دي وباسي |

(۲) وقت چه دبهاردبیانه فارغ سونوئي دخزان په بیان شروع نوبعدازان الخ ، دایه تعلق وارتباط راغلومعني ته هغه داچه پس ترشپږومیاشتوحکیم الهي دپاره دزرگرشربت جوړکړه اوبه زرگرباندي وچیښل هم په دغه خاطردزرگربدن په نیزدمنځي په ولیدوشروع وکړه اوجمال ئې دبدرنگۍ پرخوروان سودي کارکولووجهه به مفصله انشآء الله بیان دلته به په حسن ظن کفایت وکړو ۱۲

ابوالحفاظ :مولوي صالح محمد الارغستاني .

(۱) وقت چه دزهرچيښل په زرگرباندي په سابق بيت کښي ذکرکړه اوس ئې پدي بيت کښي اثرذکرکوي نووايي چون زرنجوري الخ ،دايه تعلق وارتباط راغلومعني ته هغه داوقت چه طبيب الهي په زرگرباندي زهروچيښل نودوه امره واقع سوه يوداچه وزرگرته پخوانۍ جمال نه سوپاته بل داچه دمنځي روح دعشق دعذابه خلاص سويعني څومره چه دزرگر بدرنگي راکله هغومره دمنځي عشق کميده څوچه په ختم دجمال ختم دعشق راغلي ولي دچمن په ژړکيدوبلبل کوچ کوي اودگل په خزان بورابل سوچ کوي اودسوي پولتي پتران څه فروانه لري نوځکه منځه دزرگرڅه هوانلري ۱۲

| چون زرنجوری جمال اونماند[1] | جان دختر دروبال اونماند |
|---|---|
| دزرگردناجوړۍ څخه جمال ولاړۍ | هم دروحه څخه دمنځي وبال ولاړۍ |
| يعني دازرگردرنځه بدنماســـــــــو | درد ،دعشق هم ددي منځي څخه بالاسو |
| عشق دمنځي سمدستي مخ پرزوال سو | په کمبوت باندي شروع دعشق وبال سو |
| روح دمنځي دغصي دعشقه خلاص سو | دپخواددبدبـي دعشقــه خلاص ســو |
| په چمن ژړسـي بلبــل ځني کوچيږي | چه خازه ســي گل بــورائحني خوزيږي |
| چه شــم بــل وي پتران خودپرکړيږي | پرســـــــــوه ځلوبلتوکله راتوليږي |
| دزرگردښائست گل چه اوس خزان سو | عشــق دمنځي په سـفرځني روان ســو |
| چونکه زشت وناخوش ورخ زردشد | اندک اندک دردل اوسردشد |
| وقـت چه مخ دزرگرژړبـدنماکيږي | نودمنځي زړه کرارکرارســـرېږي |
| دزرگرحب ئي دزړه څخه په تگ سو | هم ئي عشق دبادينې دزړه درگ سو |
| آهسته آهســته ولاړي کوچ وبارســو | مسافرپه سـفرولاړخالي دربارسو |
| منځه خلاصه سوه دعشق دزولنوسه | هم ازاده ســوه دحـب دولولوســه |
| گوياليدلې په زرگرنه ووبـــالکله | ني دعشق په لومه بنده وه هيڅکله |
| جگه جوړه بــي پرواگرزي شـــادانه | ومرض ته ئي حــيران وه طبيبــانه |
| دحـكيم الهي حـكمت ښكاره ســو | طبابـــت ئي وعالم ته ننداره ســو |
| اوس رائحه پرعشق دمنځي په رغيږو | مجازي عشق ته بـه اوس ورداخليږو |

(۲) وقت چه په سابق بيت کښي مطلقي تگ دجمال ذکرکړي اوس پدي بيت کښي طريقه وطرزدتگ ذکر کوي نووايي چونکه زشت الخ ،راغلومعني ته هغه داچه وقت دنا جوړي په سبب مخ دزرگر ژړوبدوناخوښه سونولږ لږپه زړه کښي دمنځي سروالي راغلي اوعشق ئي مخ پرزوال سووه لي عشق دصورت ومظهر په خوبي وبدي پوري ددوي مربوط دي څومره چه معشوق تازه وي عشق تازه وي وقت چه معشوق خزان سي عشق خازه سي وقت چه دمنځي عشق پرمظهروونوپه خزان دمظهردمنځي عشق هم مخ پرزوال سونوېدي ماجري دحکيم الهي حکمت ښکاره سولوده طبابت ظاهري هم وعالم ته ننداره سونومعلومه سوه چه حکيم الهي لکه چه روحاني طبيب ووهم دارنگه جسماني طبيب وو ۱۲

ابوالحفاظ :مولوي صالح محمدالارغستاني .
الراقم :سيدمولوي عبدالهادي القريشي .

## عشقهای کز پیٔ رنگی بود [1]

مولنا په لنډ مضمون په خوش لسانه
نو به عشق دمنځي وپيژنو ياره
واي هغه عشق چه دښه رنګه پيښيږي
پر مظهر بانديء مقصورده نظروي
دده قصدنو مجردصورت بيني وي
كوم وقت صورت چه سي بدل په يوبدرنګه
وه لي ځه چه ومعشوق هغه زائل سي
دانوعشق مجازي مذموم خارداره
دلته بل عشق دي موجودنوم ئي مجازه
هغه داچه يو مظهرزه ووينمه
نو مقصدمي په ليدلو مظهرنه وي
په ظاهره كه مظهر معشوق نوميږي
دانوعشق مجازي ممدوح دي ياره
بل نوعشق حقيقي دپاک الله دي
زړه ووينه وبدن تول په مولي سي
تناقض وتدافع نوهمه واړه
موږ پخوادي شمه هم څه ويلي

## عشق نبود عاقبت ننگی بود

دعشـ.ـو فرق به وموږ ته كړي بيانه
چه دكومي قبيلي وو داسرداره
بل هيڅ -- وي پرداغه محورڅرخيږي
بل ئي هرڅه ددماغه سه بهروي
هم داغه فقط فقط منظورفيهي وي
عشق نونه كوي بالاوده ته درنګه
نو به كله وغيره ته دي مائل سي
عاقبت كښي وهرچاته ننګ وعاره
وهغه ته به موږ خودوايوجوازه
خومشهدئي دظاهرزه وګنمه
بي ظاهره مي بل هيڅ ته نظرنه وي
حقيقت كښي معشوق حق په كښي ځليږي
دانوپول دحقيقي عشق دي سرداره
محبت الهي دحق تعالي دي
دهمه واړه اغياروڅخه جلاسي
درومي ودجامي دقولولاړه
فكر كړه . پيادئي كړه ښاغلي

(١) وقت چه په سابق كښي عشق دمنځي په رنګ پوري مربوط كړي اوس حكم وثمره دمطلق دغسي عشق بيانه وي نووايي عشقهاي الخ ،دايه تعلق وارتباط راغلو معني ته هغه پدي مقام كښي وڅه تفصيل ته ضرورت لري هغه داچه عشق پردري قسمه دي اول هغه عشق دي چه دجهته دشكل ولون وحسن صورت ظاهري پيښ وي پداسي ډول چه قصد دده مجردصورت بيني اونظريي فقط وفقط پر مظهر مقصوروي دمشاهدي دظاهربه دغه صورت كښي بالكل غافل وي ددغه عشقه څخه دوي په صورت پرستي هم تعبير كوي دغه قسم دعشق نوعشق مجازي محض نوميږي دانوعشق حقيقة نه دي بلكه هواي محض ده عاقبت دامر ئي پس ترزواله درنګ وصورت حسرت وندامت وننګ وعاروعيب دي فاعل بي نادم وخجل وي دانومصداق د مولنا قدس سره دلوسني بيت دي چه وايي عشقهاي كزپي الخ ،دوهم قسم هغه دي چه عشق ئي په شكل ولون وغيره پوري مربوط نه وي بلكه عشق دده پرظاهر په دغه مظهر كښي وي نه پر مظهرنومقصود دده مشاهده دظاهر په دغه مظهر كښي وي نه مظهر فقط بلكه مظهرپول ومرآت غوندي وي خوداقسم دعشق دوي هم په نامه دعشق مجازي ياده وي داقسم دعشق نوننګ وحسرت نه دي بلكه دايوعشق حق رباني دي اورهبر دعشق حقيقي دي

دانومصداق دمولنا قدس سره دپخواني بيت دي عاشقي گرزين سري گرزان سراست :. عاقبت مارابدان شه رهبراست :
پدي باره كښي موږ وتاسي پخواهم بيان سره اوريدلي خوچه راپيادئي كړو ،دريم قسم عشق دحق تعالي جل جلاله پداسي ډول چه مينه ومحبت ئي دټولو اغيارودخپل زړه څخه ئي ايستلي وي اوخپل زړه ئي فقط وفقط دالله دميني ومحبت صندوق جوړ كړي وي وبس دانومصداق دهغه حقائقو واسرارودي چه موږ وتاسي ډيرډيرسره اوريدلي دي والسلام ١٢

ابو الحفاظ :مولوي صالح محمد الارغستاني .

| تا نرفتی بروی آن بدداوری | کاش کآن هم ننگ بودی یکسری[1] |
| --- | --- |
| دمذموم مجازي عشق په باب کښي وايي | مولنا ماو تاته دا فرمايي |
| حقيقت نه واي ورگه مجاز مطلق واي | کاشکي عشق تنها په منځه معلق واي |
| مجازي عشق دزرگر سري پيدا واي | يعني کاشکي عشق دمنځي يک تنها واي |
| حقيقي عشق ورگه نه واي په مجاز کښي | خو مدخل دباچانه واي پدي راز کښي |
| نو به ولي دی بند سوي پدي دام واي | نو به وه لي پر زرگر حکم اعدام واي |
| دزرگر پر سر جاري سوداسي کاره | دعاشق حقيقي ثبات دپاره |
| په دنيا کښي دعاشقه سره کاروای | يا په دا معني دا عشق کاشکي يو عار واي |
| په هغه جهان کښي هيڅ گنهگار نه واي | دعقبي په هکله هيڅ بزه گار نه واي |
| مقصور نه دی پريوه دنيا پو هانه | مگر دا عشق ننگ و عار په دوه جهانه |
| که اجمال بس دی په دغه اکتفا کړه | که تفصيل غواړي حاشيي ته سر بالا کړه |
| دشمن جان وی آمد روی او | خون دوید از چشم همچون جوی او[2] |
| دمرض حال وسبب ئي توضيح کيږي | پس له دي څخه دزرگر حال تشريح کيږي |
| ده ولي په شان دده څخه بهيدلي | وايي اوښکي يه ترستر گو توبدلي |
| په کمند کښي داجل ئي راوستلی | هم دښمن دروح وده ته مخ نيولي |
| هم دروح دښمن راغلي دده کورته | يعني مرگ نيولي ومخ دده لورته |
| بستري دمنځي لاس ته وو محتاجه | ني داروه ئي درمل نه ئي علاجه |
| عاشقه منځي په مرگ باندي خوشحاله | دکوما په حال کښي ووهم مرگي حاله |

[1] وقت چه په سابق بيت کښي عشق مجازي ننگ وعار و بلل سو نو اوس په مانحن فيه او موجوده مقام کښي ددغه ننگ وعار دذول بيان راته کوي نو وايي کاش کان الخ، دا يه تعلق وارتباط راغلو معني ته هغه احتمال لري ددي چه وواېو کاشکي دغه ننگ وعار په عشق مجازي کښي يکسري واي يعني مستمر و پايدار واي انتقال وو زوال نه کولاي نو پر زرگر دغه وبار نه واي راغلی لکه داچه ښکاره خبره هم ده همدارنگه احتمال لري چه وواېو کاشکي عشق مجازي چه په حقيقت کښي ننگ وعار دی يکسري واي دوسري نه ولي يعني په مابين کښي ددوو طرفونه واي واقع سوي لکه په مانحن فيه کښي چه گورو يکسري نه دي بلکه دوسري دي څکه چه بالچار منځه عاشق منځه پر زرگر نو په سبب ددغه دوسري بلا راغله والا دا محنت به نه واي ... سه داچه ښکاره ده همدارنگه احتمال لري چه وواېو کاشکي داعشق يو ننگ وعار يکسري واي يعني په اتفاق دټولو لزهانو واي يعني هرچا ددغه عشق مجازي څخه ننگ وعار درلوداي نو به لاچاره هرهرچا اجتناب ځني کولاي نو به منځه دزرگر په عشق نه واي اخته سوي نو به بلا نه واي واقع سوي ۱۲

[2] وقت چه پس تر ناجوړي دزرگر حالت دعشق دمنځي بيان کړي اوس ئي نو بيرته رجوع دزرگر و مريضي ته وکړه نو وايي خون دويد الخ، راغلو معني داچه مولنا وايي چه دزرگر حالت دلسي جوړ سو چه ترستر گو يه اښکي لکه واله داسي بهيدي او دښمن دروح دده ومخ ته راغلي او دمنځي حالت داسي جوړ سو چه پخواني عشق چه دمظهر وصورت په خاطر و سفري سوحتي ومرگه دزرگر خوشحاله نو زرگر ته بي افسوزه په خپل حال څه ورپاته نه سوه نو ځکه خپل حال په پس کښي تشريح کوي ۱۲

ابو الحفاظ :مولوي صالح محمد الارغستاني .

| دشمن طاوس آمد پراو (۱) | ای بسا شه را بکشته فراو |
|---|---|
| دوه مثالــه مولنایــه مـوږ تــه وايــي | پدي دوا ړووضاحـــــت راته فرمايي |
| واي دښمن دطاؤس خپل بـــوڼي راغلي | بـــاچهان ډيردبدبـــي خپل دي وژلي |
| وه لي بـوڼي دطاؤس چه ښائســته سـوي | نو داغه دده ومرگ ته واسـطه سـوي |
| هم بـــاچاته چه موجوده دبدبـــه ســـي | نو داغه دده دقـــتل ذريعه ســـي |
| همدارنـــگه چه زرگرووطـــاؤس واره | نو ښائســت ئي دغه قـــتل کړي په واره |
| دبدبـــه چي دښائســت ســوه له شـندلي | حـــتي کورته دبـــاچاهم رســيدلي |
| نوبـــه خودداد بدبـــه دده ختميږي | نو بدي خاطربـــــه ځکه وژل کيږي |
| خلص زرگرته خپل ښائست سبب دمرگ سو | بياچه هم دمنځي عشق ورسره غبرگ سو |

| چونکه زرگر از مرض بدحال شد (۲) | وز گدازش شخص او چون نال شد |
|---|---|
| دتمثيله چه فارغه مولّناســــــــو | دزرگرپه حال گفتن باندي لگياسو |
| واي زرگرچه دمرضه ســه بدحـــال ســو | بـدن ويلي ډنگرې مثل دنال ســو |
| نودژونـــده ځخـــي طمعـــه وختلـــه | چه پرخوله بـاندي ورکله نو يه ويله |
| وه لي هرڅوک چه ترخپل ژوندون سي تيره | بـــيانو نه لري دهيچاڅخه بـــيره |
| چه پشـــــي تختـه ديوال ته نيغ په نيغه | پرزمري باندي حمله کوي به دريغه |
| نو به دي خاطرکوي زرگرخبـــــــري | هم وځان هم وبــــاچاته زړه وري |

(۱) وقت چه په سابق بيت کښي دزرگرحال دضعف په حالت کښي بيان کړي اوس ئي مولّناقدس سره سبب ددغه حالت دتمثيل په صورت کښي بيانه وي نووايي دشمن طاؤس الخ ،دايه تعلق وارتباط راغلو معني ته هغه داچه مولّناقدس سره دتمثيل په طوروايي چه وطاؤس ته ښائست دخپلو بڼو دښمن جوړسو که چيري دغه ښائست دده په برخه نه وايي نودي به پرڅه ښکارکيداي اووژل کيداي همچنان که زرگرله دخپل مخ ښائست نه واي اودمنځي معشوق نه واي گرزيدلاي نو به ولي وژل کيدلاي همدارنگه ډيرځله باچاځپله دبدبه وهيبت مړکړي يعني ډيرځله خلق دډيري بيري وهيبته څخه دباچادده دمرگ ترانۍ وتړي اوپه قـتل ئي ورسوي همچنان چه دبدبه وهيبت دزرگر دښائست دباچاډيرسوه نوسبب دمرگ دده وگرزيده ۱۲

(۲) وقـت چه مولّنا قـدس سره دتمثيله څخه دتوضيح دپاره فارغ سونوئي بيرته وحال ته دزرگررجوع وکړه لودده حـال دده په وينابيانه وي نوچونکه زرگرالخ ،دايه تعلق وارتباط راغلو معني ته هغه داچه کوم وقـت چه زرگردمرضه څخه په بدحال کښي واقع سواوده وليدلو څخه دبدن نال غوندي وگرزيدي يعني نري لوکوړ سولودژونده څخه طمعه وختله نو ئـي په تهديدااميزه خبروباندي شروع وکړه لکه چه وايي وري ولي هرڅوک چه ترژوند تيرسي بيانودچاڅخه بيره وهراس نه لري څه چه په زړه کښي وي هغه په خوله باندي وايي نه گوري چه پيشي په وقت دمايوسي پرزمري حمله کوي ۱۲

## گفت من آن آهوم کز ناف من ⁽¹⁾ ریخت این صیاد خون صاف من

اوس نوواردي دخبـــرودزرگره
وای زه هغه اهووم چه مشک مي ناف وو
صیادتوي کړي زماصفاويني بـهاندي
زرگروایي داکلام په ډیرحسـرته
یعني زماکمال کټ مټ دمشکوشان دی
که مقردمشـکونه واي آهونافه
زه آهوباچاصیادخودبـه سـم صیده

په جرائت بـیانه وي دی خپل خبـره
نوربـدن مي په بـهانده وینه صاف وو
دي دپاره چه دی مشک کړي رادباندي
تشبیه کاندي خپل هیئت دبـل هیئته
پرداغه قرباني سوي مي خپل ځان دی
نوبـي وه لي تویه دله وینه صافه
هم دمرگ په زولنوبـه خودسـم قیده

## ای من روباه صحرا کز کمین ⁽²⁾ سر بریدندم برای پوستین

په حسرت باندي زرگربل تمثیل وایي
وایي زه هغه گیدړه دصحـراوم
ځودپوټي پوټکني ځخه زه ښکارم سوم
پس ئي سرزمادبـدنه ځخه جلاکړی
دوي داکـاروه لـي کـوي دځه دپاره
دامثل په پښتنوکښي بـرملادی
دمثل کاروبـارتادی پیژندلی

ماوتاته دخپل ځان هیئت راسـتایي
چه خاونده دښه پوست قـیمت بـالاوم
هم په وجهه دښه پوست زه بـزه گارسـوم
هم ئي پوست زمادخپل تنه سه منهاکړی
چه دپوسته مي پوستین جوړکړي سرداره
چه گیدړي ته داخپل پوست نن بـلادی
دبـیان په کتابـوکښي دي ویلی

---

(۱) وقت چه په سابق بیت کښي حالت دزرگرپه بدحالي دمرض اوپه ولیدودبدن بیان کړي اوس ئي حالت په ویناوخبرووتمثیل بـیانه وي نووایي گفت من الخ ، دایه تعلق وارتبـاط راغلومعني ته هغه داچه زرگردخپل مایوسی اوسرخلاصی په وقت کښي وویل چه زماشان دهغه آهوسوچه دپاره دویني دنامه ئي صافه وینه دبدن توي کړه یعني زمادکمال وښائست په خاطرباچازماوینه توکړه اودمرگ میلمه ئي کړم لکه دپاره دکمال دمشکوچه صیاددآهووینه تویه وي یعني که ناف دآهوقرارگاه دمشکووای وه لي صافه وینه تویه ده همدارنگه که زمابـدن دښائست قـرارگاه نه وایي او معشـوق دمنځي نه واي گرزیدلاي نوپرځه باندي به زماوینه تو یه ده یعني وه لي به په داسي حالت وژل کیدم ۱۲

(۲) وقت چه په سابق بـیت کښي په تمثیل بـیان وکړي اوس په بل تمثیل بـیان کوي هواول دباطن په لحاظ وودادظاهـرپه منظـور مقـصدښه تراتوضیح دمقـام ده ،دایه تعلق وارتبـاط راغلومعني ته هغه داچه زرگروایي زماحـال وشـان دهغه گیدړی چه په پوټکني دصیادبـاندي ئي سـر دپوستین دپاره پریکړه سـوکه دگیدړکمال د پوسـت نه وایي وه لي به وژل کیده همدارنگه که زماسره کمال دښائست نه وایي نوپرځه به وژل کیدم نوماته خپل ښائست اوراوبلا سولکه گیدړي ته چه خپل پوست اوراوبلاسولکه داخبره چه دمثل دائرېه ډول په پښتنوکښي ویل کیږي . وایي گیدړي ته خپل پوست بلاسو ۱۲

ابو الحفاظ :مولوي صالح محمدالارغـستاني .

**اې من آن پیلیکه زخم پیلبان[1] — ریخت خونم از برای استخوان**

زرګروایي بـل تمثیل په ډیرحسـرت ته — ماوتاته بـــیارانبیي خپل هیئت
وایي هوزه هغه فیل وم باقـــوته — دپیلوان بـــارونه وړه ماډیروچته
هغه وقت چه سوسودمندده ته بل کاره — بي وفاپیلوان مي ویني توي کړي یاره
زمـاپه مـرګ چه فائـده ولیـده دڅانـه — نودخولي په راسـه ویئسـته دندانه
وه لي عاج وده ته لوي مال ودولت سـو — څکه زمابدن په وینوکښي لت فت سو
همدارنګه زرګروايي زه قـــــوي وم — دبــــاچاپه خدمتونوکښي جدي وم
وقت چه ده زماپه هلاک فائده پیداکړه — نووهرڅه ته یه مخ ماته ئي شـــاکړه
نوپه مرګ ئي کړم محکوم لکه دافیله — دفائدي وجودده ســـــره دلیله

**آنکه کشتستم پی مادون من[2] — می نداند که نخسپد خون من**

دامثالوچه فارغه زرګرڅوان ســـــو — په لویي وتکبربـاندي ګویان سو
هغه څوک چه زي محکوم کړم بیله باکه — ترمـاکـم دپاري زه کړمـه هلاکـه
دي پدي هیڅ نه پوهیږي بـي قیاسـه — چه زماوینه نه بید یږي بي قصاصه
دانهایتي تکبـــــــــرووزرګره — لافي شـــــافي تفخرووزرګره
وســـلطان جهاني ته پیشـــروڅه دی — وباچایي حقاني ته پیشـروڅه دی
وحـــــــکیم الهي ته لافي څه دی — وطبیب روحـاني ته شـاف څه دی

(۱) دادریم تمثیل دي چه زرګرئي په ډیرحسرت دتوضیح دپاره وایي هواول دباطن ونس په لحاظ وو دوم دپوست په خاطروواوسنی دریم دهد په منظوردی دایه تعلق وارتباط راغلومعني ته هغه داچه زرګربه زيات حسرت وایي چه هو زماشان شـان دهغه پیل دی چه زخم دپیلوان دده ویني دپاره دهدوکوتوي کړي دامضمون وڅه تفصیل ته ضرورت هغه داچه معمول په فیل داري کښي داوه چه کوم وقت به چافیل په خپله ولکه کښي راوستي لورعیت به ئي وګرزاوه نوترهغه وقته چه دافیل به څوان نوبه ئي دفیل دقوته وخدمته استفاده کوله کوم وقت چه به فیل پیراوزورسودقوته بـي لـــستفاده نه کیده نوبـــــي زهري معجون ددغه نیل په خوله کښي ورواچول نودفیل غاښونه بـه راتوي ســوه لودی بـه مرســونوپیلوان بـه دده غاښونوڅخه چه دعاج په نامه یادیږي دقـیمت دلاري لــــستفاده وکړه خومقـصد کامله بـي وفا يي دپیلوان دفیله ســره ده نــولوس زرګروایــي چه زماشـــــان هم ددغه نیل دی کوم وقــت چه زمادژونده وبـائـــــت څخه لـــــستفاده کیده هغه بـاچاوکړه کوم وقـت چه بـیازماپه مرګ کښي ده ته فائده رسـیده نو بـــــابه دفیل ولري د معجونوقربـــــاني وګرزه ولم والسلام ۱۲

(۲) وقت چه زرګر دخپلووینوتویه دل په امثله وورونبانه کړي اوس په ډیرغروروتکبروپیشرودخپلووینودقصاص په ادعالګیاسونووایي آنکه کشتستم الخ ،دایه تعلق وارتبـــــاط راغلومعني ته هغه داچه زرګروایي هغه څوک چه زي مرکړم دپاره دمادون ترماچه هغه نومنڅه ده که قـاتل باچاوبـولو یاهغه بـاچادی که قـاتل حـکیم الهي دانوکمال تکبـردزرګردی یادامعني چه زي دپاره دغیر دڅانه مرکړم چه هغه غیرحسن وجمال زماوو زمادڅان په خاطرئي نه یم وژلي چه مانوبل قتل کړي نوزه پرقصاص کړم نوطبیب یابـاچاخوداکاروکړي مګرنه پوهیږي چه زماوینه بـیده نه پاته کیږي طالب ئي ســته قـصاص بـي واخلي والسلام ۱۲

ابوالحفاظ :مولوي صالح محمدالارغستاني ·

(۱) وقت چه په سابق بیت کښي دیوه تکبروپیشروه څخه فارغه سونواوس ئې پدي بیت کښي په بل پیشرو
ونکبرشروع وکړه نووایي برمن است الخ ،دایه تعلق وارتباط راغلومعني ته هغه داچه زرگردپیشروپه دول وایي
چه نن روځ پرماده صباپرباچاده یعني نن روځ پرمادهلاک صباروځ دعقوبة پرباچاده وینه دداسي مظلوم کله
ضائع کیږي قال سبحانه وتعالي ( وان لیس للانسان الاماسعي ومن عمل صالحاً فلنفسه ومن اساء فعلیها )
مگرداکلام دزرگردلاف وشاف وتکبر څخه دده وو ځکه چه دافعل په الهام الهيٰ باندي وو ظلم نهوو چه جزائ
وقاتل ته ورسیږي
پردي تقریر مرادفردا
روځ دقیامت ده داهم
رواده چه معنې داسي
چه نن روځ پرمادهلاک
ده دابه تیره سي بله
روځ په دنیاکښي بیا
پرتاده هغه نوزماقصاص
روځ ده چه له تاڅخه
به زماوینې بدله اخستل
کیږي ولي زمامظلوم
غوندي وینې کله هدر
ربي قصاصه پاتیږي ۱۲

| برمن است امروز فردا بروی است | خون چون من پس چنین ضائع کی است |
|---|---|
| دایوبل پیشرومشوب په تکبردی | دایوبل خط رومشعوب په تفخردی |
| دانن روځ ده زمادمرگ دادي وي داسي | دقیامت په روځ پرده بـه جزاسي |
| وینه زماغوندمظلوم چه نن تویيږي | په دي ډول دابـه کله ضائع کیږي |
| بایه دامعني چه نن روځ کـه پرماده | دابـه تیره سي صباروځ خوپرتاده |
| یعني زماوینه قصاص ده نه ده مفته | ستادویني تویدلوسره جفته |
| دانوهه سي تکبـردی دزرگره | هم په لافوهم په شافوداخبـره |
| په الهام چه وي یوکارکله قصاص دی | دامبذول دی پرفاعل کله مساس دی |
| که پدي کښي یوشبهه تاته پیداسي | پره تحقیق به یه نووروسته درته راسي |
| گرچه دیوارافگند سایه دراز[۲] | باز گردد سوی او آن سایه باز |
| اوس زرگروایي تمثیل پداسي شانه | خپل هیئت به کړي ومور ته ښه روښانه |
| واي دیوال چه سایه درازه کړي هرځاي ته | داسایه بیرته راځي دده وړاي ته |
| یعني ظل ددیوال څومره چه غځیږي | خوپرنصف نهاربیخ ته یه دریږي |
| همدارنگه څه چه زماپرسرتیریږي | دهغه ضررو تاته به رسیږي |
| څومره ستاعمل چه ماته غځیدل کړي | دهغه جزابه تاته رسیدل کړي |
| دامضمون په احادیثو کښي راغلی | ماوتاداستاذانواوریدلی |

(۲) دابیت تمثیل
دسابق دپاره دی مقصد
پکښي توضیح دمقام
ده دایه تعلق ولرتباط
راغلومعني ته دبیت
هغه داچه زرگریامولنا
قدس سره وایي گرچه
دیوال لوسایه واچوي
خودغه سایه بیرته
ددیوال بیخ ته دریږي
یعني سایه ددیوال مثلاً دسهارپه طرف کښي دلمرختوسره څومره لوږده وي خوداغه سایه په وقت دنصف
نهارتولیږي اوو بیخ ته ددیوال رسیږي همدارنگه که ستاظلم هرڅومره اوږدسي حتي ماته لاهم راورسیږي
خوپاي بي ضررو تاته دریږي دظلم بدي په کلام الله اوپه احادیثودرسول الله کښي بیان سوي ده لویه ـ قولو
انجیتل سوي ده نوځکه ظلم په ټولو ادیانو کښي مردودشمیرل سوي دی والسلام ۱۲

ابوالحفاظ :مولوي صالح محمدالارغستاني .

| | |
|---|---|
| **اين[1] جهان كوه ست وفعل ماندا** | **سوی ما آيد نداها را صدا** |
| داكلام نومقـــــــولـه دمولناده | احـــــتمال چه دزرگردخولي ويناده |
| وايي داجهان كټ مټ دغره په رازه | نــودی اخلـــی اذانــگه زمــاپه اوازه |
| زمانداچه سوه په ده كښي منعكسه | سمدســتي په عرضه وي پرماواپســه |
| همدارنگ چه څه عمل فعل زماوي | دهغه بـــه انعكاس بــــيرته پرماوي |
| يعنـي څه عمـل دماچه صادريـږي | دهغه جزاپرمابـــــــــــه واردیږي |
| څه چه وكرم هغه بـه مي ريبــل وي | داسي نه چه تخم يوكښت مي نوبل وي |
| دامثل په پښتنو كښي ډيربـــالكله | څه چه ته كري ريبـــي بـــه ئي په خپله |
| **اين بگفت ورفت دردم[2] زير خاك** | **آن كنيزك شد ز عشق و رنج پاك** |
| مولناواي دزرگرچه خلاص گفتارســو | نودســتي په ددنياڅخه كوچ وبارســو |
| دايه وويل دژوندقميص ئي چاك ســو | ددي پس ته نوروان پرلوردخاك ســو |
| منځه خلاصه سوه دعشق ددردوسوزه | خونښ خوشحاله زندگي په سوه هنوزه |
| رنځ ئي بـالكل دبـدنه سـه خارج سـو | خوطبــــــيب الهي په معالج ســــو |
| ددي عشـــــق ومجازي پائدارنه وو | په بــدن پوري مربــوط اســتوارنه وو |
| داخو هغه عشـــــق چه تاوويېژندلی | دمجازيه دووقســــموكښي دي ويلی |
| چه فقط فقط په رنگ پوري مربوط وي | دارنگين عشق به نوبياكله مضبوط وي |

(١) دابيت دسابق واري تمثيل دي لكن پرطريق دتشبيه دايه تعلق وارتباط راغلومعني ته هغه داچه مولنا قدس سره يازرگروايي چه داجهان لكه غرداسي دي په انفعال وپه قبول وقوعي كښي اوافعال زموږ لكه ندا په اعاده كښي دجزاء وصوت نوپه بيت كښي اداة دتشبيه مقدردي تقديرئي ككوه وكنداء صداعكس اصوات نومعني دمصراع دازموږ وطرفته راځي داوازونوڅخه زموږ انعكاس دصوت په پښتواذانگه دغره دخوايعني هر څه اولزچه زه كوم دغره دخوابـــه دهغه انعكاس واذانــگه پر مــاراځي همدارنــگه چه هرعمـل بوعامـل كوي انعكاس بي بـير ته پرده بــاندي راځي يعني هرعمل چه څوك په دنياكــښي كــوي جزاء ورعوض بــه ئي ده تــه وركــړه كيــږي په پښتوكــښي مثــل دي وايــي څه چه كــري هغه به ريبي ١٢

(٢) وتت چه دحــالاتو دزرگرپه قــرب الموت كښي فارغ ســواوس ئي دده په مـوت خولــه پوري كــړه نووايـــي اين بــگفت الخ ،دايه تعلق وارتبــاط راغلو معنـــي تــه هغــه داچه مولناقدس سره حكايت كوي واي زرگرداخرني بيت مضمون ووايي نوسمدستي په ددنياڅخه رحلت سواوترخاورولاندي سوهغه منځه دعشق ورنځ څخه پاكه سوه دعشقه څخه په سبب دبدرنگۍ دزرگرخلاصه ځكه چه ددي عشق پررنگ وصورت هغه چه خراب سوه عشق خودزائل سواورنځه څخه په سبب دزوال دعشق خلاصه سوه ځكه چه دوي مريضي خودعشقه څخه وه كم وقت چه سبب منتفي سونوانتفاء دمسبب هم ورسره راغله نومعلوم سوچه عشق دمنځي هغه مردود قسم وو ١٢

ابوالحفاظ :مولوي صالح محمدالارغستاني .

(١) دابيت علت دمصراع ثاني دبيت سابق دي يعني عشق دمنځي زائل اودادمرضه پاکه سوه پدي خاطرچه عشق مردگان الخ ،الخ دايه تعلق وارتباط راغلومعني ته هغه داچه مولٰناقدس سره وايي چه دمنځي عشق زائل اودمرضه پاک پدي خاطرسوه چه عشق دمردگانوپايدارنه دي له دي وجهي چه مړپيامونږ ته راتلونکي دي نوفاني غيرباقي چيري پايدارکيدلاي سي اومونږ وتلسي په باربارداز ده کړه چه عشق دمنځي عشق مجازي مردودوو اوددي عشق فقط وفقط پرمظهرووچه هغه هالک الذات والتقرردی کوم وقت چه مظهرولاړي نوعشق ورسره

**زانکه عشق مردگان پاینده نیست — چونکه مرده سوی ما آینده نیست**

مولٰناوس علت وايي دسابقــــــه
ځنگه جوړه ســـوه درنځه ســـه دعشقـــه
وايي عشـــــق دمړوعمري پالونکي نه دی
يعني عشق چه وي پرصورت صورت خومړکيږي
وولي عشـــــق خوودمنځي پرمظهره
بـــــيانوکله داطلب ددي مظهرکړي
هرعاشـــق چه دمعشوقـــه لاس پرسرســـي
نودعشـــــــق مجازي دغه وفاده
چه معشـــوق ولاړي عشـــق ولاړپرخپله لاره

چه دامنځه پرزرگربـــاندي عاشقـــه
ته بـــيان کړه مونږته دغه سرمشقـــه
ځکه مړزمونږ خواته هيڅ راتلونکي نه دی
وداعشــــق ته نوبقـــاکله پاتيږي
چه مظهرئي نيســــتي وليدپه نظره
بـل بـالکل بـه دامعشـوق صرف نظرکړي
نوپدي خاطربـــه خودجوړسربسرســـي
دمعشـــوق دژوندانه ســـري بقـــاده
بـــــيانه تاليدلی نه ماليدلی ياره

**عشق زنده درروان وذربصر[٢] — هردمی باشد چوغنچه تازه تر**

مولناوس ماوتاته داارشـــــادکړي
وايي عشق دتل ژوندي ذات کړه مختاره
دغه عشـــق بـــه نووتاته بـــهروروي
دغه عشق به ستاپه روح وپه بصرکښي
هرگړي بـــــه غنچه واره تازه تروي
دباقـــــي اختياره ول نوضرورکاردی

چه اصلي خبـره مونږ ته راپيادکړي
دمرده عشق تاته هيڅ نه دی پکاره
هم دروح اودبصربــه دي رهبـروي
دالاځه بـل په همه واره بشـرکښي
هم بـه تاته خونږ ترگوړي وشکروي
دفاني ســه تيريدل نوضرورکاردی

ولاړي دادعشق مجازي وفانـوردي پرخـداي پاک سپارم ١٢
(٢) وقت چه په سابق بـيت کښي دعشـق مجازي ناپايدارلوفاني بنودنه راته وکړه لوس دعشـق حقيقـي لوپايداروباقـي بنودنه راته کوي نووايي عشـق زنده الخ ،راغلومعني ته هغه داچه مولٰناقدس سـره ماوتاته داارشـاد کوي چه عشـق دحـي لايموت ذات مختـاره کړه په زړه ئي جيښلي په سترگويه مشـاهد بـل په تولواندامونو کښي منظروگنه نوبـه الله ستلسـترگي ولاس وپښي وغيره ســي هر گړي بـه ستارهبـروي اوابـدي باقـي اوتازه تـروي اودتولواغيـارو

ځخه بي شکيدل اودالله جل جلاله سره به ئي پيوندراسي دانويودولت حقيقي اوپايداردی هرچه عشق مجازي دی هغه خوتاپه ننگ وعارپيژندلی وونووعاقل ته وپادارملگري پکاردی نه بي وفا١٢

ابو الحفاظ :مولوي صالح محمد الارغستاني .
الراقم :سيد عبد الهادي الهاشمي .

| | |
|---|---|
| عشق آن زنده گزین کو باقی است (۱) | وز شراب جانفزایت ساقی است |
| مولنا په نصیحت بسیارا ته وایي | حقیقي عشق ته دعوت را ته فرمایي |
| وایي عشق دحقیقي ذات کړه مختاره | چه باقي دی، تل ژوندي کلي اختیاره |
| خوښ کړه عشق دهغه ذات چه تل باقي دی، | هم شراب دمحبت لره ساقي دی، |
| داشراب تل ورکوي روح ته راحته | خلاصه وي ددینادهر آفته |
| هغه عشق چه وي مقصوره پر مظهره | نو خاوند به ئي تل گرزي دربدره |
| په دنیاکښي به خاوند د ننگ وعار وي | په عقبٰي کښي به ملوم دکردگار وي |
| اوس نورا سه چه صادر داسي فرمان کړو | مجازي عشق حقیقي ته ورقربان کړو |
| مجازي عشق جوړ کړو پول دحقیقته | چه نصیب مي سي دپاک الله رحمته |
| عشق آن بگزین که جمله انبیا (۲) | یافتند از عشق او کاری کیا |
| مولنا بیادعوت کړي په استدلاله | چه مختار کړه داعشق دلایزاله |
| وه لي تو له انبیاد حق عزته | ددي عشق یه پیدا کړه شرافته |
| نو نبیانو چه مختار کړي عشق دحقه | نو وماو تا ته لاردغه مطلقه |
| ځوک چه ځي پر حقه لاره دنبیانو | نو به خود دی، شمیرل کیږي دولیانو |
| ځوک چه نقش وقدم چپ دخپل پیشوا کړي | په دنیاو آخرت به ځان رسوا کړي |
| خدایه ته موږ دنبیانو تابع دار کړي | هم ددوي دپاک حریم موږ پیره دار کړي |

(۱) وقت چه په سابق دووبیتو کښي دوه عشقه سره دخپل اثره راته وښوده یو داسي بل هاسي اوس فیصله په اختیاردباقي راکوي نو وایي عشق آن زنده الخ ،دایه تعلق وارتباط راغلو معني ته هغه داچه مولٰنا قدس سره فرمایي چه عشق دهغه ذات حي لایموت حق اختیار کړه چه باقي وابدي دي او شرابو لره دمحبت چه ستاو روح ته پرورش ورکوي هغه لره ساقي دی، نو عاقل ته سوچ وفکر پکار دي باید هغه څه اختیار کړي چه وده ته په دنیا کښي سرخ رویي وراحت وربه برخه کوي او په عقبي کښي لوړ مقام ته رسوي او هغه څه اختیار نه کړي چه په دنیاکښي تنگ وعار نتیجه وي لو په عقبي کښي ملوم دکردگار گرزي نو پر سالک لازمه چه مجازي عشق وحقیقي ته ورقربان کړي لو پول دحقیقت ئي وگرزه وي لودمظهره وظاهر ته تیرسي نوردي پر خداي پاک سپارم والسلام ۱۲

(۲) وقت چه سابق بیت کښي وعشق حقیقي ته دعوت مطلقا وکړی، اوس په بیت کښي دعوت په استدلال کوي نو وایي عشق آن بگزین الخ ،دایه تعلق وارتباط راغلو معني ته هغه داچه مولٰنا قدس سره فرمایي چه عشق دهغه ذات مختاره کړه چه تولو انبیاؤ علیهم السلام ددغه عشق ځخه بزرگي وشرف وعزت پیدا کړي نو لفظ دکارو کیا یو لفظ دی، چه مستعملیږي په کاروبار وشرف وعزت کښي یا کار په معني دتصرف وقدرت او کیا په معني دشرف وعزت دادواړه مستعمل فیه لکه داچه پر متفتش پوشیده نه ده، وقت الهي چه پیغمبرانو ددغي لاري شرف پیدا کړي ماو تا ته نو بله کمه لاره پاته ده هیڅ الله پاک دي موږ پر دغه لاره باندي روان کړي آمین ۱۲

ابو الحفاظ :مولوي صالح محمد الارغستاني .

(١) **تو مگو مارا بدان شه بار نیست ‌‌‌ با کریمان کارها دشوار نیست**

چونچه دلته یو اشکال راپیدا کیږي ‌ وهغه ته نو جواب اوس ویل کیږي
اشکال داچه دعشق لاره سخت گرانه ‌ ووصول ته دحق نه لرمه توانه
زما وصول وحق ته نلري امکانه ‌ تدنس زما تقدس دپاک سبحانه
جواب داچه مه کوه ته داسخنه ‌ چه الله ته رسیدل نه دي ممکنه
کریمانو ته داکار نه دی دشواره ‌ دوي په ښه ظن چلوي دسلوک لاره
ځو په دغه تقرب حق ته واصل سي ‌ څه چه غواړي همه واړه یه حاصل سي
چه حدیث قدسي وگوروزما وروره ‌ نو به دامضمون اسانه سي هرگوره
پاک الله واي تقرب دبنده ماته ‌ په یوه لویشت چه راځي دی زما وخواته
زه به گزدده ولورته نیژدي کیږم ‌ هم په دغه عمل گردځن راضي کیږم
کي یو په گز زما پر لوري حرکت وي ‌ په وازه به زما وده ته نزدیکت وي
په عادي تگ که بنده وي راروانه ‌ په زغستا مخ ته ورځم هغه زمانه
دغه تول کنایي دي نیک صفاته ‌ گوره چپ ولف نه ولاړسي بلي خواته

(٢) **دربیان آنکه کشتن وزهر دادن مرد زرگر را باشارت الهی بود نه بهوای نفس**

داعنوان جواب دهغه سوال لائقه ‌ چه وماوتا ته پیښ دی دسابقه
هغه داچه زرگروه لي وژل کیږي ‌ پرڅه باندي په ده زهر چیښل کیږي
نو به داعنوان سي عذرو وجوابه ‌ تناسب به سي حاصل دباب وبابه
خلص مضمون ددي عنوان دی یو حکمته ‌ چه زرگروه لي سومرپه څه علته
زما وستاسر یه راخلاص په ښه بیان کړي ‌ ادله ووشواهد به راروان کړي

(١) چونچه دسابق بیت دمضمونه څخه یو سوال راپیدا کیدي هغه داچه سره زما د تدنسه لو دالله پاک د تقدسه به زملاره دوصول والله ته ممکنه نه وي نو څنگه ماپه لایطیق مکلف کوي حاصل دجواب داچه داخبره مه کوه چه ماته اجازه دورتگ ؤ وصول والله ته نسته اودا کار ممکن نه دي ځکه چه وسالکانو کریمانو ته داکار دشوار وسخت نه ښکاري ځکه چه دوي حسن ظن پر الله پاک لري په خپل تقرب والله پاک دالله قرب یقیني گني لودا کار ممکن څه بلکه واقع بولي دحدیث قدسي پر مضمون عقیده لري چه الله پاک فرمائي (من تقرب الي شبرا تقربت اليه ذراعا ومن تقرب الي ذراعا تقربت اليه باعا ومن اتاني مشيا اتيت اليه هرولة) نو دمضمونه دحدیث قدسي معلومه سوه چه وصول والله ته منوط دي په تقرب دعبد وخپل رب ته لوپه صرف دخپل همت لوپه کرم درب لوپه حسن ظن بالله تعالي ورفع الخواطر الفاسدة بل داخبره کوم چه بايد حدیث دکتابو څخه غافله نه سي چه په دله کښي دمجسمه وو مواقع نه سي تفصیل لره ددي خبري بل مقام دی نو ځکه دي تقریر زموږ وتاته لرتباط ومعني دواړه واضح سوه دشاک گمان نه دربلندي کوم خصوصا چه بلا لفظ دي په معني دلجازي ودخل وپیژندي والسلام ١٢ (٢) ددي عنوان عقدهم دپاره ددفع دهغه سوال دي چه دسابقه پیدا سو هغه داچه زرگر څوڅه جرم نه دي کړي نو پرڅه باندي ووژل کړه سو جواب بي په مفصل دول په محتویاتو کښي دعنوان راسي دا نو وجهه دتعلق دعنوان دسابق سره سوه راغلو معني ته هغه داچه داعنوان ثابت دي په بیان کښي ددي چه وژل دزرگر همدا رنگه زهرور کول وده ته په اشاره الهي وه نه په خواهشاتو نفسانیه دصوفیه کرامو په ژبه مراد په زرگر باندي نفس وحب الدنیا دی لکه چه ویل کړه سوي کل من الهاک عن مولاک فهو دنیاک . فکان قتله ازالة حب الدنیا من السالک والمراد بالطبیب المرشد الكامل فالمعني داعنوان ثابت دي په بیان کښي داعطاء دمرشد کامل ورجل زرگر ته دزهر ولو قتل دده په اشاره الهي وه والسلام ١٢

(۱) ددي ابياتو ربط دعنوان وسابق سره ظاهردي پدي خاطرچه په ماقبل کښي خومرگ دزرگرپرلاس دحکيم وباچاذکرسوسره ددي چه زرگرخوڅه جرم نه ووکړي مستحق دمرگ نه وو نوحکيم وباچاداکارڅنگه وکړي سره ددي چه مولناقدس سره ددوارومدحه په فراخه اندازه کړي بيامولناقدس سره فرمائي چه مدح دشقي لوبه گناه ده نودپاره درفعي ددغه جنجال واشکال ودي عنوان اودده ومحتوياتوته ضرورت پاته سوه نوځکه مولناقدس سره سمدستي متصل په بيان پسي دمرگ راوړه عنوان خودي واوريده محتويات ئي داکشتن آن مردالخ.

| کشتن آن مرد بردست حکیم (۱) | نی پی امید بود ونی زبیم |
|---|---|
| وايي مرگ ددي زرگربيچاره خواره | چه پرلاس ئي دحکيم ونيوقراره |
| داپه طمعه ورجاء دنفعي نه وو | هم اميدئي دمشکل درفعي نه وو |
| نه ئي داوژل دبيري دباچاوو | نه په رمزواشاره ديوبل چاوو |
| داحکيم نه وو طامع نه وو خائفه | نه دحکم الهي سره مخالفه |
| دامرشد الهي کله بيريږي | هم په طمعه ددنياکله غوليږي |
| بلکه داکاري بنابرمصلحت وو | پداغه کارکښي مضمره لوي حکمت وو |
| بيايه هم دغه کارنه ووپرخپل سره | سمدستي به درته راسي دزړه سره |

| اونکشتش از برای طبع شاه (۲) | تانیامد امر والهام از اله |
|---|---|
| وايي طبيب چه وکړي دادزرگركاره | ني دی کړي دباچادزړه دپاره |
| وايي طبيب الهي دکردگاره | دخپل ځانه نه کوي دغه سي کاره |
| بلکه ده ته وودا امروالهامه | دالله دخوا راغلي وي پيامه |
| څه چه امرد الله وي هغه کاندي | دباچاوگدا فرق نه وي ورباندي |
| دباچاپه خاطرنه وژني انسانه | داسي کارکله کوي دخداي ولیانه |
| هوددوي سره گاه گاه امرصادريږي | په ظاهره ماوتاته بدښکاريږي |
| هم دشرعي په تقنين مناسب نه وي | هم دعقل په دوربين مناسب نه وي |
| خوبياهم باطن ئي ډک وي دحکمته | داعمل وي بنيادي بابرکته |

راغلو معني ته دبيت هغه داچه مولناقدس سره وايي چه مرگ ددغه زرگرپرلاس دحکيم الهي په طمع ورجاء دنفعي يا د مشکل درفعي نه وو بلکه خاص په امر الهي وو هم دارنگه دامرگ پرلاس دحکيم په خاطر دبيري وترس دچاڅخه نه وو بلکه محض لامرالله وو ځکه شان دحکيم الهي لوړترطمع و ترس وو ۱۲

(۲) وقت چه په سابق بيت کښي داذکرسوه چه مرگ دحکيم الهي زرگرلره په خاطرد اميدوترس نه وو نوناظرته داتوهم پيدا کيږي چه نوبه څه باندي وو نو مولناقدس سره ددفع دپاره وايي هودپاره دطبع خوښي دباچاهم نه وه داوژل بل که دامرگ خاص په الهام الهي وو نوارتباط دسابق ولاحق قائم سوراغلو معني ته هغه داچه مولناقدس سره فرمايي چه حکيم الهي لکه چه په خاطرداميد وترس داقتل نه دی کړي همدارنگه ئي دپاره دخوښي دطبع دباچاهم نه دی کړي بلکه خاص ئي په فرموده والهام داکاروکړي نوته دحسن ظن پرلاره قدم کښيږده پرحکيم الهي داگمان مه کوه چه دی نوفاعل دفعل منکرسو په دي باره کښي به مفصل بيان واوري انشآء الله تعالي اوس به فقط دحسن ظن په خاطرقانع اوسيږي ووالسلام ۱۲

ابوالحفاظ :مولوي صالح محمدالارغستاني.

**آن پسر را کش خضر ببريد حلق[1] ❊ سر آن را در نيابد عام خلق**

مولنابه يو تمثيل مورږ ته بـيان کړي ❊ په هغه باندي به خپل مقصد روښان کړي
نه په تمثيل کښي هم جواب ديوه سواله ❊ په هغه باندي به هم موږ کړي خوشحاله
سوال به داچه يو کار بولي حقيقته ❊ په الهام دي پرنيولي وي حجته
داملهوم چه ستاپه نيز يو حقيقت وي ❊ په هغه کښي به ضرورنو يو حکمت وي
نورز گرچه بـي گناه نن وژل کيږي ❊ ددي څه حکمت وماته نه معلميږي
جواب داچه دحکيم کاروي دغسي ❊ سِرئي ماوتاته نه ښکاري هغسي
ته نه گوري دخضر کاروکردارته ❊ بيانه گوري دکليم گفت وگفتارته
چه کليم په دغه سِرنه ووخبره ❊ زماوستاخخه څه گله ده پرهنره
خلص داکاردحکيم نه ووبـي بنياده ❊ آينده بـي مولناکړي راپياده

**آنکه از حق يابد او وحي وجواب[2] ❊ هرچه فرمايد بود عين صواب**

هغه څوک چه سفارت دالله کاندي ❊ څه چه وايي هغه حق دي زموږ په وړاندي
چه سفير دحق دخواوايي جوابه ❊ دانوبالکل مسلم عين صوابه
اولياء دي سفيران دپاک سبحانه ❊ هم په دوي دي منظم دغه جهانه
څه چه کاندي هغه ټول درب ويل دي ❊ پرخپل سربـاندي يه کله داوژل دي
څه چه زه يم ناخبره په حکمته ❊ دادده دپاره نه دي څه علته
حسن ظن پراولياو دسبحانه ❊ زماوستاده وظيفه اي طالب جانه

(١) دابيت جواب دهغه سوال دي چه دسابق بيته راپيدا سو هغه داچه دزرگر مرګ باپه باعث دالهام الهي کړي نوااګناه پکښي نسته زه وايم سروحکمت نوپه دغه بي جرمه مرګ کښي څه دي فعل حق خوبي حکمت نه وي حاصل دجواب داچه په فعل حق کښي دسروحکمت معلومه والی وعامه خلقو ته ضرور نه دی ډيرخله يوحق فعل ډک دحکمته وي خوزه وته هيڅ خبرنه په لرونوردي خبري دپاره مولاناقدس سره قصه دخضروموسي عليهماالسلام دتمثيل په ډول راوړه چه ماوتاته توضيح دممثل ومانحن فيه وکړي داسي وقت چه خضرعليه السلام هغه هلک مړ کړي داخو په الهام حق وومگرسروحکمت ئي وعامه خلقه ته کله معلوم وو بلکه حضرت موسي علي نبينا وعليه الصلوة والسلام سره دهغه کمالاتو ودرجاتو په سروحکمت ددغه عمل دخضرواقف نه وو همچنان په دي قتل کښي دحکيم الهي زرګرلره سروحکمت سته چه موږ ته نه معلوميږي دابيله خبره ده په دي سوال وجواب تعلق وارتباط ښکاره سو خلص معني داچه هغه هلک چه خضرعليه السلام ئي حلق وربريکړي سرددغه عمل عامو خلقو نه سو پيداکولاي نوهم دارنګه زموږ دحکيم الهي دعمل سروحکمت عام خلق نه سي پيداکولاي اوپدي کښي څه ضرر واشکال نسته ١٢

(٢) وقت چه دتمثيل په بيت سابق دامعلومه سوه چه قتل دخضرعليه السلام په امرالهي وونوعين صواب وروکه څه سروحکمت معلوم نه وواوس دا رامعلومه وي چه هرهغه عمل چه په حکيم الهي اودجانبه دحق به وحي وخطاب اجراء سي هغه عين حق ووصواب دي نوګوياکه بيان دعام بعدالخاص سودايه تعلق وارتباط راغلو معني ته هغه داچه هغه څوک چه دحقتعالي جل جلاله څخه وحي وخطاب وامرپيداکړي بياد هغه پرطبق عمل وکړي عين حق وصواب دي نو امرکول دحکيم الهي په قتل دزرگرصواب دي نه خطاحتي چه بيانوپه مدحه کښي دحکيم قباحت راسي ١٢ ابوالحفاظ :مولوي صالح محمدالارغستاني .

**آنکه جان بخشد اگر بکشد رواست ❊ نائب است ودست اودست خداست**

مولنااوس دليل وايي پرسابقــــــه ❊ غوږ پرونيســـه ښه زده ئي کړه لائقــه
روح بخښونکي ورکونکي پاک سبحان دی ❊ پرداغه بـاندي محـکمه زموږ ايمان دی
نوکـه دغـه ذات روح واخلـي خـوروادی ❊ تصرف ئي په خپل مِلک کښي هويدادی
پس ولي نائب دحـــق دي په جهان کښي ❊ لاس دده لاس دالله دي په فرمان کښي
څه چه وايي هغه وايي دسبحـــــانه ❊ بـــــالکل نه کوي ويل دخپله ځانه
څه چه کـــړي هغـــه په امـــرداللهٰ وي ❊ ځکه دی دماعداســـه بـــي فرواوي
نوطبـيب چه زرگروژني حـــق صواب دی ❊ ځکه ده ته امرســــوي دوهاب دی

**همچو اسمٰعيل پيشش سر بنه ❊ شاد خندان پيش تيغش جان بده**

مولنااوس په تمثيل کوي بـــيانه ❊ چه نومورِي مطلوب موږ ته سي روښانه
چه پرژبــه دســفيرواوري فرمانه ❊ امتثال ته ئي چمتوســـــه هغه آنه
ته نه گوري اسمٰعيل ذبيح الله ته ❊ څنگه ژرتســــليمه وي ځان واللهٰ ته
چه پرژبــه دســـفيريه واوريدله ❊ چه ستاذبحـــه ماپه خوب کښي وليدله
ذبيح څه وايي سفيرخليل الله ته ❊ دالله امرجـــاري کـــړه گوره ماتـــه
انشـاء الله ته به ماصابربيداکړي ❊ دالله فرمان بـــــه ښه ډول اجراکړي
چه خليل په يابني خطاب فرمايي ❊ ذبـــيح يابـــتي افعل ژرورته وايي
داحـــکيم الهي هم ووســـفيره ❊ وبـــاچاته ليږل ســـوي ووبشـــيره
دزرگروژنه هم په ســـفارت وه ❊ داطرافودباچادبشـــــــارت وه

(۱) وقت چه په سابق بيتوکښي حکم په جوازوصواب دقتل دخضروحکيم الهي وکړي په دي بيت کښي دليل پردغه سابق وايي دايه تعلق وارتباط راغلومعني ته هغه داچه هغه ذات چه هغه بخښونکي دروح دی يعني حق جل مجده که چيري يوڅوک مړکړي داخوجائزوصواب ولائق واره کاردي ځکه چه حـــق جل مجده مالک علي الاطلاق دي وداســـي مالک ته هرنوعه تصرف په خپل مملوک جائزوصواب دی هيڅاته مجال دچون وچراپه تصرف کښي دده جل جلاله نســـته نوولي چونچه نائب دحق دي حق تعالي لاس دده لاس دالله بللي الله فرمايي ان الذين يبايعونک انما يبايعون الله ) که څه هم نبوة ختم سوي خوولايت عامه باقي دي نودغه ولي ته هم جائزچه حـکم په وژلو ديوچاوکـــړي اودغه حکم حقيقة حکم دحـــق وي نووژل دزگر دطــبيب الهي پرلاس عين حق وصواب سو ۱۲

(۲) وقـت چه په سابـق بـيت ولي نائب وسـفير دالله وبـالي. لوحـکم دده حـــق وصواب وبـــالی لوس ئي په تمثيل باندي ښه ترااتائيد کښوي نـــو وايي همچولـــسمعيل الخ ،دايه تعلق وارتبـاط راغلومعنـــي تـــه هغـــه داچه مولنالوتاتــــــه دعوت وتبـليغ پدي کوي چه ته دســـــفيرانودالله مطيع جورســـه لوبـــي استفـــاره ئي وامرته چمتوســـــه نه گوري وحـال دخليل الرحـــمن ابـــراهيم عليه الصلوة والســـلام چه دالله جل جلاله په ســـفارت ئي وخپل گران زوي ذبـــيح الله اسمٰعيل عليه الصلوة ووويل چه (( يابني اني اري في المنام اني اذبحک فانظر ماذا تري )) اسمٰعيل عليه السلام بالفوربلااستفساره څه ورته وويل (( يابت افعل ماتؤمرستجدني اشآء الله من الصابرين )) همدارنگه دحکيم الهي کړه په سفارت نودده دامرامتثال هم شادان وخندان پکاردي والسلام ۱۲

(۱) وقت چه مولناقدس سره په سابق بيت کښي امرپه کامل امتثال وکړي اوس ئي پدي بيت کښي علت وو فائده بيانه وي نووايي تابماندالخ ،راغلومعني ته هغه داچه مولناقدس سره وايي چه وامرته دسفيرالله جل جلاله په کمال وجه تسليم سه دپاره ددي چه ستاروح پدغه وجه ترابده خندان وشادان وي لکه روح پاک ده احمدعليه الصلوة والسلام چه دکمال تسليم په خاطروخپل احدخداي جل جلاله ته خندان وخوشحال وويعني که چيري ته په مثل داسمٰعيل عليه السلام په وړاندي دنائب دحق سرکرښيږدي اوشادوخندان په وړاندي دتيغ ددغه سفير روح تسليم کړي نو به حيات لبدي وخنده جاوداني لاس ته رلوړي لکه روح پاک دمحمد صلي الله عليه وسلم دالله جل جلاله سره خندان وشادان ږموجب ددي خنده تسليم ورضا دآنحضرت صلي الله عليه وسلم په اوامرو الهيه بلندي وه اوعبوديت په مرتبه کښي بوواحد ذات وو ۱۲

## تابماند جانت خندان تا ابد ۔ همچو جان پاک احمد با احد[1]

مولنااوس علت وايي دسابقه
وايي ته داسمٰعيل غوندي تسليم سه
نوبه ستاروح وي خوشحاله هرزمانه
لکه روح دمصطفي چه ووخندانه
خودده عليه السلام تسليم اي ياره
په خلق عظيم ستايلي حق جليله
خلص تسليم عبوديت لومرتبه ده

ماوتاته بنه ارشادکوي لائقه
هم خاوندصاحب ددارنگه تصميم سه
ترابده به شادان وي هم خندانه
ځکه دي تسليم هرڅه ته دسبحانه
تيرزماترکتابت وترگفتاره
بالاڅه وربانديي ووايم دليله
خوشحالي دروح په دغه کښي پرته ده

## عاشقان جام فرح انگه چشند ۔ که بدست خويش خوبان شان کشند[2]

داتائيددسابق بيت دي اي فهيمه
واي عاشق ته خوشحالي هلته پيښيږي
وولي ده ته دمعشوق رضامحبوبه
ارادي ته دمعشوق هروقت تسليم وي
دمعشوق دنائب تيغ ته وي تياره
دخليل وذبيح حال درپيادکړه
خلص عاشق دخپل معشوق په کړه مرهون دی
څه چه وي دده په باب په هغه خوښ وي

چه دحق دنائب تيغ ته سي تسليمه
چه په لاس دخپل معشوق روح ځني خيژي
بي دده رضابل نه لري مطلوبه
پرداغه باندي نيولي ده تصميم وي
په ډيرصبروحوصله وافتخاره
په صلوة وپه سلام باندي يه يادکړه
په چلند دارادي يه هم ممنون دی
بلکه دادده دپاره يوپيشکښ وي

(۲) دابيت تائيددسابق بيت دی يعني روح خندان وشادان په کامل تسليم په دي خاطر گرزي چه عاشقان جام دخوشحالي هغه وقت چيښي چه پلاس دخپل معشوق مرکړسي اوددوي دنلقاء انفس څخه شي ښکاره نه سي اوهغه څه چه دمعشوقه ظاهرپري هغه دري وحي ؤالهام گڼي وامتثال ته ئي چمتووي خلص داچه داچه خوشحالي دعاشق په رضاپوري دمعشوق تړلي بل مطلوب عاشق لره بي رضادمعشوق نسته نوعاشق هروقت وارادي ته دمعشوق تسليم اوعمري ددغه ارادي مرهون ؛ي اوهرزمان دمعشوق په هرڅه کړوممنون وي نووقت چه مرگ دعاشق اراده دمعشوق سواوعاشق ځان مرهون دارادي گڼي اوتسليم خپله جامه ؛ولي اوپه مرگ خپل رضادمعشوق گوري نوخودبه په دغه مرگ خوشحالي کوي ددي تقريره سره سره نوگمان نه کوم چه تاته دي په معني وارتباط کښي شک پاته وي ۱۲

ابو الحفاظ :مولوي صالح محمدالارغستاني .

| شاه آن خون از پیٔ شهوت نکرد | تو رها کن بدگمانی ونبرد |
|---|---|

داجواب دشــاه دخواســه دي حــليمه
وه لــي دواړه همنظــره کارکنــان وه
مولَناچه دحــــــــکیم جواب پخواکړي
واي بـــــاچازرگروژلی نه دی یاره
بل پدي مرگ کښي حکمت بل حکمتونه
پرکرداردولي مه ســـه بـــدگمانه
دالله پاک نائبـــــان دغه ولیان دی

لکه مخ کښي چه جواب وودحـــکیمه
دزرگرپه مرگ کښي دواړه شریکان وه
اوس ئي دلته دبــاچاجواب بــرياكړي
دخواهش نفســــاني غرض دپاره
هم پدي مرگ بـاندي ښادسوه ملتونه
تي دجنگ مقابــــلي نه لري توانه
تازه ولي اختیارســوي بـــندگان دی

| تو گمان کردی که کرد الودگی (۲) | درصفا غش کی هلد پالودگی |
|---|---|

تاگمان کړي پرشـــاه چه گنهگاردی
داگمان ددی فاســــدتصوروکړه
په سره زرکښي غش بقانه لري ځوانه
چه بــاچاددیانت دی زنبــیل ســوي
چه دچاســــروکارتول مجاهده وي
ریاضت یوه کوره غونده داســـي
نواغراض نفســــاني زماســـرداره
ســوء ظن نوزماوســتاپرښوولیانو

ککڼ ســوي په گناه هم بـزه گاردی
دغه خیال ددی کاســـدتفکروکړه
چه کــوره دتصفیــي وي پرچالانــه
په غلبیل دریاضت دي غلبیل سوي
بــــیانوولي په گناه دی آلوده وي
دســالکه ســه همه عیبــونه باســي
وباچاغوندي ســالک تي نسته لاره
اثم بــــــوله پرهمه واړه نیکانو

(۱) وقت چه په سابق کښي جواب دحکیم دلوري وایه اوس جواب دباچادخواڅخه وایي نووایي شاه آن خون الغ. دایه تعلق وارتباط راغلومعني ته هغه داچه مولَناقدس سره وایي چه باچاوژل دزرگرد پاره دخواهشاتونفسانیه ونه دي کړي بلکه دپاره ئي دعام مصلحت داکاروکړي چه کامل حکمت پکښي مضمروونوته بدگمان ایله کړه اومقابله داولیاء دالله جل جلاله مه کوه ددوي وکردارته په حسن ظن کاته کوه ځکه چه دپرځله ددوي یوکار زماوستاپه نظریوڅه ښکاریږي خوپه حقیقت کښي دحکمتونوومصلحتونوخزانه وي نودزرگردمرگ مسئله هم ددغه بابه څخه ده نوهوش پکاردی چه پراولیاء وبدگماني ونه کړي اومقابلي ته ئي ځان جوړنه کړي ځکه چه دوي مقابله مقابله دالله جل جلاله ده ځکه چه دوي نائبان دحق جل جلاله دي نومقابلي توان ئي په چلپوري سته ۱۲

(۲) وقت چه په سابق کښي صفائي دباچا بیان اوس ئي دلیل بیانه وي اوښه تراتر دید دبدگماني په کوي نووایي توگمان کردي الغ ،دایه تعلق وارتباط راغلومعني ته هغه داچه مولَنا قدس سره وایي تا گمان کړي اي سالکه سره ددي چه ته اطلاع لري پرسردده اوگمان دي چه سلطان یوغیرمشروع کارکړي اودي په گناه ملوث دی. حاشامن هذاالظن الفاسدوه لي دباچالمن پاکه اوزړه ئي په انوارالهیه وروښانه کله به سره دتصفیي په باچاکښي غش دغیرمشروع پاته سي راغلوته جمي ته دالفاظوپه آلودگي کښي یاء مصدریه ده قاعده داده که آخردکلمي هاء وه بدلیږي په کاف عجیبه باندي معنایه لوث دککڼ تیاده هلددلته په معني دنهداعني ایښودل دشئ پالودگي په معني دتصفیي دافاعل دهلد نومعني داچه تصفیه غش په صفاکښي نه پریږدي ۱۲

ابوالحفاظ :مولوي صالح محمدالارغستاني.

(۱) دابيت متمم دخپل سابق دی. نوېدي خاطرئي دماقبل سره ربط حاصل سوراغلومعني ته هغه داچه مولنا قدس سره وايي چه صفاغش نه پرېږدي وه لي داریاضت وزحمت کښې ددي دپاره دي چه دغه کوره دتصفيي دزروځه زبدوزگ وکوټ هيسته کړي يعني داریاضت وزحمت کښې ددي دپاره ده چه ازاله دغل وغش دنقره ځخه دروح وکړي حاصل داچه تصفيه دقلب په رياضت ومجاهده دپاره دازالي دکدوراتودحب ددنيادقلبه وصقالة القلب په محبت دالله چه صفاسي اوپه ده کښې اسرارالله جل جلاله منعکس سي راغلوترجمي دبعض الفاظو

| | |
|---|---|
| بهرآنست این ریاضت وین جفا | تا برآرد کوره از نقره جُفا |
| دغه اوس بيت دی. متمم دخپل سابقه | بنه ئي زده کړه غوږ پرونيسه لائقه |
| وايي داپاکي نفســــي ددي دپاره | هم داپره زحـمت کشــي ددي پاره |
| چه رياضت وسلوک وکړي داسي کاره | چه زمازړه کړي داغراضوبـرکناره |
| اودنفس دخواهشـاتومي کړي خلاصه | داغيارو سه پرسرونسم لاسه |
| چه مثـال ئـي دکـوري دزرگرانـو | چه غِل غِش دزروباسـي مخلصانو |
| نوبـــاچاچه دي عمردمصطفي وي | په بـاطل اغراضوکله بـه لگياوي |
| نوته مکړه ســوء ظن پرســالکانو | هم ته مکړه بـدگمان پرمرشـدانو |
| ځان مقـرجوړکړه ددوي وتصفيي ته | هم تسليم سه داددوي وتزکيي ته |
| بگذر از ظن خطا ای بدگمان (۲) | ان بعض الظن اثم آخر بخوان |
| دخطاظنه ســه تيرســه اي هوښياره | هم دبــدگمان اوســه بــرکناره |
| وه لي بعض ظن گناه وي اي ښاغلي | داخبــره په قــرآن کښې ده راغلي |
| دالله پراولیـاووښه گمـان کـړه | هم داغه خوي وپيشه ته دخپل ځان کړه |
| وه لي ته چه وگوري ســتاپه گمانه | په ولي کښې سي ښکاره تاته نقصانه |
| هغه لوړوي زماوستاترعقل وخياله | پيمانه دحــــکمتودذي الجلاله |
| ماوتادزرگرمرگ ته يوحــــيرانه | خوهغه ووذريعه دلوي احســـانه |
| په هغه کښې دالله حکمت مضمروو | دکثيرخيرهم دغه مستقــــــروو |

نووايوجفـــا، اول په فتحـه دجيم معني ئي خلاف البروالظلم والجور مراددلته ځني زحـمت کشـي وجفا، بـضم دجيم معنـي ئـي کـف وزگ وخاشــاک وکدورة مراد ځني غل وغش وبــاطل دي راغلوحـاصل دمقـام هغه داچه کوم وقــت چه بــاچاپه منځ دعمر دمصطفي وونوبــه کله په بــاطلواغراضولگيا کيده اوکله بــي پيروي دخواهشاتونفــانيه ووکــول نومعلـوم چه قتل دباچازرگرلره مبني پرخواهشـاتونه ووبـلکه مبني پرحکمت ومصلحت وونوپرباچاحــــن ظن پکاردي نوسو. الظن ۱۲

(۲) وقت چه په سابق کښې صفائي دباچاپه نمط مذکورباندي وکړه اوسو. ظن ئي پرده منعه کړي نواوس امرپه پرېښودلودظن خطاوبدگماني مطلقاکوي خواه دباچاپه هلکه ري که دبل چانووايي بگذرالخ ،دايه تعلق وارتباط راغلومعني ته هغه داچه مولناقدس سره وهرچاته دادعوت وتبليغ کوي چه تيرســه ترظن خطااي بـدگمانه داکارخووکړه چه داآية قـراني ،( ان بـعض الظن اثم ) ووايه وه لي داآية کريمه به دادروښيي چه هغه ظن چه دواقع سرمطابق نه وي هغه گناه ده نودسو. ظنه گوښگي په کارده خصوصاً په حق کښې دهغه تصفيه سوو اشخاصوچه کارونه ئي پرحکمت ومصلحت بناوي اوزموږ ترعقل وفکربالاتر وي والسلام ۱۲

ابو الحفاظ :مولوي صالح محمدالارغستاني.

| بهر آنست امتحان نیک وبد (۱) | تا بجوشد بر سر آرد زر زبد |
|---|---|
| مولنااوس داعجیب مضمون اداکړه | ماوتاته ئي لوي خیرراپخواکړه |
| ګډوډزرچه په کوره ایشــول کیږي | مقصدداچه ښه دبده سه بیلیږي |
| غل وغش پرسـررائحي لکه زبـده | نوپه دي خاطرجلاسي ښه له بده |
| هم دارنګه چه دعشق کوره په جوش سي | دتقوي وریاضت پیاله هم نوش سي |
| نوبه ټوله نفسـاني قـوي سـي زګه | روحاني قوي باقي ددوي سي تګه |
| چه په دي کوره سي جوش یوسالک ذاته | ظلماني صفات به کله سي کي پاته |
| نوباچاچه دطبیب په کوره جوش سو | نوسره زرئي عقل فکرهمه هوش سو |
| تصفیه چه سودټولونفسـیاتو | بیانونه وژني زرګرپه خواهشاتو |
| نووژل ئي په حــکمت الهي وه | همدارنګ په طبابــت الهامي وه |

| ګرنبودش کارالهام اله (۲) | اوسګی بودی ورانده نه شاه |
|---|---|
| که داقــتل دالله په الهام نه واي | هم دامرګ په لیاقت دمقام نه واي |
| مطابــق که دحــکمت نه واي داکاره | نوباچابــه خامخاواي بــده ګاره |
| وه لي دی نووقاتل عاصي خون کاره | مرتکب دکبــیري ظالم بــدکاره |
| نوبـاچانه وځیرونکي دانسـان وو | په ظاهره کښي شـرونکي دجهان وو |
| مګراصلي حقیقـت په دي ځیرنه وو | هم دااصلي واقعیت په دي شمیرنه وو |
| دده کــارپه فرمــوده دپاک الله وو | ځکه دی اصلي بـاچااصلي بـاچاوو |

(۱)دابیت دسابق دپاره تائیدوتاکیددي دایه تعلق وارتباط راغلومعني ته هغه داچه مولنا قدس سره وایي چه په سبب ددغه صفاوریاضت امتحان وتجربه وتمیزدنیک وبدراځي وقت چه کوره په جوش سي نورزرغل وغش سرته کوي لکه زګ همدارنګه چه کوره دعشق په جوش سي نوبه نفساني خوهشات پرسرراځي لکه زګ اوروحاني قوي به لاندي باقي پاته کیږي لکه زرغوندي نووقت چه یوسالک ذات پدي کوره دعشق جوش سي نوظلماني صفات به هیڅ پکښي پاته نه سي نوباچاچه دطبیب الهي پکوره جوش سونوسره زرغوندي دهرغل وغشه پاک پاته سواودټولو نفسیاتوځخه تصفیه سوبیانونه وژني زرګرپه خپلوخواهشاتو نووژل دزرګرپه حکمت الهي بــاندي نه په خواهشاتونفسـانیه لکه ظاهرچه اذهانـو ته وراندکیږي نوتــه معتقداوسه دسوء ظن ځخه ځان بچ کړ، والسلام ۱۲

(۲) وقت دسابق بیتو مضمون داوو چه باچا دطبیب الهي په کوره جوش سوي نودقتل عمل چه په کاوه هغه په الهام الهي وونه دخواهشاتوپربناء اوس په دي بیت ددغي خبرتثبیت کوي پدي ډول وایي ګرنبودش الخ ،دایه تعلق وارتباط راغلومعني ته داچه مولنا قدس سره وایي چه که چیري داقتل دباچازرګرلره په الهام الهي نه واي بـل که دده په خپل خواهش باندي واي نوبیادی خویوعاصي قاتل خونکارڅوک بـلل کیږي بیانوباچانه دی بـلکه یودرنده ځیرونکي دانسان هسي په ظاهرکښي شړونکي دجهان مګرامرپه واقع کښي داسي نه وو بلکه دغه قتل دباچازرګرلره په فرمودالهي وونو باچاباچاوونه بل ۱۲

ابو الحفاظ :مولوي صالح محمد الارغستاني .

(۱) وقت چه په سابق بيت کښي داخبره وکړه چه عمل دباچاياد حکيم په الهام دالله نه سي نو باچا به باچانه سي بلکه يو مضر کلب عقور اورمه شنونکې به سي اوس په دي بيت کښي ردد غه خبري په وجود دمقابل په باچاکښي کوي نو وايي پاک بود الخ ،دايه تعلق وارتباط راغلو معني ته هغه داچه مولٓنا قدس سره وايي باچاپاک دخواهشاتو نفسانيه وورخخه وشهوت پرست وحارص نه وو نيک کرداره شخصيت وولکن زموږ په په ظاهر نظر کښي ډير بدبنکاره کيده پدي خاطر چه زرگرئي بې جرم ظاهري مړکړي لکن دغه عمل په باطني نظر باندي بدنه وو بلکه نه وو ځکه چه داعمل په امر الهي وود باچا په خواهشاتو باندي نه وو نو ظاهر وحقيقت سره بيل دي باچاچونچه يو شخص خاوند دحقيقت وو اود حقيقت پيروي ئې وکړه نو ملامت وملوم نه بلل کيږي والسلام ۱۲

| پاک بود از شهوت وحرص وهوا | نيک کردار ليک نيک بدنما |
|---|---|
| باچاپاک وودهواؤدشهوته | نه حارص نه ورسره وو بل علته |
| نيک کرداره په باطن دغه باچاوو | په ظاهره زموږ په فکر بدنماوو |
| په ظاهرئي بيله جرم زرگرمړکړي | پداغه خبره ماوتادي پړکړي |
| نو پدي خاطر ملوم وبدنماسو | په ظاهرشهوت پرست صاحب هواسو |
| په باطن کښي دهواتابعدارنه وو | هم دحرص ودشهوت طلبدارنه وو |
| هرچه مرگ ودزرگرداپه الهام وو | دالله دخوارغلي داپيغام وو |
| په پيغام چه دالله کوي کرداره | دانونه دي بدنمانه بزه گاره |
| نوظاهروحقيقت دي سره بيله | دظاهرفقط مل مه سه اي نبيله |
| گرخضر در بحر کشتي راشکست [۲] | صد درستي در شکست خضر هست |
| داتائيددي دسابق مضمون دپاره | چه ظاهر باطن نه دي پريوه لاره |
| په ظاهر کښي يوشي عيب وي هم تاوانه | په باطن کښي وي فايدي نفعي پريمانه |
| ته نه وينې چه خضر کښتې کړه ماته | ځوفايدي هم ددي عمل وشاته |
| لږ فسادد ډير اصلاح دپاره ياره | مجتهدلري بالکل خلاصه ده لاره |
| دکښتي سره ديوي تختي وتله | ډيراوسادې ترتمام کښتي ترتلله |
| هم دارنگه ديوه زرگروژنه | ډيره نفعه ترخراب دکل وطنه |
| خلص جزئي شردکلي خيردپاره | مقتضي هم دحکمت دغه ده ياره |

(۲) وقت چه په سابق بيت کښي عمل دباچا په ظاهر بد په باطن نه وبالي اوپدي خاطرئي دملامتي خلاص کړي اوس په دي بيت کښي اثبات ددغي خبري په تمثل باندي کوي نو وايي گرخضر الخ . دايه تعلق وارتباط راغلو معني ته هغه داچه مولٓنا قدس سره وايي چه حال دعمل دباچا داسي وولکه حال دعمل دخضر عليه السلام چه ده هغه کښتې چه دي وموسٰي عليه السلام يه بيله کرايي په کښي سپاره کړي وه ماته کړه لکن دده په دغه عمل دکښتې دپاره سل جورښته موجود سوه دکلي آفاتوڅخه بچ سوه پدي خاطر چه غصب دظالم محفوظه پاته سوه اوپر مسکين اهل ئي دزندگې ذريعه قطعه نه سوه نو لکه داعمل دخضر عليه السلام چه په ظاهر بدنما ښکاري خو په باطن کښي دخير سبب وگرزيدې همدارنگه حال دباچادې ۱۲

ابو الحفاظ :مولوي صالح محمد الارغستاني .

الراقم :سيد عبد الهادي الهاشمي .

**وهم موسی باہمہ نور وہنر** [1] — **شداز ان محجوب تو بی پر مپر**

| | |
|---|---|
| مولناواوس دعميق مضمون بـيـان كړي | په عجيب توګه به خپل مقصدعيان كړي |
| واي ته مكره عبث خوض پدي باچاكښي | مه رغيره هم دده په شـــاوخواكښي |
| وه لـي هــرڅه چه دده كاروكــرداروو | دحـــكيم الهي دخوارو زګاروو |
| دايوعلم لدني حــــكمت ئي پټ دی | دايه علم موهوبــــي علت ئي پټ دي |
| نوپدي ســــياه چاكښي مه اچوه ځانه | هم پدي تيه كښي مه ګرزه ســـرګردانه |
| بــــــــي وزروالبُتوته اغازمه كړه | بــــياپدي توروړوكښي پروازمه كړه |
| راســـه وګوره موســـي كليم الله ته | داپرنوروهنربــــــــــــــــي الله ته |
| په احكاموشـــــرعيه وخبـــــرداروو | خوخاوندد لوي كتاب نبـــي ســرداروو |
| خوبـــياهم دده ســـه پټ هغه اســـراروه | چه خضرعليه الســـــلام ته وربه واروه |
| پره قـــصه ئي په قـــرآن كښي تاكتلي | په تفســـيرويه حـــديث دي دە ويلي |
| نوبنه داچه زه وته واخلوعبـــــــــرته | خپل حـــكيم وبـــاچانه كړوملامته |

**آن گل سرخ است تو خونش مخوان** [2] — **مست عقل است او تو مجنونش مخوان**

| | |
|---|---|
| مولنانواوس ويل په داسي شان كړي | په تمثيل بـه دبـاچافعل بـيان كړي |
| واي داســورړنګه ګل وينه مه بـوله | مست په عقل دشهودبي څه مه بوله |
| يعنـــي وينـــه دزرګريه ظاهروينــه | په باطن كښي لكه ګل داسي رنګينه |
| وه لي داوينه نعمت سبحـــــاني وو | تويه دل ئي په حـــكمت ربـــاني وو |
| نوودي وينه ته بـــدويلاي نه ســـو | هم بـــاچاته بـــدوردويلاي نه ســو |

(۱) دابيت. تحقيق دتمثيل پداسي دول كوي چه حكم سابق بنه ترابه ثابت سي داسي وقت چه عمل دخضرعليه السلام په الهام مردودنه سوسره ددي چه حكمت ني واولو العزم پيغمبر عليه السلام مكشوف نه ووهمدارنګه عمل دحكيم الهي وباچامردودنه دي كه څه مارتانه ني حكمت مكشوف نه دی دايه تعلق وارتباط راغلومعني ته پدي باره كښي وڅه بيان ته ضرورت سته اول بايد داخبره زده كړوچه لحكام الشرعية چه متعلق په افعال پوري دي پردوه قسمه دي يواحكام كليه چه هرچاته عمل وربـاندي لازم وي لكه مثلا الولد للفراش وللعاهر الحجر كه څه په بعض موادكښي حكمت مختلف ګرزي لكه په ولدكښي دوليدي دزمعه داعلم درسل عليهم السلام وودااعلي واكمل دئ بل حكم متعلق په افعالوجزئيه پوري وي لكه ماتيدل دخضرعليه السلام دغه كښتي لره داعلم صاحب لره دعلم لدني حاصل لكه خضر عليه السلام داحكم خاص په صاحب پوري دغه مقـام دي فقـط دي په دلغه حـكم عمل كوي دلعم لازمـه نـه ده چه داعلـم بـه رسـل نه حـاصل وي بـلـه داخبـره بـايدزده كړو چه حـكم جزئي په الهام منع كښي نرسـعت جائز وروقـع ورپدي خاطرچه په هغه وقـت تعددشـرائعو جائزسـلكه واقـع وولكه رسـالت دموسي عليه السلام وخپل امـت تـه وو خضر عليه السـلام په خپل حـق كښي په عمـل دهغـه څه مامـوروو چه دده تـه نـبي الهام كيده لمليس نرسـعت والمرممكـن نـه دي ځكـه چه بـعثت دسـرور كائنات علم هيڅوك دشـرعي څخه ددە خارج نه دي هيچاته جائزنه ده چه په الهام مخالف دشرعي عمل وكړي نوپدي زمان كښي وكړي الا په مباحـاتوكښي دشـريعت لوټليږندلي چه قـصه دبـاچامنع كښي نربعثت وه لكه قصه دخضر عليه السلام چه منع كښي وه لوحـكيم الهي صاحب دعلم لدني وروقـت چه دي دامضمون پرصحيفه دخاطرنوشته كړي نوڅه اشكال پدي مقام كښي نسته كمال تفصيل لره بـل موضع دي نو خلاصه معني دبيت داده وقت چه فكردموسي عليه السلام سره ددونه علم وهنره دده څخه محجوب سوسروحكمت دعمل دخضرعليه السلام نوچيري زه وته نوته پدي مقام ووادي كښي بي وزروالتبوته مه كوه ۱۲

(۲) دابيت تمثيل دي دپاره دتوضيح دسابق دايه تعلق وارتباط راغلومعني ته هغه داچه مولناقدس سره وايي چه دزرګريعني وينه دزرګرسورګل دي په حقيقت كښي ځكه چه تويه دل پلاس يعني امردمعشوق يعني الله ياحكيم دي نوته وينه مه ورته وايه لكه ظاهره وينه چه وينه ښكاريږي همدارنګه عمل دباچايوبنه اونيک كرداروودمصلحت وحكمته ډک وونوته بدمه ورته وايه لكه ظاهره چه بد ښكاريږي همدارنګه باچامست دعقل وومجنون وده ته مه وايه يعني پاچاپه حقيقت كښي يوعاقل حكيم شخصيت وومرګ دزرګر ني په مصلحت عامه اوحكمت باهره باندي وكړي نووده ته مجنون مه وايه لكه ظاهره چه مجنون ښكاري ځكه ظاهرآ ئي وينه دبيګناه توي كړي داخوكاردليوني دي ۱۲

| | |
|---|---|
| گر بدی خون مسلمان کام او | کافرم گر بردمی من نام او |
| په تینګښت باندي تائید دسابق وايي | په قسم باندي ومونږ ته دافرمايي |
| که خون قصدواي دباچاد مسلمانه | په قسم که ئي نوم راوړم پرزبانه |
| مګر خون ئي نه وو قصد بل مصلحت وو | په داغه کښي دالله پاک لوي حکمت وو |
| په فرمان ئي دالله وکړی داکاره | نو به ولي دی پدي ګرزي خونکاره |
| نوسوداواوانديښني دزړه بهر کړه | دازمايه ويناباکله باورکړه |
| داحكيم وباچادواړه برخورداره | نائبان دي دالله پروردګاره |
| سوء ظن دځانه هسته کړه بيدارسه | دالله دنائبانو خدمتګارسه |
| خداي دي موږ کړي ددي ډلي نوکرانه | پاک الله دي موږ ددوي کړي چاکرانه |
| مي بلرزد عرش از مدح شقی[2] | بدگمان گردد ز مدحش متقی |
| په تائيد کښي دسابق بيت اوس ويل کړي | ومضمون ته ئي په دي ډول کتل کړي |
| واي په مدح دبدبخت چه عرش لرزيږي | متقي يه په صفت بدنامه کيږي |
| نو به څنګه زه صفت ددي بدبخت کړم | نوبي څنګه زه بيان دتاج وتخت کړم |
| نواصلي واقعيت دادی نيک کرداره | چه باچانه دی بدکارنه دی خونکاره |
| دحكيم الهي پرقدم دروميّ | هم دده په اشاره هرمقصدمومي |
| نه په خپل غرض دوينو تويه دل کړي | نه دنفس په خواهش بدلورته کتل کړي |
| دايقين دی په قسم سره ئي واوره | داحكيم وبناچامه بوله بدكاره |

(۱) وقت چه ئي په سابق کښي عمل دباچاپه حکمت وسره ګل وستايه دخطاوګناه وخونه ئي بيخي ليري وګوښه کړي اوس تائيدددغي خبري په تينګښت وقسم باندي کوي نووايي ګربدي الخ .دايه تعلق وارتباط راغلومعني ته هغه داچه مولناقدس سره وايي چه پاچامرګ دزرګرپه فرمان الهي دلوي مصلحت وحکمت دپاره کړي قصدئي مرګ دخواهش دپاره نه وونوپدي مرګ باندي باچاخوني نه بلل کيږي که چيري بالفرض دپاچاخون دمسلمان قصدواي اوددغه زرګر مرګ ئي دخپل خواهش دپاره کړي واي نوزه قسم کوم چه ماپه نوم ددغه باچاپرخوله نه واي راوړي فضلاچه مدحه به مي کولاي اوس دي خبري ته بايدخبرسوچه بعض علماء ومصراع ثاني پرمبالغه شعريه عمل کړيدي مګردالتي ومناسب دشانه سره دبزرګنوبلند مکانونه ده نوتوجيه به دلوي چه وقت چه حسنات الابرارسيئات المقربين مقرره لوشته سوي نويقين چه سيئات ابرارنسبت واحوال ته دمقربينومثل دکفردي لهذانوشرک خفي په حق کښي دزهادوعبادو معاف دي لووعرفاوته مثل دشرک جلي مستقبح ومستهجن ښکاري والسلام ۱۲

(۲) دابيت تائيددبيت سابق دايه تعلق .لرتباط راغلومعني ته هغه داچه مولناقدس سره وايي چه عرش لرزه کوي دخفقان په خاطردمدحي شخه دبدبخت وفاسق نوکه چيري خونريزي دباچاکلرواي نوبه دي شقي واي اودمدح شخه دشقي عرش په لرزراځي نوزه به څنګه نوم دده پرخوله راوړم همدارنګه دمدح شخه دشقي موجوديږي سوء ظن متقي الصالح لره اي يوقع الصلحاء في سوء ظن حاشاه حضرت رسول کريم صلي الله عليه وسلم فرمائي اذمدح الفاسق غضب الرب واهتزلذالک العرش کيف يمدح الفاسق ويغرالناس خوباعث وسبب ددغه کارحب ددنيادي الله دي نجات ځني راکړي آمين ۱۲

| | |
|---|---|
| شاه بود شاه بس اگاه بود [1] | خاص بود خاصهٔ الله بود |
| مولنا بیارده وي په خوش زبانه | هغه څه چه پرباچاسوي گمانه |
| واي باچانه ووشقي نه ووغافله | نه ظالم ونه روان ووپربـاطله |
| داباچاداسي باچاچه ډیراگاه وو | دخاصه ووبند گانو دالله وو |
| پاته قتل دزرگرسوچه تالیدلی | خوهغه ئې دالله په فرمان کړی |
| نوباچاشخص مقبول دپاک الله وو | هم دی اهل دریاضت وودتقوي وو |
| نوپرداسي شخص مه سه بدگمانه | چه هغه دحق پرلاره وي روانه |
| بدگمانه پاک الله دی تهدید کړی | په قرآن کښي موپه سترگو دی لیدلی |
| آن کسی را کش چنین شاهی کشد [2] | سوی تخت بهترین جاهی کشد |
| چه دشاه حال ئي بیان په زیروزور کړي | اوس ئي حال ته دزرگرداسي نظر کړي |
| وایي شاه عادل چه ووژني یو کسه | دهغه دپاره دامنصب دی بسه |
| بهترین بخت بي په برخه ددنیاسي | بهترین تخت بي نصیب هم عقباسي |
| وه لي دي سوقرباني دمصلحته | هم په ده باندي برپاي سولوي حکمته |
| خصوصاً چه دغه شاه داسي سلطان وي | چه عادل وي هم حکیم اهل عرفان وي |
| نوزرگرته نیک بختي سوه وربه واره | چه مقتول سوددي شاه بزرگواره |
| وه لي مرگ ئي په حکمت الهي سو | خامخانوخیرده لره باقي سو |
| ومقتول ته دخضروکره نظره | څونه خیروو په دغه کښي مضمره |

(۱) دابیت په مثل دسوابقو تائید دسابق اورددبدگماني دي پدي خاطرئي تعلق وربط سوراغلومعني ته هغه داچه مولناقدس سره وایي چه باچاووپه حقیقت وونفس الامر کښي اوداباچاډیرخبرداروفهمیده شخصیت وو اودخواصو خلقو څخه وواوخصوصیت خاصه ئي دحق جل جلاله سره درلودي نوحاصل دمقام داچه دغه باچا شقي نه ووظالم نه ووبلکه سلطان غیرغافل دحقه څخه ووهم دارنگه سلطان ووزائد الیقظة یوخاص ومقبول شخصیت ووهم دارنگه داهل الله ودخاصه دالله وو نوباچاخوپخپل ذاتي چوکاټ کښي دغه سي څوک ووارغلو هغه څه ته چه خلق ئي په بدگماني غور څه ولي دي چه هغه نوقتل دزرگروو هغه خوتاپه کراتومراتو وپیژندی چه سبب دبدگماني نه سي کیدلاي نوبدگماني پرباچاخطاوو غلط کاردي ۱۲

(۲) پس پربیان د احوالودباچاپه وحال ته دزرگرنظروکړي لوبیان ئي په داسي دول کوي ان کسي راکش الخ ،پدي خاطر تعلق وارتباط بسته سوراغلومعني ته هغه داچه مولناقدس سره وایي چه هغه څوک چه ددداسي حکیم لوباچائي عادل په لاس دامرالهي په منظور نه دخواهشاتونفسانیه په خاطر مړکړه سي نودغه مقتول وطرفته ته دتخت اوبهترین منصب ته ورسیدي یعني وژل ددغه زرگر.ده په حق کښي مفیددي ځکه چه وده ته بهترین منصب حاصلوي ځکه چه دي دیولوي مصلحت اودیولورحکمت الهي په خاطرقرباني سوراغلو الفاظوته دبیت کشد ،په مصراع اول کښي په ضم دکاف اسم دقتل دي وکشد الثانیة په فتح دکاف فعل مضارع مفردمذکرغائبه مصدرئي کشیدن دي لفظ دتخت په بیت کښي په بعض النسخ په لفظ بخت دواره صحیح دي جاه معنایه منصب ۱۲

ابوالحفاظ :مولوي صالح محمد الارغستاني.

(۱) وقت چه داتوهم باقي پاته ووچه وقتل ته دداسي بيګناه شخص پدي مقام ځنګه شرعه جوازورکړي دابيت نودافع ددغه توهم سونووايي قـهرخاصي الخ .دايه تعلق وارتباط راغلومعني ته هغه داچه قـهرخاص لکه مرګ دزرګرد پاره دلطف عام لکه صحت دباچاپه شرع کښي دهغه وقت جائزووتوته ګام داعتراض پورته کړه يعني اعتراض مکوه په بعض حوالي ووکښي دارنګه ليکلي سوي دي چه پدي بيت کښي تنزيل چه دافعل دباچادشريعت سره دسرورِکائنات صلي الله عليه وسلم هم مطابق دي ځکه په شريعت مطهره کښي درسول الله صلي الله عليه وسلم دپاره ددفع دضررعام قـهر پرشـخص خاص جائز دی لستدلال ئي په قصه دعرنيينوريسل دی کـه ماوتانبه خيرسوېدي بـه قـناعت ونه کړوځکه چه په قـصه کښي دعرنيينو اول دمنـوخيت خبـره سـته دوم عرنيينوخود قتل وغارت جرم کړي وو زرګرخوځه جرم نـه وو کړي فقـط ئي دځپل معشـوق دپاره مړکړي نواصلي جواب هغـه دي چه پخوا هم موږ يادونـه درته کړه چه دقـصه د باچامغ کښي ترسـځت وه شرعه په وقت هم دغه سـي وه والاپه شـريعت مطهره کښي زموږ دپاره دصحـت دمعشـوقـي د باچاقـتل دبـيګناه جائز نه دی نومراددمولٰناقدس سره دشرع ځخه په بيت کښي شـرعه دهغه وقـت ده نه شرعه دسرو. کائنات صلي الله عليه وسـلم نوبيت دتنزيل دپاره نه دي بلکه دپاره ددفع نه دجوازپداغه شرع کښي والله اعلم ۱۲

| **قهرخاصی از برای لطف عام (۱)** | **شرع میدارد روا بگذار گام** |
|---|---|
| موږ زده کړي دزرګرمرګ په حـکمته | اوس رابنه يي چه روا په شـريعته |
| چه ظاهروبـاطن دواړه برابرسـي | نوبه شک وشبهه پورته سراسرسي |
| وايي قـهرخاص دعام لطف دپاره | شـريعت دی روا کړي زمايا ره |
| نوقـدم داعتراض دي درپرشـاکړه | هم دي خپل بدګمان ليري دباچاکړه |
| پرشـرعي کارنوته وه لي منتقـدېي | پرداخپله رايه وه لي معتقـديي |
| نوراځه دباچاکاربـوله پرحقـه | په داغه بـاندي فتوي وکړه مطلقـه |
| خوبياهم احتياط لازم دی په فتواکښي | خوبياهم فکرواجب په دي ويناکښي |
| په فتوي کښي تعجيل هيڅ نه دی پکاره | لکه نن چه رائج سـوي دغه کاره |
| نوفي الحـاله بـه په دي قـناعت وکړو | انشـآء الله پس بي پره اشاعت وکړو |
| **ګرندیدی سوداو در قهر او (۲)** | **کی شدی آن لطف مطلق قهر جو** |
| مولناواي دبـاچاکارخردمنده | په باره کښي دزرګردي ډيرسودمنده |
| وايي قهردبـاچاي بـختوره | ګټوردي په بـاره کښي دزرګره |
| وه لي دابـاچانائب دپاک مولاوو | نودده قـهرهم قـهردالله وو |
| دالله قـهرمخلوط دی په رحـمته | خوپه دي قـهرتطهيردمعصيته |
| نوداقهردباچاحـتمي ګټ منددي | دزرګردپاره خامخاسـودمنددی |
| هم په پاک سي دازرګردمعصيته | هم بـرپاي بـه سي دعامومصلحـته |

(۲) وقت چه په سابق بيت فائده قـهرخاص دلطف عام دپاره ذکرکړه اوس په دي بيت کښي فائده دقـهرخاص دمقهور دپاره ذکرکوي نووايي ګرنديدي الخ ،دايه تعلق وارتباط راغلومعني ته هغه داچه که چيري باچاچه نائب دحق دي ګټه دزرګرپه داخپل قهرکښي پرده نه واي ليدلي نوبه کله دالطف مطلق قهرغوښتونکي سوي وايي يعني قهردالله مخلوط په رحمت دی ځکه چه الله رحيم مطلق دی نوکه چيري په قهرکښي دزرګررحم پرزرګرنه وي نوالله به رحيم مطلق نه سي ځکه ، قهرپرزرګربه ماده خالي درحمه ځخه سي داخوباطل ئومعلوم چه په قهرکښي دباچاچه نائب دحق دي نفعه دزرګر سته چه هغه نوتطهيردګناه ځخه دي مثلاهم دغه رنګه قهردمرشدپرمسترشدقياس کړه والسلام ۱۲

ابو الحفاظ :مولوي صالح محمد الارغستاني .

(۱) دابیت تمثیل دسابق دپاره دی دتوضیح دپاره راتګ په سوي دي دایه تعلق وارتباط راغلومعني ته هغه داچه مولٰنا
دتمثیل په ژبه وایي چه کوچنی لرزه خوري دبیري څخه دنیشتردخون کش په سخت اضطراب وبدحالت کښي وي خو
بیایه هم مشفقه مورپه دغه غم وفریادکښي دځپل بچي خوشحاله اودمقصودخاونده وي ځکه چه په هغه فائده مخلوط
په دغه ظاهري قهرمطمئنه وي همدارنګه قهردپاچاپرزرګرهمدارنګه حال دمرشدداطفالوسره دطریقت ځکه چه هغه هم
مطمئن په هغه څه وي چه وروسته ترنشتردریاضت راځي نوپه هغه باندي خوشحاله وراضي وي همدارنګه بنابرعموم

## طفل می لرزد زنیش احتجام[1] — مادر مشفق دران غم شادکام

مولٰنااوس په تمثیل کوي توضیحــــه — هم په دي تمثیل کوي موږ ته تشریحه
وایي کوچنی دد ډیره وهمه سه ریږدیږي — دنشـــتره درګزن ســخته بـــیریږي
خوبـیاهم مشفقـه مورډیره خوشحـاله — په دي غم کښي مقصودمنده وي برحاله
په لـرزه دبچي هیـڅ نـه زهیریـږي — ني په چیغ وبـوغ ددي زړګی زوریږي
وه لي داوي مطمئنه په صحــــــته — دبچي دپاړي بـــولي مصلحـــــته
که بچي څه داحـــال بـــولي اناوته — خـــوډده پاره ده کاملــــه ګته
هم دارنګه حــال دشــاه حــکیم زرګره — همه واړه کړه قـــیاس پردي خبـــره
کــه ښه وګوري ودي تمثیـل مثـال تـه — بیابـــه نه ګوري یمین وشـــمال ته
نوبــه شـک وشبــهه ستادزړه بهرسـي — بیقــرارزړه به قراربــه بـهره ورسـي

## نیم جان بستاند صد جان دهد[2] — آنچه در وهمت نیاید آن دهد

مولٰنااوس وزرګرته وایي داســـــي — وایي مه اوسه خفه مقصددی داسي
نائب نیم روح درسه اخلي سل به درکي — پدي لوي نعمت به تاهم بهره ورکي
نیم روح ،روح جســــماني مادي لرلی — په قفس کښي دبدن بندي راغلی
ددي نیم روح په بـدل څه درکړه کیږي — هغه داچه ســـتاپه وهم نه څرخیږي
نه به داسي نعمت ستاستر ګولیدلی — نه صفت به ئي غوږ و،وي اوریدلی
درهرعقــل وقــیاس بـــه وي وتلی — نه پرزړه بـــه دبشـــرورڅرخیدلی

هرڅوک في العــاله تکلیف دآینده منفعت په خاطـــربرڅان لودو ستانوقبــلوي هم ئي برداشه وي حتي تکلیف په احکام وانعال دلسلام ددغه بابه دی والسلام ۱۲

(۲) وقـــت چه مولٰناد مثاله فارغه ســـولوپه سابق بیت کښي دد بیان دګتي دزرګرپه قـــهر کښي دبـــاچاکري وو نوپه لوسني بیت کښي بیان دمقدارډغې ګټي راته کوي نووایـي نیم جان بســتاند الخ .دایه تعلق وارتبــاط راغلو معني ته هغه داچه مولٰنا قــدس ســـره وایي چه ګټه دزرګرپه قــهرکښي دبـــاچاپوپو معمولي دول نه وه بــلکه پدلســي اندازکښي وه چه بـــاچا چه نائب دحـــق وونیم روح ئي دزرګره واخیستي نیم ئي پدي خاطربـــولم

چه داخوروح جسماني په ماده لرلي اوپه بدن کښي بندي سوي اودځپل اصلي تجرده څخه په دي نقصان کښي لویلي
نونیم بي لاوه لي نه بولم اوددغه نیم روح په بدل کښي سل روحه ورکوي یعني ددي لږ تکلیف په بدل کښي ډیرنعمت
ورکوي اوددي لږ قهرپه بدل کښي ډیررحم ورباندي کوي دصوفیه کراموپه ژبه مرشدله تاڅخه نیم روح اخلي خوپه بدل
کښي سل درکوي یعني ستامکدرروح واوج ته دصفاپورته کوي چه هغه نوستادقرب سبب وخالق ته سي همدارنګه
سبب ستادسعادت سي هکه څه پلاس درکړي چه نه سترګولیدلي نه غوږواوریدلي نه پرزړه دچاورڅرخیدلي والسلام ۱۲

| | |
|---|---|
| تو قیاس از خویش میگری ولیک[1] | دور دور افتاده بنگر تو نیک |
| مولنا اوس ماوتاته نصیحت کړي | په ښه ژبـه ماوتاته داوصیت کړي |
| واي ته مه قیاسه وه نائب پرڅانه | حاشـا الله داڅه رنګه ګمانه |
| زماوستاتر فکرلوړ د نائب کاردی | ماوتاته یوسوچه سنجش په کاردی |
| چه زه وینم دولي څخه یوکاره | په ظاهر زماد،دماغه بـر کناره |
| نوزه و،وایم چه زمافکرغلط دی | حق په څنګ کښي دولي فقط فقط دي |
| داسي نه چه پرولي کړم اعتراضه | تیره خپل ځان راته ښکاري ترمقراضه |
| خلص دخپل قیاسه مه وایه کلامه | ډیر په لیري دولي دلوړ مقـامه |
| بل تسلیم سه دولي واراده ته | هم غوږ ونیسه دده وفرموده ته |
| پیشتر آ تا بگویم قصهٔ[2] | بو که یابی از بیانم حصهٔ |
| مولناواي وړاندي راسه زماوخواته | دغلط قیاس قصه وښیم تاته |
| نوبه ته نه کړي ولیان پرڅان قیاسه | داقصه به ځان ته ونیسي مقیاسه |
| لوسني مضمون به ښه درته روښان کړم | په بسته لویه قصه به ئي بیان کړم |
| نوبه شک ووشبهه ستادزړه سي پورته | دتشویش قاصدبه رانه سي ستاکورته |
| اوس ته څیرسه قصه څنګه سوه تمامه | مولناڅنګه پیودلی دي کلامه |
| دداووبیتوعجب مناسبت دی | دسابق هم دلاحق موافقت دی |
| که لوړوګورم حصي ته هم پرځاي دي | که ټیټ وګورم قصي ته هم پرځاي دي |

(۱) وقت چه په سابق کښي حقیقت دعمل دباچاپه قسم قسم لهجوراته بیان کړي اوس دپاره دتنګښت ددغي خبري وصیت راته کوي په نه قیاسه دعمل دنائب دحق پرعمل دخپل ځان ځکه چه په مابین کښي ددوي بون بعیددي نووایي تو قیاس الخ ،دایه تعلق وارتباط راغلو معني ته هغه داچه مولناقدس سره فرمائي چه ته قیاس دخپل ځانه بیله کومي علاقي واشتراکه مه جوړه وه ولي پدي قیاس کښي ډیرلیري لویدلی ئي کاته وکړه اوښه کاته وکړه یعني ته قیاس دجناب قدس پراهل انس همدارنګه قیاس دافعالو داصحاب القرب پرافعالو دخپل نفس قبیحه مه کوه تـه نوګنان پر دوي دخپل ځان کـوي کلاوحاشا الکن دفهم ددغه لسراروته په بعد زائدترحدواقـع سوي یي نوسترګي مسحه کړه ښه وګوره احوال مختلف دي فرق په مابین کښي دثریاوثري ډیردی والسلام ۱۲

(۲) وقت چه په بیت سابق کښي بیان دوصیت په نه قیاس دعمل دنائب دحق پرخپل عمل وو اوحکم په غلطي ددغه قیاس وواوس پدي بیت کښي بشارت راکوي چه نه صحت دقیاس اوغلطي ددغه قیاس به په څنګ دقصي دروښیم دایه تعلق و ارتباط راغلو معني ته هغه داچه مولناقدس سره وايي چه ته اي مخاطبه په وړاندي زماراسه چه زه وتاته یوقصه ووایم چه هغه نوقصه دطوطي وبقال چه اوس پرولاړ یونوشاید چه زما دبیانه دقصي به ته حصه دغلطي دقیاس مذکورپیداکړي خلاصه دمقام بطلان دقیاس داولیاء الله ووپرخپل ځان باندي اواخبارو بشارت په اثبات ددغه بطلان په قصه باندي دابیت همدارنګه ترده مخ کښي بیت دواړه تناسب دسابق ولاحق سره لري لکه داچه ښکاره ده ۱۲

ابو الحفاظ :مولوي صالح محمد الارغستاني .

(۱) وقت چه دباچاوزر گرپه قصه کښي ظاهرآ منشادبد گماني وباطل قياس موجوده وه نو اهل ظواهروېدغه قصه ددادواړو امرينو توهم کاوه نو مولٓنا قدس سره په خپله قصه کښي ځاي پرځاي ددغه بد گماني اوباطل قياس دفعه کوي ازيات ترکيزوربـاندي کوي اومهتم بالشـان امرئي گڼي پدي خاطرئي دپاطل قـياس په بـاره کښي بسته قصه راوړه نو داقصه هم دمتعلقاتو ومربوطاتو دسابقي قصي سوه نوپدي خاطر داحکايت دسابق حکايت سره کامل تعلق وارتباط لري راغلومعني ته هغه داچه دابه بيان کښي دحکايت الخ ،بقال چه په اصل کښي بمعني

## حکایت بقال وطوطی وروغن ریختن طوطی دردکان واعتراض بقال وخاموش ماندن طوطی [۱]

چه قصه ئي سابقه سوه سرانجامه … په بنه نظم ونسق پردي ځاي سوه تمامه

اوس نوغوږ نيسه دبلي قصي واره … دطوطـي وهـم دده ددکانـداره

تناسـب دحـکايت وحـکايته … مخفـي نـه دي پرخاوند دځراکتـه

په سابق تردي عنوان موږ اشاره کړه … ځوتړون وارتبـاط مونداره کړه

خلاصه که دقـصي دي وي پکاره … فکرجم کړه منتظر اوسـه سـرداره

دقصي اصلي بنيادباطل قياس دی … دجمله نقـل داغه تکې اسـاس دی

مولٓنا اکـوي درس بنه ورتـه گوره … دطوطي غوندي قـياس مکوه وروره

دباطلو قياسوسـه ځان گوښه کړه … حقيقـت وذهانت خپله پيشـه کړه

مولٓنا په حـکايت کښي حق شناسه … بـيان کړي مثالونه آن دپاسـه

ماوتاته دعبـرت عجبـه درس دی … دهرخه دپاره ماوتاته بـس دی

## بود بقالی واورا طوطی [۲] … خوش نوای سبز و گویا طوطی

يوعطار طوطي درلودي داسي رنگه … خوش اوازه ږغيدی بـه هم په شـرنگه

زرغون رنگه ځليدی لکه بـخمله … په دکان کښي هم دده سـره ووملـه

مولٓنابـي نوراوصاف راته بيان کړي … دده حـال بـه ماوتاته بنه روښان کړي

پربقال به داطوطي وه لي گران نه وي … هم دده په دردبـي وه لي خفگان نه وي

داطوطـي چه وومـلـگري دعطـاره … ښائسته هم خوش اوازهم خوش گفتاره

دعطاردی په هرکارکښي مددگاروو … نويـي خودعطاردخـوښي طرفـداروو

دبـسزي فروش دی مراددلتـه ځني عطار دی لکه صاحب دمعجم داغه معني دبقـال هم بـللي ده وطوطي چه طوطي دپیشي دبيري روغن په دکان کښي توي کړه لوبقال اعتراض وتهديدحـتي وهل دطوطي وکړه لوطوطي دهغـه تهديده ځخـه گنگوالـی اختيارکـړي خلاصه دقـصي دغه يوه خبـره ده چه افعال داهـل الله پرافعالـو خپل قـياس کول خطا کاردی والسلام ۱۲

(۲) تعلق وارتبـاط ددي بيت دخپل حکايت دعنوان سـره ښکاره دي حـاجت بـيان ته نـه لـري راغلو معنـي ته هغه داچه يو عطار وواوده لـره طوطـي وروېدي صفاتو موصوف وواول خـوش اوازه دوم زرغـون رنـگه دريم ښه ويونکي اوخبري کونکي په نوروصفاتوبي هم راته بيان کړي توصيف دطوطي په اوصافو کثيره پدي خاطر کوي چه دغه بقال په ډيرغم واندوه اوپه بي صبره خفگان کښي پرسکوت دطوطي حق په جانب سي اوزه وته ئي معذوروبولوځکه چه شي موصوف ومرغوب احق په دي دی چه پرنيست ئي غم وسي ۱۲

ابوالحفاظ :مولوي صالح محمدالارغستاني .

| بردکان بودی نگهبان دکان | نکته گفتی باهمه سوداگران |
|---|---|
| مولٰنادطوطـي نورکـوي صفتـه | ياده وي په حفاظت ونيک عشرته |
| واي طوطي چه بــه ووپاته پردکانه | پرداغه ځاي پيره دارهم نگهبانه |
| په خوږوخبـروگرووه انســانانه | هم وده ته وه مائل ســوداگرانه |
| خريدوفروخت طوطي په خپل ويناکوله | هم بـائع ومشـتري يه کړه منله |
| په نکته وبــاريکي دده ويناوه | هرکلام هرخبـره ئي رشـتياوه |
| وبقـال ته بـيغمي وو،وسـايي وه | هم دده دپاره ډيره ســوکالي وه |
| هم حـافظ هم يوبـيداره چوکيداروو | بـي بهاووبـي ننخايوپيره دارو |
| نوبـه څنگه پربقـال بـاندي ووگرانه | خوږده باندي مشکل حل ددکانه |
| درخطاب آدمی ناطق بدی | درنوائی طوطیان حاذق بدی |
| دطوطي يوبـل صفت رابنوول کيږي | په بنه گفـت ووبنه اوازيـاده ول کيـږي |
| په خبـروکبني انســان واري ناطقـه | په اوازترنورطوطيانووحاذقــــه |
| فصاحت ئي په لهجه کبني ووبالکله | مهارت يي په نغمه کبني ووبـــالکله |
| خلص طوطي دبنواوصافوخزانـه وه | دکمـــال وودجمـــال يوپيمانــه وه |
| وبقـال ته بـه خودخوبن ووترهرماله | هــم وده تــه په مرغـوب ترهرمنالــه |
| نودده پروهل خودبــــه ووپښيمانه | هم دده پرترټل خودبـــــه ووپښيمانه |
| مسـئله دپښيماني بـي درته راسـي | په تفصيل باندي پي واوري داسي هاسي |

(۱) پدي بيت کبني هم توصيف دطوطي په صفاتودی لکه په سابق پيت کبني لکن سابقـه اوصاف ده طوطي من حيث هوبي مداخلي ددوکان ونورکاروباراودااوس اوصاف دطوطي په حيث دنگهباني ددوکان يادسوداگري ددکان دايه تعلق وارتباط راغلومعني ته هغه داچه دغه طوطي به کوم وقت پردکان ووصاحب ددوکان به غائب وونودغه طوطي به محافظ ددکان وواودبائعانوومشتريانوسره به ئي باريکي اولطيفي خبري کولي پدي نو طوطي دپنځوصفتوخاوندسو،نوددومره صفتوخاوندطوطي به نوڅنگه پربقال گران نه وواوپه سکوت بي ولي سرگردان نه وو ۱۲

(۲) پدي بـبت کبني مثل دسابــق غوندي توصيـف دطوطـي په صفاتـودي لکن دانظر وخطاب تـه يانظرږخپلو بـني نوعوته لوسابـق نظرونگهبـاني ته يا قـطع نظروشـئ اخرته دايه تعلق وارتبـاط راغلومعنـي تـه هغـه داچه مولٰـناپه توصيـف دطوطي په صفاتږدلسي وايـي چه دغـه طوطـي په مخاطبــه کبني د خلقوسـره مثل دانسـان واري خبـري کونکي وو اوپه خـوش لوازي کـبني په مابين کبني دطوطيانو حــاذق وماهرږيعني دفصاحـــت په لهجه ئي خبـري کولي لوزيات مهـارت ئـي په نغمـه وخـوش لوازي کـبني درلودی خلص داچه داطوطي دښواوصافويوخزانه وه اوپه کمال وجمال کبني نمونه وه نوبقــال ته خودخوښ ترهرمال ومنال وونوپروهلوبي خودپښيمان وولکه پښيماني چه بي ته په آينده کبني په تفصيل باندي واوري منتظرلوسه نوبه بقال په دادومره غمگيني وتشويش کبني پريومرغه معذوروبولوڅکه چه لوسرمايه ئي دلاسه ورکړي ۱۲

ابوالحفاظ :مولوي صالح محمدالارغستاني .

خواجه روزی سوی خانه رفته بود(۱) — در دکان طوطی نگهبانی نمود

دصفته دطوطي چه ســـــور اخلاصه — په قصه بيرته لگياسو سمدلاسه
واي يوروځ بقــال وکللي خانه دان ته — داطوطي يه پرينبودلي ودكان ته
دامعموله مسئله ددوي په ميان كښي — په عادي ډول جاري وه په دكان كښي
چه بقال بـه ووحـاضر دي خدمتگارو — چه بقال بـه ووغائب دی پيره دارو
په حـضوركښي بـي مطيع وودفرمانه — په غياب كښي بي پرځاي وونگهبانه
نوبدي معمول دی تللی خاندان تـه — خپل دكان ئي ووسپارلی نگهبان ته
څوچه پيښه دارا تلونكي واقـعه سـوه — دجنجال ودخفگان لوواسـطه سـوه

گربه برجست ناگه در دکان(۲) — بهر موشی طوطیک از بیم جان

چه بقال ووپه خپل كوركښي فكرصافه — په دكان كښي دربـه پيښه سـوه ناڅاپه
هغه داچه پيشـــــــي پتهوه په ځاره — ومــوږك تــي اراده ولــه دښكــاره
پرموږك ئي حــــمله وكړه ناگهانه — وطوطــي تــي فكرنــه وودازمانــه
خوطوطي دخپلي بيري سرگردان سو — په دكان كښي پورته كښاته لالهان سو
هغه څوك چه ضعيف تربيچاره واروي — وقـــوي دښمن ته كله برقــــراروي
نوبي خودپيشه زغستل والبوتل وي — نوبـــي كله وبـــل لوري ته كتل وي
الباقي بيان راځي په لاحق بيت كښي — ماوتاته داكافي په سابق بـيت كښي

(۱) وقت چه داوصافو څخه دطوطي فارغه سونوبيرته په بيان دقصي لگياسونووايي خواجه روزي الخ ،دايه دتعلق وارتباط راغلومعني ته هغه داچه مولناقدس سره فرمايي چه بادار دطوطي يوه روځ وطرفته دكوركللی ووپه دكان كښي طوطي دمعمول په ډول نگهبان پري ايښي وووداده بادارتگ اودطوطي پرينبودل په دكان يو معمولي كاروو په مابين كښي دبادارو ودطوطي بادارڅه خبرووچه دامسئله په دونه خفگان وغمگيني باعث گرزي بسنده په آينده باندي خبرنه لري والا خواجه بــه ددي كار مخ نيوي كـړي واي خلـص داچه خواجــه طبــق معمول خپل كورتـه ولاړطوطـي يه په دكان نگهبــان پريښودي خوطوطي هغه څه پيښه ســوه چه بيان بـي رلسـي نولاچاره تشــويش وغمگني پيدا ســوه كشـكي چه اوسـتري عقــل ړومبـي واي والسلام ۱۲

(۲) وقت چه دخواجه تدبــيرپه تگ وخپل كورته په بقادطوطي په دكان كښي بــيان كـړي اوس هغــه څه بــيانه وي چه دده تر تدبيرپس تقديرپيښه كړي نووايي گربه برجست الخ ،دايه تعلق وارتباط راغلومعني ته هغه داچه مولناقدس سره په سردوشړولو كښي دقصي وايي چه پس تردغه تدبيردخواجه يوپيشي چه په دغه دكان كښي په دانتظاردموږك پټه وه ناڅاپه دخپلي پوټگني څخه په دكان كښي دپاره دښكاردموږك راوغوځيده ني وطوطي ته فكروونه نه ده دطوطي دښكارپه قصدكښي وه مگرخودغه طوطيگی دخپل روح دبيري په هغه څه لگياسوچه بيان بي راسي ۱۲

ابوالحفاظ :مولوي صالح محمدالارغستاني ·

(۱) دابيت متمم دسابق دی. پدي خاطرئي تعلق وارتباط ورسره قائم سوراغلومعني ته هغه داچه طوطي وغورځي دصدرددكان پدي خاطرچه دده ګمان داسـوچه پيشـي قـصدده دبنكارلري نوئي ظروف دعطروچپه كړه نو په سبب ددغه ظن فاسـداوددغه وهم كاسدنوپدغه سبب ئي حـفظ دضررباعث سوهمدارنګه مقلدداهل الله په مجردحـفظ دده بـعض كلماتولره دكتب دتصوف اومجردوړاندي والي دده ارشـادلره اوتكلم دده طوطي واري په نكاتوسره بمجردهجوم دپيشي دوهم وخيال دده دي. ګمان دخطادخپل كلام وكړي نوحركت وجانب ته دتاويلات فاسـده ووكلماتولره داهل الله وكړي نوعطر دشـريعت توي كړي كوم وقت چه پرده وهل دتاديب دشريعت واقع سي نودي ګنګ لسانه مثل دحيوان وګرزي ددي مفهوم حـكايت مولّناقدس سره په پس كښي كوي ۱۲

(۲) وقـت چه حـالت دطوطي په غياب كښي دخواجه بيان كړي اوس حالت دخواجه په وقت دحضوردودكان ته بيانه وي نوواېي ازسـوي خانه الخ .دايه تعلق وارتبـاط راغلومعني ته هغه داچه كوم وقـت چه بادارد طوطي دخپله كوره په طبـق دمعمول راغلي اوپرخپل دكان فارغ بـاله تاجرواره كښينسـتي نوضمير داش راجع وطوطي ته دی. اوخواجه اول بمعني دبادارد ی. وثاني په معني دتاجروبازګان دی. اولفظ دوش اداة دتشبيه دی. نومعني لكه تاچه واوريده راغلي باداردطوطي دجّانبه دكورودكان ته اوپدغه دكان كښي فارغ باله مرفه الحاله په مثل دتاجركښينستي عادت دادی. چه تاجرپه خپل كاروبارډيرخوشحال ومغروروي دبل هرڅه ئي زړه فارغ وي نوداتاجردغسي په نازوكرشمه پرخپل ځاي په دكان كي كښيناستي ۱۲

| جست ازصدر دکان سوی گریخت (۱) | شیشهای روغن گل رابریخت |
| --- | --- |
| داتمام دسابـق بـيت دي قـدردانه | ورته ځيرسـه غوړ ئي نيسـه پربـيانه |
| دمابـينه ددكان دی په هواسـو | وطرفته دسـيبنودی وربالاسـو |
| دخپل بـيري په پروازيـاندي داواري | ددكان ډيري سيبني ئي كړي راغوځاري |
| سيبني ماتي غوړي توي سوه پرزمينه | ددكان ټوله اطراف سـوه په رنګينه |
| دنفس غـتيه چه واخـي يوهـوش داره | نودهـوش ملونـي يـه ووزي داختيـاره |
| نودځانه سـه بـيځانه سـيبنه شه ده | دغوړودتويـه دواند يبننـه شه ده |
| نوبه خودسيبني سي ماتي غوړي تويه | نوبـه خوددكان سـي واړه روغن بـويه |
| نوطوطي ملامت مه بـوله زماياره | ته پرخپل زړه باندي لاس كښيږده يوواره |

| ازسوی خانه بیامد خواجه اش (۲) | بردکان بنشست فارغ خواجه وش |
| --- | --- |
| مولّناچه دطوطي حـالت بـيان كړي | سمدلاسي دبقـال حـالت نشـان كړي |
| واي بقـال چه دخپل كوره راروان سو | هم په قـصدوپه سودادخپل دكان سو |
| په دكان كښي فارغ كښينستې برحاله | په داخپل دكان وكاروبارخوشحـالـه |
| عادةً هرچاته خپل پيشـه محبوبـه | هرسـري ته وظيفه خپله مطلوبـه |
| هرمحب چه ورسـيږي ومحبـوب ته | هرطالـب چه ودريـږي ومطلـوب تـه |
| نوبه نازوكرشـمه ډك دغروره | دهرڅه وي بـي فرواډيروي مغروره |
| نوبقـال چه ووخاوند دمال وبـخته | خواجه واره كښينستي پرخپل پاي تخته |

ابو الحفاظ :مولوي صالح محمد الارغستاني .

الراقم :سيد عبد الهادي الهاشمي .

(۱) دابیت دمتمماتو څخه دسابق دي دایه ارتباط عات دلسي جوړدی چه دکاندارچه دکوره راسي اول ولړپ پارچال فارغ البال کښیني پس نوپه جوانبو واطرافو واشیاو وکښي ددکان نظراچوي نودلته هم دغه رنګه چه ددغه تاجرودکاندار وقت دنظراچولو راغلي نوئي په نظرداوره غله چه دیدپرروغن الخ ،نومعني داچه دکاندارپس تر ناستي دکان ککړ په روغنو ولیدا وفرش وظرف ونورسامان ئي چرب وغوړ ولیده نوپه غوصه سوطوطي ئي پرسرووهه چه ددغه وهلو څخه دطوطي سرکل سو یعني دسرښوکي وختي نوخودطوطي په یوبدحالت اوبدرنګ کښي واقع سو پس ترینه حالته وبنه رنګه دتصوف په مسلک کښي پدي کښي اشاره ودي نه هم راغله چه لائق دسالک سره داده چه دوهمیاتو ارتاریلاتو نفسده وو په خاطر چپ ولپ البوتل ونه کړي لوپه خپل بلاغت مغروره نه سي افشادحالاتو پرغیرماینبغي ونکړي دپاره ددي چه مستحق ضرب دشریعت ونه ګرزي والسلام ۱۲

(۲) وقت چه ئي په سابق بیت وهل وبوني ختل دطوطي ذکر کړي اوس پدي بیت کښي اثر دسابق عمل راته ښیي نو وایي روزکي چندي الخ.

| دید پرروغن دکان وجامه چرب [۱] | پرسرش زد ګشت طوطی کل زضرب |
|---|---|
| چه بقال سوسم قراربه خپل مکان کښي | شاوخوائي وکتل په خپل دکان کښي |
| په روغنوئي غوړپولید فرشــــونه | هم لړلي په غوړونورســـــامانونه |
| په غوصه سووطوطي تي غځیدل کړه | سمدستي دده پرسرباندي وهل کړه |
| منرئي کل بوني ئي توسوه لي دسره | داطوطي سوډیربدرنګ هم دربدره |
| طوطي کله لري توان دداســـي فراخي | دغضــب وودغصــي دچاپلاخــي |
| نوبــي خودبــوني دســره څخه څیرږي | چه پرســــربه چاپلاخه وهل کیږي |
| نوبــه ولي سربــه داله طوطي نه وي | نوبــه ولي ډیربدحــاله طوطي نه وي |

| روزکی چندی سخن کوتاه کرد [۲] | مرد بقال ازندامت آه کرد |
|---|---|
| اوس حالت دطوطي داسي کړي بیانه | تروهلــوپس وضیت ئــي کــړي عیانــه |
| واي څوروځي طوطي نه کاوه ګفتاره | ســرګافته ووبه خپل ځان بــاندي اوګاره |
| دبقــال نوپښیماني دکورمیلمه سوه | ندامت وپریشـــــاني ئي وظیفه ســـوه |
| نوبــه ولي پښیمان نه وي دابقـــاله | چه طوطي ئي کړي پدارنګه وبـــــاله |
| دبقــال نوطوطي څومره ووهمکاره | خوپه ده ئي برابرووکاروبــــــــاره |
| دطوطي سه چه خبــري ســولي پاته | دبقـــال اوره په ده بـــاندي ســـوه ماته |
| نوبقـــال بـــه ولي نه کوي ارمانه | چه په خپل لاس باندي پیښ کړي داتاوانه |

دایه تعلق وارتباط راغلو معني هغه داچه څه لږ روځي طوطي خبري پري ښوولي اوبقال دندامته وپښیماني څخه په آه ووفریاد وو یعني بقال پرداخپل عمل دضرب ډیره پښیماني کوله نوبي وه لي نه کوله طوطي خودده دپاره لوي همکار وو اوده خوکاروبار په طوطي برابروودکان وتجارت ئي په طوطي چلاندوونوبقال ته دوه سببه دپښیماني پیداسوه یوداچه داپخواني لذیذه اندوالي اودادنازخبري ومجلس په وهلو ګنګي بدل سوبل داچه دنیاوي کاروبارئي دپخواني برمه ومځکي ته راوپریووت والسلام ۱۲

| | |
|---|---|
| ريش برميكند ميگفت اى دريغ | كآفتاب نعمتم شدزيرميغ |
| دطوطي حــالت سو تير دبقــال واردی | په افســوزووپه ارمان ئي داگفتاردی |
| په عمل ئي وودا كاربيري شــــكوله | خوپه ژبــه ئي افسوزافســوزويله |
| چه پرلمر دنعمــت زمارا غلــه اوريــځه | په تاريكه شپه بــدله ســوه زماورځه |
| يعني داطوطي خوزمادبـــخت رڼاوه | هم په ده بــاندي سانمبــاله زمادنياوه |
| په خپل لاس باندي مي دابخت کړی نسكوره | چه گنگي مي کړي داخپل دســترگوتوره |
| مگربـــخت مي گرزيدلی په ازل كښي | چه دااوس فكرمــي نــه ووپه اول كــښي |
| نوبــه ولي ماكولاي داســـي كاره | چه په لوي لاس مي برباد کړي خپل روزگاره |
| خوورخپل عمل ته نســته بــل درمانه | بــي ارمان ارمان ارمان بــياهم ارمانه |
| دست[2] من بشكسته بودى آن زمان | چون زدم من برسر آن خوشزبان |
| لوس په بــل قســم افســوزكوي بقــاله | په تهديدبــاندي دځان وايي مقــاله |
| زمالاسونه دي سي مات چه مي وهل کړه | چه پدي ضرب مي طوطي ته غځول کړه |
| كاشــكي زمالاســونه وچ واي دازمانه | چه پرســروهل مي وودخوش زبــانه |
| هــم دارنــگه پښيمانــي وتهديدونــه | وبقـــال ته ډيريده نن ترپرونه |
| هره روځ چه پربقـــال بــــه تيريدله | تاوانونــه دعمــل خپل ئــي كــي ليدلــه |
| نوزيــادت دپښيمانــي يــه آن په آن وو | نو تهديديه هم زيات سوي پرخپل ځان وو |
| نوبــه خودپه دي لهجوكوي خبــري | دښراپه عنوان وايي داســــندري |

(۱) وقت چه په سابق حالت دطوطي بيان سواوپه بغل كښي ئي چال دبقال په مهيمه پښيماني وارمان هم بيان سولوس حال دبقال په تفصيل دپښيماني وارمان بيانه وي نووايي ريش برميكند الخ .دايه تعلق وارتباط راغلو معني ته هغه داچه بقال پرداخپل عمل دوهلوطوطي لره په داسي اندازكښي غم وپښيماني كوله چه په عمل ئي ويره شــكول اوكښل اوپخوله ئي افسوزافســوزويل كول اودابــه ئي ويله چه زمالمردنعمت تراوريځ لاندي سويعني زماورنق ددكان كاهش پيداكړي دخسران ترسوري لاندي سونوداكنايه ده دعدم تكلمه دطوطي وه لي كوم وقــت چه طوطي خبــري كولي پرده بــه دخلقــوهجوم وو.دكان بــه چلاندوونفعه بــه ډيره وه اوپه وقــت دنه خبــرودطوطي داهيڅ نه وونوبي خسرانه بــل بي څه حاصل وي خلص داچه بقــال ډيرحــيف وافسوزكاوه اودطوطي ئي ډيره ســتاينه كول اوددي نــاوړي پيښي پره ئــي تولــه پرخپل ځان منلــه ځكــه چه د بشري خلقيت دخلاف اوداقــتصادي تاوان عامل خوخپله بقــال جوړسـوي نومسـؤل هم دی دي ۱۲

(۲) دابــيت په مثل دسابق دافسوز په حيث ويل ســوي خودااوس افسوزډير تهديدامېزه دځان دپاره ښكــاري دايه تعلق وارتباط اومن وجه فرق راغلو معني ته هغه داچه بقال په ډيره تهديدآميزه لهجه وخپل ځان ته خطاب وويل كوي داسي واي زمالاس دي مات وي هغه وقت چه ماپرسرووا هغه شيرزبانه طوطي يعني كاشكي زمالاس هغه وقت وچ اومات واي چه وتاته ئي رسيده نه واي کړي ددي مصيبت خاوندبه نه گرزيدم پدي بيان كښي تحذيردي سالك لره چه دي دخپل سلوك په لاره كښي بايدهغه څه ونه كړي چه عاقبت ئي ندامت وي ۱۲

(١) وقت چه په سابق کښي پښيماني دبقال په رنگ رنگ اقوالو بيان کړه اوس ئي پښيماني په عمل ښکاره کوي نووايي هديه هاالخ ،دايه تعلق وارتباط راغلو معني ته هغه داچه مولنا قدس سره وايي چه پس تر پښيماني په خبرو بقال پښيماني په عمل هم شروع کړه نوئي هديي دخيراتونه وفقيرانوته ورکول ددي دپاره چه گوندي طوطي په برکت ددغه خيراتوو فقيرانو خبري وکړي وه لي پدي کښي خوشک نسته چه صدقه ردبلاده اوصدقه غضب دالله جل جلاله کښته کوي ځکه چه په اثر کښي دسيد البشر صلی الله عليه وسلم څخه راغلی الصدقة تطفئ غضب الرب نورجوع دبقال دقولي پښيماني څخه وعملي پښيماني ته بهترين كاردي چه ده اختيار کړي ،همدارنگه د سلوک په لاره کښي که ديوچامرغه دروح دذکره وفکره څخه پته خوله سي نودا شعرپرغضب چاره ني صدقه والسلام ١٢

| | |
|---|---|
| هديه هامی داد هر درويش را (١) | تا بيابد نطق مرغ خويش را |
| پښيماني چه به خبرويه بيان کړه | همدا ځل ئي په عمل راته روښان کړه |
| واي بقال کوله ډيره ډير خيراتونه | فقيرانو تي وروړله سوغاتونه |
| په دي نيت چه گوندي زما مشکل رواسي | هم ددوي په برکت طوطي گوياسي |
| په خاطر دصدقي ئي اميد داسي | چه طوطي په خبرو باندي راسي |
| صدقه ردبلا رسول بللي | پداغه منظور بقال ځانته نيولي |
| چه غضب دالله وړي دا صدقه ده | دحديث مبارک هم دغه توته ده |
| خلاصه ددي بيان ودي مبحثه | مقصد داچه طوطي راسي په هوسه |
| ځو به خپل عادي حالت وکړي خبري | نو به غم سی دبقال دکوره ليري |
| بعد (٢) سه روز وسه شب حيران وزار | بر دکان بنشست بد و نوميد وار |
| پس تر دروشبانروزو بقال حيران وو | خوار وزار مايوسه ناست پر خپل دکان وو |
| پريشاني يو روځ وديوي گالول کيږي | بالا بد نوډير وجمعه بللل کيږي |
| عادةً چ سي بالاتردي مددته | پر خاوند باندي يه بالکل وي زحمته |
| نو بقال به خود حيران وي هم مايوسه | وه لي داتردي بالانه ده مانوسه |
| يو تکليف غير مانوس چه ګټل کيږي | خامخا دحيرانتيا موجب گرزيږي |
| يو تکليف چه يو شپه دوي در ته پيښيږي | دامانوس وعادتي تکليف نوميږي |
| چه بالاتردري شوا روزه تکليف سي | دانو غير مانوس مور ته به تعريف سي |

(٢) وقت چه حال دبقال په سابق کښي دامید په درشل کښي بیان کړي لوس حال دده دمایوسي وحیراني په بخش کښي راته بيانه وي نووايي بعد سه روزالخ ،دايه تعلق وارتباط راغلو معني ته هغه داچه بقال دري شبانروزه په خپلو قولي وعملي پښيمانو يو باندي لگيا وپس تر تيريدو ددروشبانروزو بقال حيران وزار نه اميدوار پردکان ناست ووحيلي ئي دپاره دخبرو کولو دطوطي پلټلي څو چه يو جولقي تيرسوا وطوطي په خبرو راغلي لکه وروسته به دزڤه راسي نو دبيته دامعلومه سوه چه بقال په دروشوا روزو کښي حيران ومايوس نه وو خو پس تر دروشوا روزو مايوسي ورته پيښه سوه دغسي هم په تجربه والف باندي چه داغه مقدار مالوف بالاغير مالوف

ابو الحفاظ :مولوي صالح محمد الارغستاني.

**باهزاران غصه وغم گشت جفت ⁽¹⁾    کای عجب این مرغ کی آید بگفت**

پس تردروشوارورزچه سابق حال وو    طوطي گنگ وبقال سپوردغم پرتال وو
نوپدي وقت کښي حالت دبقال سخت سو    دهزارغصوغمونوسره جفت سو
نوپه خوله کښي دبقال داسي ويناوه    تعجب ووحيراني يه برملاوه
ياالله زه يم حيران پروردگاره    چه طوطي به كله راسي پگفتاره
بقال مه کړه ملامت اي دزړه سره    دغموشپي وي اوږدي تل سراسره
بوه شپه ده ته تمامه وي په كاله    نوپردروشپوباندي بي څه صبروي لاله
ماوتاتجربه کړي په وارواره    دتكليف شپي دي اوږدي اي زماسرداره

**مينمود آن مرغ راهرگون شگفت ⁽²⁾    وزتعجب لب بدندان ميگرفت**

نوبقال داحيله واچول په كاره    چه طوطي تي داپيشه کړله اختياره
چه هرنوعه دگلانوبي راوړله    دطوطي مخ ته په نازبي بنوره وله
په عجيب ظريف كلام دده ويناوه    وطوطي ته ئي دگرمه تسلاوه
گډيدی به په نرمي ودي طوطي ته    هم په ډيره خوش طبعي ودي طوطي ته
سرپردغه طوطي نه كاوه بيانه    هم په دي چمودده نه سوگويانه
نوبقال په ډيرافسوزوو په ارمانه    دتعجبه بي په غاښ تنگ کړه شونډانه
خلص په دي چموطوطي هيڅ برحال نه سو    دبقال زړگي دغمه خوشحال نه سو

(۱) وقت په سابق بيت كښي دبقال حيراني ونااميدي په برخه وه نوداويل كيږي چه پدغه حالت كښي نودده څه حال ووڅه ئي گفتاروونواوسني بيت ئي جواب كوي وايي باهزاران الخ ،دايه تعلق وارتباط راغلومعني ته هغه داچه مولناقدس سره وايي چه پس تردروشبانروزودبقال حال داسي جوړسوچه دزروغصووغموسره جفت وگرزيدي اوپه خوله ئي داگفتاروچه اي عجب حالته دامرغه زمابه كله په خبروباندي راسي كله به وي داوقت پدي كښي خوشک نسته چه دغم شپي وروځي وسري ته اوږدي ښكاريږي يوه شپه ورو ځ په كال ورته معلوميږي داموږ وتاسي تجربه کړي ده الله دي مودغم دساعته وساتي آمين نوبقال په دي تعجب وتبعدمه ملامته وه ولي گنگ والي د طوطي ودده ته لوي غم وودااقتصادوكار بارپه خاطراودخوش طبعي ومزاج په منظور ۱۲

(۲) وقت چه په سابق بيت كښي دبقال غم وتعجب بيان کړي پدي بيت كښي كار وكردارددہ پدغه حالت كښي دطوطي په هكله بيانه وي نووايي مينمود الخ ،دايه تعلق،ارتباط راغلومعني ته هغه داچه دغه بقال نوددغه غم په حالت كښي داكارشروع کړی چه وطوطي ته بي نوعه نوعه گلان په ډيرنازښكاره كول اوپه ډيره خوش طبعي بي وطوطي ته ويناوي كولي اوډيرظريف كلام بي ورته وايه خوسرپردغه طوطي په خبرونه راتله نوبقال ته بل څه پاته نه وه مگرپه غاښو دتعجب بي خپل شونډان تينگ کړه ښه داچه شگفت په ضمه دشين وويل سي معني يه غنچه خندان ۱۲

ابو الحفاظ :مولوي صالح محمد الارغستاني .

(۱) وقت چه طوطي په سلبق حیله دبقال پرخبرونه راغلي بقال دابله نوعه دحیلي اختیارکړه نووایي دمبدم الخ، دایه تعلق ولرتباط راغلو معني ته هغه داچه بقال داحیله اختیارکړه چه دم په ګړي بي ویل کول دطوطي سره په هرنوعه دکلام په خبرو کښي یعني رقم رقم خبري وطوطي ته یایه دم ګړي ویله وطوطي هرخبره یعني مکرر مکرره خبره ئي وده ته کوله چه هرخبره بي وده ته وکړه هغه بي بیامکرره پرده عرضه وله همدلسي داکلربه دي خاطرکلوه چه شایدپدغه چم به طوطي پرخبروبلندي رلسي نوددي څخه دامعلومه سوه چه دهرمعلل دصعن

| دمبدم میگفت باا و هرسخن (۱) | تا که باشداندرآید درسخن |
|---|---|
| خوبیاهم بقال په لوي غم ووغمجنه | دطوطي دګفتاردیروولرمان جنه |
| نوبقـــال په هر ګړي وو امیدواره | چه دازماطوطي به راسي پرګفتاره |
| نوبقـال بـه دمبـدم یو څه ویله | پرطوطي بـي همه وار ه عرضه وله |
| په امیددي چه ګوندي وسي داسي | چه طوطي به په خبروباندي راسي |
| وه لي زماخطاب غالب وي بهره وره | پرمزاج بـه دطوطي سـي برابـره |
| نوپدي خاطربنایي چه یوخبـــره | دطوطي په زړه کښي ولـري اثره |
| نوپدي بـه پرخبروبـاندي راســي | موجوده غم به دزړه څخه زماوباسي |

| براميدآنكه مرغ آيدبگفت (۲) | چشم اورا باصورميكرد جفت |
|---|---|
| دايوبـل خيال چه بقـال وسنجولي | چه يـــه دغه بـــه طوطي كړي وغولي |
| نوبقـال چه څه صوريــه وه عجيبــه | څه نقشـــونه چه پيداپه ســوه غريبــه |
| ده به جم كړه په طوطي ئي بياليدله | دي اميــدچه په طوطــي وكــړي ويلــه |
| تـل اميدئي وطوطي تــه وودګفتــه | وه لي تل اسبــاب دګفت ورســره جفته |
| داقانون چه اسباب تولـه سي عياره | مسبــــب نووروجودته ســــي تياره |
| نوبه خودبقال وګفت ته اميدواروي | دطوطي ســه بـــي غوښتنه دګفتاروي |
| خوبياهم دغه اميدئي حاصل نه سو | هم په دي باندي مقصودهيڅ كامل نه سو |

ډېلره بـــايددمختلفو تجربوڅخه كلرواخيسته ســي خوبــياهم طوطي پدي حــيله پرخبـــرو باندي نه راغلي ۱۲

(۲) وقــت چه طوطي په مخكنۍ حـيله پر خبــرونه راغلي نونئي دبلي حيله ترانۍ وتاره نووايي بــرلميدالخ، دايه تعلق ولرتبـــاط راغلومعني تــه هغــه داچه بقال په لميدددي چه دامرغه به پرخبــرو بــاندي رلســي نوئي ســترګي ددغه مرغه درنــګ رنــګ صـــورو ســره جمعه كولي يعني رنــګ صورئــي ودي طوطي ته ښكاره كول چه ګوندي پدي خاطر بــه خبــري وكړي خو بـــياهم طوطي الآن كماكان پدي حيله هم پرخبرونه راغلي خوچه بي تلابنه دبقال دجولقي په ديدباندي خبري وكړي چه بيان وروسته مفصل راسي داتكي نودقصي اساس دي لوداغه دپاره دقصي غوته كيدنګ بسوي چه هغه نورباطل قياس دي بايددغه ټكي ته ستاكامله توجه وي ۱۲

| | |
|---|---|
| (۱) جولقي سر برهنه ميگذشت | با سر بي مو چو پشت طاس وطشت |
| لوس نووقت ددي راځي طوطي ويل کړي | سبب داچه جولقي لره ليدل کړي |
| مولنا په تمهيد وايي داکلامه | په تشبيه باندي واضح به کړي مقامه |
| ولي ملنگ قلندري وورلروانه | چه تيريږي پر طوطي وپردکانه |
| نو هيئت دملنگ دارنگه عياروو | سرئي لڅ نزله ختلي نور تياروو |
| دزلي پوست ئي خالي وودبيښتانو | دلگن دشا په مثل وودوستانو |
| نو طوطي چه ملنگ وليد په دي حاله | دطوطي ووپه دي وصف کښي اندواله |
| دطوطي يقين پر ځان بي التباسه | دملنگ حال ئي پرخپل ځان کړي قياسه |
| نو ملنگ ته ئي ويناو کړله داسي | په لاحق بيت کښي به راسي درته داسي |
| (۲) طوطي اندر گفت آمد درزمان | بانگ بر درويش زد که اي فلان |
| چه طوطي وليدي حال ددي ملنگه | په خبر ودستي راغلی بيله درنگه |
| ويل زماوستاسر يورنگ دلزمانه | تاته وايمه غوږ ونيسه فلانه |
| چه زه ژينمه ددوار وصفت يودي | نو گمان کوم ددوار وعلت يودي |
| څه چه پيښه ده وماته هغه تاته | څه چه پيښه وتاته هغه ماته |
| نورانحه چه خواله وکړو يودبله | په خطاب به مجلس وکړو کل به کله |
| داجمال تفصيل به وروسته درته راسي | په لاحق بيت کښي بي ولوري داسي داسي |

(۱) وقت چه دبقال په حيلو طوطي پرخبرونه راغلي لوس نووقت ددي ورسيدي چه طوطي خبري په بل خاطر کوي نوئي دتمهيد په ډول داسي کلام شروع کړي چه وايي جولقي سربرهنه الخ ،دايه تعلق وارتباط راغلو معني ته هغه داچه پس ترحيلو دبقال طوطي گوري چه يو قلندري شکله ملنگ زماوستاپه اصطلاح کښي سرلڅی تيريدي دخپل سره سره چه بي ويښتانو وو لوسورڅترووله که شادلگن يعني نزله ئي دويښتانو خالي وه دطوطي غوندي نو طوطي چه جولقي پدلسي هيئت کښي وليدي لوپدي صفت کښي دځان اندوال وبالله نو دجولقي حال ئي پرخپل ځان قياس کړي نوئي په خبروشروع ـ کړه چه بيان بي په لاحق بيت کښي رلسي مگر طوطي پدي قياس کښي غلط قياس ئي باطل ځکه چه په مابين کښي د مقيس ومقيس عليه ډير فرق دي هم' لرنگه قياس دکافرانو گمرهانو انبيالولوليلوله پرخپلو ځانونو چه پدي خاطر نو تكلم په مالتم الا بشرمثلنا) الاية كوي هم دغه مضمون په قصه کښي اصاي مراد لواسلسي تکي دي لودقصي رلورنگ دپاره دبطلان ددغه مضمون معنوي دي نوته به په قصه کښي بطلان ددغه قياس مع الفارق په اوله وشواهد مفصل واوري نوردي پرخداي پاک سپارم ۱۲

(۲) وقت چه سابق بيت تمهيد ولاحق وونو وقت چه دتمهيده فارغ سونو ممهد ته ودريدي نو وايي طوطي اندر گفت الخ ،دايه تعلق وارتباط راغلو معني ته هغه داچه کوم وقت چه طوطي جولقي دځان په رنگ وليدي نوئي حال دجولقي پرځان قياس کړي اوپه خبروباندي راغلي اوپدغه وقت کښي پرجولقي باندي ناره وکړه لوپه جگ لوازئي وروغ کړه چه اي فلانيه چه دريغ بيان به په متصل بيت کښي راسي ۱۲

ابو الحفاظ :مولوي صالح محمد الارغستاني ـ

(١) وقت چه په سابق بيت كښي مجرد تكلم وكلام دطوطي ذكر كړي اوس تعين دكلام دده كوي نوواېي از چه اي الخ ،دايه تعلق وارتباط راغلو معني ته هغه داچه طوطي جولقي وليدي اوسرددہ ئي په مثل دخپل سر مشاهده كړي اوداگمان ئي وكړي چه دده سر په هغه علت ختلى دي چه زمادا په ختلي نوخو دطوطي وجولقي ته وويل چه اي كله په څه خاطر اوكوم علت په سلك وجمله وتولي كښي دكلانو داخل سوي اوورگډ سوي يې نوشايد چه تاهم سينبه دروغنو وعطروتوي كړي وي نوېدي خاطر سروهل كړه سوي يې څوچه كل واقرع گرزيدلى يې ماغوندي نوطوطي قياس دجولقي پرځان وكړي اودي پدي قياس كښي پرغلط ولاړي ځكه چه پدي ځاي كښي علتي مشتركه په مابين كښي دمقيس ومقيس عليه تحقق نه لري نوداقياس ورځنداي لكه چه په آيند كښي بي راته بيان كړي ١٢

| | |
|---|---|
| **از چه ای کل با کلان آمیختی** (١) | **تو مگر از شیشه روغن ریختی** |
| دطوطي قلندري ته داويناده | په داغه گفت ئي دخپل زړه تسلاده |
| واي په څه خاطر اي كله دكلانو | ته داخل سوي په جمله كښي دكلانو |
| مگر تاهم داسي كاروپيشه كړي | چه سينبه دي دغوړوده ماته كړي |
| نوېدي خاطر بادارته يي ترټلي | پداغه سبب پرسرباندي وهلي |
| نوېدي سبب ته وگرزيدي كله | هم په دي خاطر ته زماسوه لي انډوله |
| دغوړودتويه دلوانجام دادي | سركلي ووبدرنگي يه وريه خوادي |
| چه طوطي وكړي هم داباطل قياسه | نوموجب سود خنداهم سمدلاسه |
| چه مضمون بي آينده بيت كړي بيانه | په توضيح بي ماوتاته كړي عيانه |
| **از قیاسش خنده آمد خلق را** (٢) | **کو چو خود پنداشت صاحب دلق را** |
| چه طوطي باطل قياس كړي اوس روي كاره | نودخلقو يه خنداسو منت باره |
| مولنااواي دطوطي ددي قياسه | خلق ټوله په خنداسوه سمدلاسه |
| واي طوطي بي مغزه څه رنگه نادانه | پرملنگ باندي كوي دځان گمانه |
| سرپردي چه مشترك علت ئي نسته | چه قياس غواړي هغه شرطيت نسته |
| چه باطل قياس ايږدي هغه نادان دی | كه طوطي دي كه ملنگ كه بل انسان دی |
| نوباطل قياس يومخ دی شناعته | پرداغه تكي اساس دحكايته |

(٢) وقت چه طوطي په سابق بيت كښي جولقي پرځان قياس كړي اوپداغه باندي خبره وكړه اوس وزن ومرتبه دصحت ونه صحت ددغه قياس بيانه وي نوواېي از قياس الخ ،دايه تعلق وارتباط راغلو معني ته هغه داچه كوم وقت چه طوطي نوموړي قياس وكړي نوخلق دده قياسه څخه په خنداراغله چه داڅه رنگه قياس دي طوطي څنگه دځان گمان كوي جولقي لره اوڅنگه جولقي پرځان قياسه وي داخويو غلط باطل فارق قياس دي ځكه چه دمقيس ومقيس عليه په مابين كښي بون بعيد دي لكه داچه واضح وښكاره ده اودقياس دلوازمو وشرائطو څخه تقارب وتناسب وتشارك دي نومعلوم سوچه باطل قياس يولوي شناعت دي دهرچادلوري چه وي طوطي وي كه بل څوك همدغه تكي محور دحكايت دي ١٢

ابو الحفاظ :مولوي صالح محمد الارغستاني .

## کار پاکان را قیاس از خود مگیر[(١)] — گرچه ماند در نوشتن شیر و شیر

مولنااوس انتقال کړي نصیحت ته — راپه برخه په کړي موږ ته لوي نعمته

مولنااوس پر اصلي تکي ږغیږي — چه مقصود په حکایت کښي ښکاره کیږي

هغه داچه ته قیاس مکړه خپل ځانه — دالله پر نازه ولو وو پاکانه

ولي فرق ډیرپه مابین داین وآن کښي — حقیقت کښي نو تشبیه نسته په میان کښي

په ظاهره که څه یو ښکاري په صورت کښي — حقیقت کښي تفاوت ډیرپه سیرت کښي

لکه لفظ دشیروشیردی ورله ورته — په معني کښي څونه ډیردي ځله بیرته

یوشیدي چه سربسته پالونکي زمادي — بل زمري چه سراسر څیرونکي زمادی

هم دارنگه شیروسیریولفظ دی گله — په معني کښي څونه فرق دی یودبله

یوشیدي دي خوش مزه هم دي خوشبویه — یوه هوږه هم ترخه هم ده بدبویه

واعجامو ته چه وقت اعتبارنسته — نووسوال ته په دي ځاي کښي هم لارنسته

## جمله عالم زین سبب گمراه شد[(٢)] — کم کسی ز ابدال حق آگاه شد

مولناپه پره تفصیل کوي وصیته — چه باطل قیاس سبب دضلالته

په باطل قیاس اکثرعالم گمراه سو — بدبختي وشقاوت ئي ورپخواه سوه

چه دوستان دحق په دي سرخبردار وه — دباطل قیاسه بالکل بر کناروه

خلص باطل قیاس سبب دگمراهی دی — هم موجب دداسي لویي تباهي دی

ځکه اوږدمولنادي باب کښي کلام کړي — په تفصیل وامثله وئي تمام کړي

په تفصیل وو ،وضاحت کوي بیانه — پاک الله دي دده قبرکړي روښانه

(١) وقت چه په سابق کښي قیاس دطوطي ذکرسواودهغه وبطلان ته هم اشاره وسوه اوس ئي انتقال وکړي ونصیحت ته په پرهیزدمثل ددغه قیاس دطوطي چه هغه نوقیاس په مابین کښي دخپل ځان اوداولیاء دالله جل جلاله چه بطلان وپرهیزددغه قیاس اصلي تکي ومقصوددحکایت دی دایه تعلق وارتباط راغلومعني ته هغه داچه مولناقدس سره دنصیحت په طریقه وموږ ته وایي چه کارلره دپاکانودخپله ځانه څخه قیاس مه نیسه یعني دځان وودانبیاء واولیاوپه مابین کښي قیاس مه دائره وه چه په فرق په مابین کښي قائل نه یي لکه گمرهانوکفاروچه به ویل (مالنتم الابشر مثلنا) الآیة ځکه چه ددوي سترگي دمعنوي فرقه څخه ړندي وي نظرئي پرظاهري بشریت مقصوروو په ظاهرخود ډیرواشیاؤاتحادوي خو په باطن کښي بون بعیدسره وي نه گوري چه لفظ دشیرپه معني دشیدولوداغه لفظ د شیرپه معني دزمري ظاهري ولفظي اتحاد سره لري لوپه معني ومصداق کښي څونه بون بعیدپه ملین کښي سره لري اوداروملار دقیاس پراتحادمعنوي دي هغه خودلته نسته نوقیاس باطل دي ١٢

(٢) وقت چه په سابق بیت کښي منعه دقیاسه په مابین کښي دځان ودنبي وولي وکړه اوس ئي پدي بیت کښي بدي ددغه قیاس وایي نوفرمائي جمله عالم الخ ،دایه تعلق وارتباط راغلومعني ته هغه داچه مولناقدس سره ماوتاته وصیت کوي اووایي چه ټوله عالم ددغه باطل قیاس په خاطرگمراه اودکفروضلالت په کنده کښي لویدلی اوپه ظاهري بشریت غولیدلي کم خلق دناسوواولیاوڅخه به دغه فرق پوه سوي اوددي باطل قیاسه ئي ځان جغورلي وي تفصیل به راسي ١٢

ابو الحفاظ :مولوي صالح محمد الارغستاني .

(١) وقت چه په سابق بيت کښي بدي دقياس راته وويل اوس سبب ددغه قياس راته ښيي نوايي اشقيا را الخ، دايه تعلق وارتباط راغلو معني ته هغه داچه مولٓناقدس سره فرمايي چه بدبختان واشقيارچه داقياس کوي سبب ئي دادي چه دوي لره واقعي ومعنوي ليدونکي سترګي نه وي اوښه وبد ددوي په سترګو کښي يوډول ښکاره کيدل نوځکه دوي ګمرهان اوپه کنده کښي دضلالت غځارسول اوپه غلط قياس طوطي غوندي خطاسبره نو

دبي ادبانوپه تولي کښي داخل سوه او محروميت ئي په برخه سو الله پاک دي موږ وتاسي نابينانه ګرزه وي اللهم آمين ١٢

(٢) وقت چه په سابق بيت کښي شقاوت ونابيناني دقياس ګر وبيان کړه اوس نتيجه دشقاوت ونابينايي ددوي بيانه وي نوايي همسري الخ .دايه تعلق وارتباط راغلو معني ته هغه داچه مولٓناقدس سره فرمايي چه دغه بدبختانود خپل شقاوت ونابينايي په خاطر دابرداشت کړه چه موږ مساوي دانبياويواوبراولياؤ ئي دخپل ځان ګمان وکړي طوطي واري دغلط قياس مرتکبان سوه

| نيک وبد در ديده شان يکسان نمود | اشقيا را ديدۀ بينا نبود[1] |
|---|---|
| دباطلو قياسوئي فروانسته | بدبختانو لره سترګي بينانسته |
| ځان ولي هم په يوه شان ورڅاريږي | ښه وبد په يوه ډول ورښکاريږي |
| نوبي خود قياس پيشه ګرځي چابکه | وقت چه فرق دځان ولي سوځني ورکه |
| په موږ دوو کښي يوپربل نه دي بهتره | نوبه وايي زه ودي يو برابره |
| په باطلو قياسوبه نوګمراه سي | دغلطو قياسوبه نوهمراه سي |
| دالله داولياووبي بيلتون سي | بي ادب بي احترامه بي ژوندون سي |
| په سابق موديږ زده کړي په ښه شانه | دادب وبي ادب کامل نشانه |
| نومحروم به پاته وي دلطف ربه | خلاصه ئي داچه څوک وي بي ادبه |

| اوليا را همچو خود پنداشتند | همسري با انبيا برداشتند[2] |
|---|---|
| نتيجه يه راته ښه يي ماوتاته | دبدبخته نه کتل دحق وخواته |
| دابرداشت وي دسرکښه ګمرهانو | خپل ځان بولي مساوي دي دنبيانو |
| چه دوي ځان بولي همثله دوليانو | داګمان وي دبدبختوجاهلانو |
| په داغه دي ګرځيدلي ګمره هانه | په قياس ثابته وي داخپل ګمانه |
| هم دنيا هم آخرت ئي ورکباب کړي | داغلط قياس ددوي کورورخراب کړي |
| په لاحق بيت کښي بي زده کړي سربسره | دقياس ډول بي راسي دزړه سره |
| ددنيا واخرت دخرابي دي | خلص باطل قياس موجب دناکامي دي |

اودبي ادبي خاوندان سوه دقياس ډول بي درته راسي چه دوي څرنګه په ظاهري بشريت غوليدلي وه اودمعنويته ئي سترګي پوتي وي نوبايد انسان په دقت نظروکړي دانبياو وواولياؤوکارنامو ته فکروکړي اوبرخپل ځان وګرزي فرق ووبون بعيد تشخيص کړي بي علت مشترکه طوطي غوندي قياس ونه کړي چه دخطاوګمرائي په کنده کښي ونه لويږي اودبي دابوپه قطارکښي رانه سي والسلام ١٢

ابو الحفاظ :مولوي صالح محمد الارغستاني.

(١) وقت چه په سابق بيت کښې گمان ددوي په همسري باندي بيان کړي اوس ددوي په نزدوجهه دهمسري ؤ مساوات بيانه وي نووايي گفت اينک الخ ،دايه تعلق وارتباط راغلومعني ته هغه داچه مولٓناقدس سره ددوي دقوله داسي حکايت کوي چه دغه گمراه به داسي ويل چه دغه موږ هم بشردوي يعني انبياء هم بشرچه ددي حکايت الله پاک په قرآن عظيم الشان کښې پدي آية کړي چه ( ماانتم الابشرمثلنا) الآية همدارنگه به ئې ويل چه داڅنگه رسول دي چه خورک دطعام کوي اوتگ په بازارکښې کوي چه ددي قوله ددوي الله پاک په قرآن کريم کښې په دي آية کريمه حکايت ( ما لهذاالرسول ياکل الطعام ويمشي في الاسواق ) نوددوي نظرپرظاهري صورت متمرکزسود معنويته څخه ړندسو نوطوطي غوندي په خطاقيلس لگيلسوه اوپه ډيره سپين سترگي وبي لابي ئې فوقاني ويناوي شروع کړي دابدي بدبختي حلوندان وگرزيده اعاذ ناالله سبحانه وتعالي ١٢

| گفت اينک مابشر ايشان بشر[1] | ماوايشان بستهٔ خوابيم وخور |
|---|---|
| اوس دعوي ثابته وي دوي په قياسه | په مردودفکراغوستي دالباسه |
| وايي موږ هم يوبشردوي هم بشره | موږ ودوي يودبله برابره |
| انبياوته کوي داسي وينا | ماانتم الابشرمثلنا |
| بياپه ډيره سپين سترگي وايي کلام | مالهذاالرسول ياکل الطعام |
| دي پرڅه باندي لري پرموږ سباق | لکه موږ دی هم وي يمشي في الاسواق |
| ددي واړوحکايت لايزال کړی | په قرآن کښې يه وموږ ته نازل کړي |
| نوپدي فاسدقياس سوه گمرهانه | پوشيده سوفرق پردوي داين وآنه |
| نونظرئې په حواسوحيواني وو | داسي نه چه په حواسوروحاني وو |
| نوپه کنده کښې دجهل سوله غوځاره | ابدي لعنت ددوي سووربه واره |
| اين ندانستند ايشان ازعما[2] | هست فرقي درميان بي منتها |
| په بطلان به دقياس تصريح بيان کړي | مولنابه په ښه ژبه داعيان کړي |
| چه فرق ډيردگمره هانوونبيانو | هم فرق ډيردسرکښانوو،وليانو |
| نوقياس ددوي به سي فارق باطله | څه چه دوي ويل همه به سي عاطله |
| هم پردي مضمون په راوړي شواهده | بيخي ديرداسي به نه وي چه واحده |
| مولٓناواي شان ددوي شان دړانده دی | نه پوهيږي چه داين وآن فرق څه دی |
| فرق بيخي ډيربه مابين کښې ددواړو | په دليل وشواهدوهمه واړو |
| مگردوي چه وه انعام بلکه اضله | نودافرق ودوي ته نه ښکاري اتله |

(٢) وقت چه قياس ددوي سره ددليله په نزد ،ددوي ذکرکړي لوس ئې بطلان ذکرکوي نووايي اين ندانستند الخ ،دايه تعلق وارتباط راغلومعني ته هغه داچه مولٓناقدس سره فرمايي گمرهان نه پوهيدل دڅپل معنوي ړندوالي به خاطرپدي چه فرق په مابين کښې بيخي ډيرلوبي لتهادی اوس به داخبره زده کړوچه لکه فرق چه په مابين کښې دانبياؤ وکفاروثابت دی همدارنگه په مابين کښې دابراروو فجاروموجوددی نه گوري چه شيخ نجم الدين الکبري په تفسيرکښې ددي آية ( ماانتم الابشرمثلنا) الآية داسي ليکلي چه الله پاک اشاره کوي واصنافوته دالطاف خپل سره داحباوو اوانواعودقهرخپل سره داعداؤ منهاضرب مثلالاصحاب قرية القلوب اذجاء هاالمرسلون من الالطاف کرة بعدمرة اذارسلنااليهم اثنين ،رسولين من الخواطرالرحمانية والالهامات الربانية بالتجافي عن دارالغروروالانابة الي دارالخلودفکذبوهما ،اي النفس وصفاتهافعززنابثالث ،من الجذبة فقالوا اناالیکم مرسلون قالواماانتم الابشرمثلنااي ماانتم الاالخواطرالبشرية ومانزل الرحمن من شئ اي من خاطروالالهام ولاجذبة انتهي تفسيرته وگوره څونه فرق په مابين کښې موجود دي ١٢

ابو الحفاظ :مولوي صالح محمد الارغستاني .

الراقم :سيد عبد الهادي الهاشمي .

| | |
|---|---|
| هردو يک گل خورده زنبور و نحل [1] | ليک زين شد نيش وزان ديگر عسل |
| مولنااوس پرداغه تکي واحـــده | پى درپي يه باندي راوړي شـواهده |
| نو ددوي دقـياس کوربـه سـي خرابـه | داهبـاء منثورابــه سـي تباســه |
| اوس اول شـــــاهدراوړي مولنادى | ديرواضح په سـتر گولدلى ماوتادى |
| واي ديو گلـه خـورک کـوي دادواړه | هم غالبـوزي موچ موچى وهمه واړه |
| ديوه قســمه خارج زهروداء ســي | ددابـل قسـمه خارج عسـل دواء سي |
| چه ئي جنس وخورک يوسويودبـلـه | نوته وگوره [illegible]ياس کړه يوپربـلـه |
| ولي تادغه قــــانون ووگرزه ولي | جهلانه دى ووبه ځان بــاندي منلى |
| مگرداقانون خوسوچ عاطل باطل دى | نوقـــياس هم دړي وړي دجاهل دى |
| داوويوشـــــاهدچه ذکرمولناکړى | په داغه باندي ددوي قياس رسواکړي |
| هردوگون آهوگيا خوردندوآب [2] | زين يکي سرگين شدزان مشک ناب |
| دادوهم شاهدمقــــــول دمولنادى | په مابـين کنبي منلى سـوي دهرچادى |
| واي قـــياس دي دى فارق اي پرعناده | په دوه صنفه دهوسـي بـاندي برياده |
| وه لي دواړه يوواښه خوري دبيبـــانه | هم دادواړه يواوبــه ځکي داســمانه |
| خوبـــياهم واښه اوبــه ديوپه نس کنبي | پليدي ووخوشايي گرځي په واپس کنبي |
| دهبـل په نس کنبي گرځي مشـک نابـه | داځه سِربدبـــخت دي ووايي جوابــه |
| چه خورک ووچنبک يوهم فرق حاصل سو | نوته پوه سه دبدبخت قياس باطل سو |
| لنډه دابــاطل قـــياس دطوطي واره | وعاقــل ته ډيردي ډک دشــرم وعاره |

(۱) وقت چه په سابق بيت کنبي تصريح په بطلا ن دقياس ددوي وکړه اوترمابين ئي بي انتهاء فرق ووايه اوس نو مولٓناقدس سره پردغه تکي شواهددروي نووايي هردويک گل الخ ،راغلومعني ته هغه داچه مولٓناقدس سره وايي چه قياس دگمرهانودبشريت په شرکت باطل وعاطل دي ځکه چه موږ وينوچه غالبوزه وودعسلومچمچي ديوه گله ځخه خورک کوي خوبياهم وينوچه ديوي پيداوارزهروونيښ سي دبلي ثمره وحاصل عسل سي لکه داشرکت نوعي سره داشتراک دمطعوم اشتراک په رتبه وثمره کنبي نه راولي همدارنگه اشتراک دانبياواولياؤ اوکفاروگمرهانــوپه بشريت کنبي تقاضا دمســاوات ددوي د طوطي غوندي باطل قياس دى ۱۲

(۲) دادوهم شــاهددي چه پرمقــصودي تکي دقــصي ئي دره وي چه هغه نوبــطلان د قــياس دگمرهانودى نووايي هردوگون الخ ، نوتعلق وارتبــاط ئي دشــاهدي په شــرکت ســوراغلومعني ته هغه داچه مولٓناقــدس ســره ددوي دقــياس بــطلان په دوه صنفه دهوسى کوي په داسي ډول چه دادوه صنفــه دهوســـي چه دواړه ديــوه واښه خــورک اوديوابــوچنبک کوي ســـرپردي موږ علم لروچه دغه غذاوخورک ديــوه صنــف دپاره ســـرگين وخرابـــي جوړيږي دبل دپاره په مشـکوناب بـدليږي سـره داتحـادنوعي وواشـتراک خورکي نومعلوم چه داظاهري وصوري اتحادوشرکت دقياس دپاره کافي نه دى بلکه مرجع دقياس واتحادي معنوي ته ده هغه په مانحن فيه کنبي نـ ـته نو قـياس ديوه پربل باندي طوطي واري باطل قـياس جوړيږي بـايدځان ځني وکتل سـي ځکه چه دابـاطل قـياس دي چه ډيرخلگ ئي په دنياکنبي شرمنده کړه اوپه آخرت به ئي ددوږخ په غيږ ورولي ۱۲

هردوني خوردند از يک آبخور[1] آن يکي خالي و آن پراز شکر

دادريم شـــــاهد پرهغه مدعادی چه دخصم قـــياس مردودزموږ دخوادی

واي قياس په دي په بنه نه سي درپاته په ماده بـــي دنلانوســـي ملاماته

واي دادوه صنفــه دنــل وگوره يــاره يوزمين يوآب خوريوئي بـــاداره

خوبـيـاهم ډيرفرق موجوددی پرهنره يوخالي دبـــل نس ډک دی دشـــکره

نوقـــياس ديوپربـــل بـــاندي کوله جهلانه حـــکم بـــي بـــولو کل بکله

داقـياس فارق بـاطل قـياس نوميږي کوم وفاق کوم اشتراک پکښي معلميږي

دبـاطل قياســه ځان کړه بـــرکناره په اټکــل مــه ورګډيــږه طوطـــي واره

هوقياس چه وي قـائم پرخپل اصولو هغه موږ ته معتبـــــــردي په اصولو

ملوراقـــياس جزاف وواټکل بـــوله هم دکذب ودروغ انډول ئي بـــــوله

صدهزاران اين چنين اشباه بين[2] فرق شان هفتاد ساله راه بين

اوس په وجه داجمال باندي ږغيږي په کثرت ئي دامثال ژبـــــــه چليږي

وايي فرق دګمرهانووونبـــــيانو هـــم دارنـــګه دالله پاک دوليانـــو

داوياوکالولارئـي په ميان کـښي بلکه زياته ترډي هم ده په دي شان کښي

داوياذکـــــردپاره دکثـــــرت دی داســـي نه چه نوداغه عددفقـــط دی

پردي مثل دعربـــوجوږ مزاج دی داوياوومرادکثــــــرت ددوي رواج دی

(١) په مثل دسابق شاهددی پربطلان دقياس دګمراهانوچه دانودريم شاهددي دايه تعلق وارتباط راغلومعني ته هغه داچه مولناقدس سره وايي چه قياس يودبله په ظاهري شرکت دبشريت باطل اوغلط دي مطردنه دی ځکه چه دادوه نله زه وته وينوچه ديوه آبخوره خورک کوي خوبياهم يوخالي کوګل په نس کښي هيڅ نلري اوهغه بل دخوږ شکري ډک وي نودظاهرصورت په حيث بايد يوپربل قياس سي اوحال داچه داقياس باطل دی ځکه چه ددوي ترمابين معنوي بون بعيدموجوددي هغه آبي دقياسه څخه دي نوقياس ديوه پربل مردود، دي لکه قياس دطوطي ووګمرهانو والسلام ١٢

(٢) وقت چه په سابق کښي يوڅوامثله وشواهد تفصيل په ډول ذکرکړه اوس داجمال په ژبـــه ديپاره دافادي دبنه کثرت ئي بيلاذکر کوي نووايي صدهزاران الخ، دايه تعلق وارتباط راغلومعني تــه هغــه داچه مولناقــدس سره په بـاره کښي دکثرت دشواهدداجمال په ژبــه دلســي وايي چه ســل زرهادغه ســي امثال چه په ظاهري صــورة شرکت سره لري وينه خوبياهم فرق وبعدددوي داوياوکالــولاره ووينــه اوس بــه داخبــره زده کړوچه په تعبــيرکښي دکثرته دشواهدوپيداوول اجمال اشاره ده ونهايت تثبيت ته دمطلوب چه هغه نوابطال دقياس دګمرهانوولو داغه اساسي ومقصودي تکي دقصي لکه تاچه پخواهم دموږ ه اوريدلي اومراددواياؤڅخه کثرت دي نه تعين ددغه مرتبي دعدداودارادة په عربوکښي عزيزه وغريبه نه وه بلکه دومره شائع وه چه ددوي مزاج پرداغه اراده پيداسوي ١٢

**اين خورد گردد پليدی زين جدا** (١) **وان خورد گردد همه نور خدا**

ترا جمالـــه پس راوړي څه تمثيلاتـــه  
هم پاشـلي ووشـندلي تشبيهاته

که ته وگوري په غوردي مقـــام کښي  
نو به پره دقت پيدا کړې په کلام کښي

هغـــه دا اول تفصيــــل دوم اجمالـــه  
په تفصيل ئي دوم ځل راوړه امثالـه

نو به دي صنعه کښي پره کامل توضيح سوه  
دمقام دپاره پره حاصل تشريح سوه

مولنا په دي عمل وکړه تحقيقـــــه  
دباطل قياس په حق کښي دير تدقيقه

اوس نو راځـــه ترجمي ته بـــرخورداره  
په معني دبيت بـه هم سو خبـرداره

واي گمـره چه هـرڅه خـوري نتيجـه داده  
چه گناو ومعصيـت ځنـي پيـداده

دانو ځنـــگه پديـــده ده زمـــاوروره  
دانو خومـره پليـده ده زمـاوروره

هرولي چه څه شـــي خوري دا ذريعه ده  
وطاعت ته دالله يو وســــيله ده

نو ده خورک سبـــب دنور حـــق دی  
په داغه بـاندي الله راضي مطلق دی

نو قـياس ديو پربـل بـاندي بـاطل دی  
چه کوي داسي قـياس هغه جاهل دی

**اين خورد زايد همه بخل حسد** (٢) **وان خورد زايد همه عشق احد**

دا تفصيل دي د تير سوي بيت سابقـه  
بنه ئي زده کړه غوږ پرونيســه لائقـه

واي فرق دادی په مابين داين وآن کښي  
دکافرو دنبــــي ولي په ميان کښي

واي کافر چه هرڅه خوري څو به مريږي  
دهغه څخه بــه بــخل حســد زيږي

وه لي دي کړي ناشـکري دحـق جليله  
نتيجــه ئــي دافعلونــه چه ذليلـه

چه نبــي وو هر ولي څه خورک کاندي  
مرتب نو الهي عشـق سـي وربـاندي

وه لي دی بنده شاکر خپل ځان کي جوړه  
په مزيد نعمت دخپل الله ســـي موږه

وه لي عشــق الهي په ســي په بـرخه  
تردي لوي نعمت نو چيري دی نيکبخته

(١) پس تر ذکر دا مثالو تفصيلا واجمالا بياڅه امثال شتي ذکر کوي دپاره دغايت تحقيق وتدقيق دمقام دا يه تعلق وارتباط راغلو معني ته هغه دا چه مولنا فرق دولي وگمراه په بل دول داسي وايي چه دغه طاغي چه خورک وکړي هغه ده ماکول پليدي وونجاست گرځي او دگناه ومعصيت ذريعه گرځي او هرڅه چه انبياو واولياء خوري هغه تولـه دخداي جل جلاله گرزي پدي معني چه هرڅه چه خوري هغه ذريعه وواسطه وطاعت وعبادت ته دالله خلص مقصد دا چه دگمراه دخورک نتيجه گناه وومعصيت ده او دولي دخورک نتيجه طاعت وعبادت ده نو ده خورک سبب دنور حق دی لوس به دا خبره زده کړو چه که زه وته په دي مقام کښي د مولنا قدس سره وعمل کردنه متوجه سو نو عجب دقت به ده ده په صنعه ځني پيدا کړو نه گوري چه ده قدس سره لولا امثال په تفصيل بيا په اجمال بيا په تفصيل هر يو به عجيب نمط ودول راوړه پدي کښي مقصد غايت دقت دمقام لو نهايت مبالغه په اثبات کښي دمطلوب والسلام ١٢

(٢) دا بيت تفصيل وترجمه دسابق بيت ده: دا يه تعلق وارتباط راغلو معني ته هغه دا چه مولنا قدس سره فرق واضح دولي وطاغي بيانه وي پدي باندي چه خورک دطاغي بخل وحسد زيږه وي يعني په آکل کښي دغه اوصاف ذميمه پيدا کوي او خورک دنبي وولي په آکل کښي ولوله دعشق داحد پيدا کوي نو دا څومره لوي فرق دي په مابين کښي نو سره ددي فرقه به کله عقل سليم دقياس اجازه وکړي بلکه دا قياس به دطوطي غوندي قياس سي ١٢

ابو الحفاظ: مولوي صالح محمد الارغستاني.

| اين[1] زمين پاک آن شورست بد | اين فرشته پاک وآن ديوست ودد |
|---|---|
| بـل تمثيل دى دصنفينو دتفريقـه | بنه ئي زده كړه پرداغه وكړه تصديقه |
| نواوس وايي مولنادا سـي مثال دى | دتفريق دپاره داواضح مقـال دى |
| واي وجود دانبيـاوواوليـاوو | همدارنگه دجميع صلحـاوو |
| لكه بنه مځكه خوبنه وبـختوره | نتيجه ئي منفعت وي بـهره وره |
| هم وجود داشقيـاوو گمرهانو | همدارنگه دجميع بدبـختانو |
| لكه مځكه چه توروه وي بدبـتره | نتيجه يه وي ځوزان يابـل ضرره |
| همدارنگه اول صنف فرشـته واره | پاكيزه هم نظافـت ئـي وي په واره |
| خودوم صنف ديو صفت بدته بلونكي | هم نجس وبـدنماهم دى ځيرونكى |
| نوته وگوره قـياس بـي يودبـله | په هيڅ ډول باندي نه راسي بالكله |
| نوته وكاږه لبـاس ددي قياسـه | دباطل وزره ته مه پريږده وسواسه |

| هردوصورت[2] گربهم ماندرواست | آب تلخ وآب شيرين راصفاست |
|---|---|
| داجواب دهغه سـوال چه ويل كيږي | چه صوري شبه خودلته ليدل كيږي |
| نوقياس ديوپربـل صحيح معلوم دى | نووتاته داقـياس پرڅه مذموم دي |
| جواب داچه صوري شبـهه كافي نه ده | دقـياس دپاره دغه شـافي نه ده |
| دقـياس بناپرشبـهه معنوي ده | اقـوالي وافعالي وسـيرتي ده |
| نه نه گوري تريخ درياب شيرين درياب | چه صوري مشابهت يه دي كاميابه |
| لكن فرق چه په سـيرت وپه لذت دى | نوقياس ديوپربـل باندي غلط دى |
| وولي دابـون بـعيددى زماياره | وقياس ته ئي هيڅ نه جوړيږي لاره |

(١) دانوردسابق واري دوه مثالون دباطل قياس دي چه مولناقدس سره دنهايت توضيح دمقام دپاره ذكركوي نووايي اين زمين الخ ،دايه تعلق وارتباط راغلومعني ته هغه داچه مولناقدس سره فرمايي چه يوه دغه پاكه خوبنه خوږه مځكه بله دغه توروه اوترخه مځكه ايايوتربله سره قياسيدلاي سي سره ددي چه جنس ئي يودي يانو څنگ بـه ولي وگمراه پله قـياس سي نودطوطي وارقياسـه څخه ځان وگوره همدارنگه داپاكه فرشـته ده اوهغه ځرونكي ديودى ايادادوه سره قياسيدلاي سي لانوبه څنگه ولي ووگمراه سره قياس سي نودطوطي غوندي قـياس ته مه گوره نوته دبـاطل قياسـه ځان وجغوره داغه تكي اصلي مقصوددقـصي څخه دى بيداره اوسـه غافل ځان مه جوړه وه غفلت سړي دحيوانانو په جملـه ورگډه وي نـوردي پرخدۍ پاك سپارم ١٢

(٢) چونچه پرسابـق سـره دوېرقـيل وقـال داتوهم باقـي پاته وو چه شـک نسـته چه ولي وطاغي صوري شبـهه سـره لري نوپرڅه ئي قـياس پربـله مذموم بولي نومولناقدس سره په دي بـيت جواب وايي حاصل داچه مجردصوري شبـهه دقـياس دپاره كافي وشافي نه ده بلكه بنـاء دقـياس پرشبـهه معنوي چه نواقـوال وافعال وسـيرت دى نه گوري وتريخ وشـيرين درياب تـه چه صوري شبهه په كامله وجه پكښي موجودده خوسيرت ولذت ومنفعت ئي ځله بيل دي بياهم يوپربـل ئي قياس غلط پدي بله وصبيان پوهيږي نومعلوم چه مداردقياس پرشبهه معنوي دي نه صوري دايه تعلق وارتباط سوراغلو معني ته هغه داچه مولناقدس سره وايي چه كه ته ووايي چه دادوه دريابونه په صورت كښي شبهه سره لي خو دارواومعقول خبره ده ځكه چه خوږ وتريخ درياب په صفائي كښي سره مشابه دي لكن دغه شبهه په قياس كښي كافي نه ده لكه تاچه زده كړي نولدي تقريره تاوپيژنده چه مصراع ثاني علت داول ده والسلام ١٢

| | |
|---|---|
| **جز که صاحب ذوق نشناسد شراب**[1] | **اوشناسد آب خوش از شوره آب** |
| چه قوه ذائقه دیوچانه وي | دهغه په خواږه تریخ هیڅ پروانه وي |
| خو خاوند د قوي پیژني شرابه | چه کم خوږ دی کم دی تریخ ددي دریابه |
| همدارنگه چه کفار فاقد قوي وه | نو دارنگ پوشیده گي یه ورېخواوه |
| نو نبي ده ته همسره دخپل ځان وو | هم ولي دده دځان سره یکسان وو |
| هم پر دي مضمون قیاس دوي لگولی | دا قیاس خو موبه باربار اوریدلی |
| مگر هغه باوقوف ممیزانه | چه ښه پیژني دبد ده هرزمانه |
| په نظر روحاني ددوي لیدل وي | و نبي وو ولي ته چه کتل وي |
| انبیاء اولیاء بولي بهترینه | په زرچنده خپل ځان بولي کهترینه |
| دباطل قیاس هیڅ وقت خاوندان نه دی | په طلب دبلندی دخپل ځان نه دی |
| **جز که صاحب ذوق نشناسد طعوم**[2] | **شهد را ناخورده کی داند زموم** |
| په سابق کښي دمشروب وکړي بیانه | اوس به حال کړي دمطعوم راته عیانه |
| دمطعوم خوندسړی نه سي پیژندلای | بي ځکونکي بل ئي نه سي درک کولای |
| دعسلو خوند پړیه چه پیدا کړي | نو دموموسه به خامخا جلا کړي |
| ورنه داتمیز کول ئي خوراگران دی | یو دبله پیژندل ئي خوراگران دی |
| همدارنگه هغه زړه چه وي سپیځلی | دالله نورئي په روح باندي چښلی |
| نو دی پیژني ښه بدهیڅ قیاس نه کړي | این وآن نو پرده هیڅ التباس نه کړي |

(۱) وقت چه په سابق بیت کښي مشابهتي صوري ومنل سوا او داهم ښکاره دي نو متوهم ته داتوهم پیدا کېږي چه بل مشابهت نو کمه دي نه ښکارېږي نو پر څه باندي موجوده مشابهت دقیاس دپاره کافي نه بولي او وایي چه دلته فرق موجود دی فرق ئي څه دی نو دا بیت جواب ددغه توهم دي حاصل یي داچه دلته فرق سته خو فاقد الذوقه ئي نه پیژني هرچه خاوند دذوق دی هغه یي پیژني چه دا اوبه تروي او داخوږي دي نو دفاقد الذوقه نظر پر صوري مشابهت کوتا دی وذوقي فرق ته ئي فکر نسته همدارنگه دگمراه نظر پر بشري مشابهت په مابین کښي دولي ودځان کوتاه دي وانفعالي وسیرتي واقوالي یعني معنوي فرق ته ئي فکر نسته ځکه چه معنوي ذائقه ده لره نسته دا یه تعلق وارتباط سورلغلو معني ته هغه داچه مولنا قدس سره وایي چه ملسوي دخاونده دذوق نه پیژني لوبه په صفت دتریولي وو خوږوالي فقط وصورت ته گوري یو دبله ئي سره قیلسه وي ځکه چه صورمشابهت خویشکه لري مگر دمعنووونوقي فرقه ځخه غافل ده نو ځکه طوطي ولري دغلط قیاس خلوند گرزیدلی هرچه خلوند دذوق دی هغه ترخي وخوږي ځله پیژني قیاس دیوه پر بل نه کوي ځکه چه علت مشترکه معنویه ئي نسته ۱۲

(۲) په سابق بیت کښي دمشروب بیان وو پدي بیت کښي هغسي دمطعوم بیان دي دایه تعلق وارتباط راغلو معني ته هغه داچه مولنا قدس سره فرمایي چه غیر دصاحب دذوق یعني فاقد الذوقه نه پیژني فرق دمطعومات پدي باندي چه داخوږدي داتریخ دي شهد په خورک وخوند دموموځخه پیژندل کېږي بیخورکه ئي تمیز نه کېږي همدارنگه فرق دولي وځان په ذوق معنوي باندي دي نو سره ددي فرقه قیاس مع الفارق دي وواجد ته دذوق او فاقد الذوق دي خپل قیاس باطل طوطي واري کوي ۱۲

(۱) وقت چه په سابق کښي دغه گمرهان فاقد الذوق اوناشناس معرفي سوه اوس ددوي ناشناسي په يوبل ځاي کښي هم رابنيي نوو ابي سحررا الخ ،دااحتمال هم لري چه دابيت جواب دهغه توهم سي چه چابه ويل چه دافرق پر گمرهانو ځنگه پوشيده ووحال داچه معجزه خويولوي فارق په مابين کښي دنبي وغيره په نيزدهرعاقل ده حاصل دجواب داچه دوي معجزه دسحرپه سترگوليده پدي ځاي کښي هم يوباطل قياس غوته کړي خوپرهر احتمال تعلق وارتباط حاصل دي راغلومعني ته هغه داچه گمرهانو دانبياوپه باره کښي دومره ناشناسي اختيار

| | |
|---|---|
| (۱) سحر را با معجزه کرده قياس | هر دو را بر مکر پندارد اساس |
| اوس وضيت دگمرهانوراته بنه يي | ناشناسي دکافرانوراته بنه يي |
| وايي دوي داسي قياس کوي غلطه | هم کانه دي هم ړانده ورک ځني پته |
| معجزه قياسه وي پرسحرباندي | دزړه سترگي دي ړندي ددوي په وړاندي |
| معجزه بولي دسحرپه قطارکښي | دواړمکرحيله بولي په شمارکښي |
| درک دحق وودباطل ئي نه دی کړی | معجزي تي ځکه سحردی ويلی |
| چه په دي واله کښي يووړي ځني ورخه | گمراهي وناکامي يه سوه په برخه |
| دقصي واصلي تکي ته نظرکړه | دباطل قياسه بالکل ځان بهرکړه |
| دباطل قياس خودغه نتيجه ده | گمراهي وتباهي يه وليجه ده |
| (۲) ساحران با موسی از استيزها | برگرفته چون عصای او عصا |
| اوس بيان دسابق بيت چه دلته کيږي | زعم داچه معجزه سحريوکيږي |
| ساحرانو دموسي جگړه اختيارکړه | خپل عمل ئي په لکړه افتکارکړه |
| يعني دوي جوړي لکړي برملاکړي | په مثال ئي دلکړي دموسي کړي |
| ساحرانو ظامردانوعه نيرنگ کړي | معجزه وسحردواړه يه يکرنگ کړي |
| مگرداقياس ددوي څه قياس نه وو | همدارنگه التباس التباس نه وو |
| بلکه فرق ووبيخي ډيرداين وآنه | په داغه باندي بيان کړي قرآنه |

کړي چه سحرني پر معجزه قياسه ره لو ددواړو اساس مکرو حيله بلله داخوصرف گمرهي وعناداوناشناسي وبي ذوقي ددوي وه والافرق دمعجزي او دسحرخوبيخي ډيردی يوفرق ئي په پيدايش دصورت خيالي فقط به سحرکښي اوپه پيدايش دصورت خارجي په معجزه کښي تفصيل لري بل مقام دی ،خلاصه داچه اثنياولکه چه انبياء واولياء يکسان دځان بلل همدارنگه معجزه وکرامت يکرنگ دسحربلل ۱۲

(۲) دابيت بيان دبيت سابق دي پدي معني چه کوم وقت چه لکړه په لاس کښي دموسي عليه السلام مارکيده اودادده معجزه وه نوساحرانو دادده معجزه پرسحرحمل کړه اودوي هم لکړي په لاس کښي ونيوي اووي ويل چه موږ لره هم توان ددي سته چه لکړي په سحرماروگرزه وونوساحرانو معجزه پرسحر قياس کړه اوداقياس مع الفارق طوطي واري غلط قياس ووځکه چه په مابين کښي داين وآن بون بعيدووخلاصه دبيت داچه ساحرانو دموسي عليه السلام سره دمقابلي تراڼ وتاړه اولکړي ئي لکه لکړي دموسي عليه السلام په لاسوکښي ونيوي حتي په اميد دغلبي دخپلوځانووه لکن هيهات هيهات ماظنوه پس ترديي نوزه تاشک په معني ووارتباط کښي نه بولم ۱۲

ابو الحفاظ :مولوي صالح محمد الارغستاني .

## زين عصا تا آن عصا فرقيست ژرف[1] — زين عمل تا آن عمل راهي شگرف

په سابق کښي ذکرسوي لکړي دواړي
اوس نوفرق بيانه وي ددوو قسمينو
واي ډيرفرق ددي عصاهغه عصادی
يوخصلت دموسوي لکړي داوو
چه بي ونجيته په مځکه کښي درحاله
ضرورت به داوبوکوم وقت پيدا سو
هم بيداره پيره داره پرموسيٰ وه
نورئي هم وه خصلتونه آن دپاسه
يوخصلت ددي خصالوکوم دی يارو
نو به فرق وه لي موجودنه وي په ميان کښي

دموسي وسحره وهمه واړي
دموسي وسحره دعصوينو
داعمل هغه عمله سه جلادی
په تاريکه شپه کښي شمعه رهنماوو
سمدستي يه نوميوه راوړه في الحاله
سمدستي به ئي حاجت په دي رواسو
دفرعون دپاره حية تسعي وه
پداغه به کفايت کړوسمدلاسه
په لکړه دساحرچه سي روي کاره
نوقياس کله رائي پدي دوران کښي

## لعنت الله اين عمل را درقفا[2] — رحمة الله آن عمل را در وفا

دابيان فرق دعمل دفريقينو
واي عمل دساحرانو وولعنته
دموسيٰ عمل رحمتي الهي وو
وه لي رب ويل کليم ته چه ته راسه
په اجراء دالهي حکم رحمت دی
چه آثارئي مختلف سوه يودبله

په بيان دنتيجي دعملينو
خواجرائي دفرعون په حکومته
ولي داسوي په حکم سبحاني وو
بياداخپله عصاواچه وه دلاسه
په اداد فرعوني امرلعنت دی
دقياس دائره تنگه سوه بالکله

(١) وقت چه په سابق کښي دوي لکړي يوه دموسي عليه السلام يوه دسحره ذکرسوي اوس فرق ترمابين دلکړو اودعمل په دوي رابنه يي نووايي زين عصاالخ .دايه تعلق وارتباط راغلو معني ته هغه داچه ددي لکړي ودهغه لکړي يعني دموسي عليه السلام دلکړي اودسحره وودلکړي فرق ډيراوعميق دی ووځکه چه لکړي لره دموسي عليه السلام هغه خواص وه چه دهغو څخه يوهم په لکړوکښي دسحره نه وويودخواصو څخه دلکړي دموسي عليه السلام داووچه په وقت دضرورت بي په مځکه کښي ونحسنته سمدستي يه ميوه ورکول اودضرورت په وقت بي اوبه ورکولي اودموسي عليه السلام دپاره پيره داراودفرعون دپاره دخوف گذار ووهمدارنگه په مابين کښي دعمل موسي عليه السلام اودعمل سحره وويو عميقه ومهيبه لاره نوژرف په معني دعميق مراد خني عظيم اوشگرف په کسره دشين اوبفتحه دگاف فارسي په معني دعميق ومهيب و السلام ١٢

(٢) وقت چه په سابق بيت کښي فرق دعملينو ذکرکړي اوس بيان دفرق په بيان دنتيجي دعملينوکوي نووايي لعنت الله الخ .دايه تعلق وارتباط راغلو معني ته هغه داچه وربسي په عمل پسي دسحره وولعنت دخداي ووېدي خاطرچه دوي دغه کارپه امردفرعون کاوه فرعون وامرئي دواړه دالله دلعنت مظهروه اوعمل دموسي عليه السلام رحمت الهي ووېدي خاطرچه دغه کاربه وفادامردخداي جل جلاله ووهرعمل په امرالله جل جلاله مظهردرحمت دی چه آثارئي مختلف سوه نوقياس ديوه پربل باندي دطوطي رنگه باطل قياس دی اوباطل قياس تاپيژندلی چه دناپوهي وگمراهي ترجمان دی الله دي موږ وتاسي ځني وساتي آمين ١٢

ابو الحفاظ :مولوي صالح محمد الارغستاني.

| | |
|---|---|
| **كافران اندر مرى بوزينه طبع**[1] | **آفتى آمد درون سينه طمع** |
| بــل حــالت دكافرانو بــيانيږي | هم قــياس غلط گمان ئي ښكاره كيږي |
| دكافر نامراده طبــع دبــيزو ،وي | دعناده ســره هر وقــت روبــرووي |
| پدي خوښ چه خپل عمل عين دبل بولي | پداغه درس وي خوشحال بل درس نه لولي |
| واي ماهغــه څه دي كــړي چه فلانــه | فرق ئي نســته دغه دواړه دي يكســانه |
| چه بــيزو خپل عمل بــولي دفلانه | داغلط قــياس بــل دي صرف گمانه |
| فرق دي ډير ددي وهغه په ميان كښي | دانبكاره خبــره بــوله پدي شــان كښي |
| تل آفت چه كافرانو ته رســــيږي | هغــه طمعــه وواميــدچه وريبنيــږي |
| هم په دي خاطر قــياس كوي بــاطله | ناخبــــــــره دهرڅه وي داجاهله |
| محبــت چه ددنيا يوڅوك حــصار كړي | هغه كله حقيقــــت ولور ته ځار كړي |
| **هرچه مردم ميكند بوزينه هم**[2] | **آن كند كز مرد بيند دمبدم** |
| دابيان دسابــق بيت موږ بــه خبر كړي | دبــيزو خوي په ومونږ ته رابــهر كړي |
| واي هرڅه چه خلق كړي بيزوئي كاندي | هرعمل ځن زده كوي ددوي په وړاندي |
| هرســړي چه عمل كړي داورته گوري | سمدلاســـي زده كوي دده دلوري |
| مگر داعمل چه كړي دابــيزو خواره | كله داســـي لكه خلق چه كوي ياره |
| فرق ئي ديردي هرعاقل باندي پوهيږي | نوقــياس ئي يودبـــله كله كيږي |

(۱) وقت چه په سابق بيت كښي حالت دكافر په لعنت بيان كړي اوس حالت دده په خساست دطبعي بيانه وي نووايي كافران اندرمري الخ .دايه تعلق وارتبـاط راغلو معني ته هغه داچه مولناقـدس سـره وايي چه كافران په برابري كښي دخان دبله سره په مرتبه كښي بيزو طبع دي يعني لكه بيزچه داعادت لري چه څوك يوكار وكړي داهم هغه كار كوي اوځان دهغه چاسره په دغه كار كښي مساوي بولي اوځان پرهغه باندي قياسه وي اوبدي قياس كښي ځان حق په جانب بولي اوحال داچه مابين كښي دعمل دبيزو اودعمل دهغه چابون بعيدي قياس ئي يوړ بـــل طوطي غوندي بـاطل قـياس دي همدارنگه قـياس داشقـــياوودصورتي بشري په سبب يوباطل عاطــل طوطــي واره قــياس دي اوبــل آفت چه دكافر دطبــعه شــين دي هغـــه داچه ددوي په ســـينو كښي طمعه جينتلي اودنيادمحبته سره اودجاه وجلال سـره مشـــت وگريبـــان وي دحقيقــــت وفضلته څخه دبـــل خپل پرځان انفت وانكار كوي نووايي ( ما انتم الا بشر مثلنا)۱۲

(۲) دابيت بيان دسابق دي داغــه وي وجهــه دتعين وارتباط ده راغلو معنــي تــه هغــه داچه مولناقدس سره دبيزو دطبع په تشريح كښي وايي هرڅه عمل چه خلق كوي هغه عمل بيزوهم دمېدمه كوي چه دخلقو څخه ئي ويني اودادخپل حماقت په وجهه داخپل عمل دخلقو دعمله سره يكسان ومساوي بولي اوقياس ئي يودبله سره كوي اوحال داچه ددي دوو عملو په مابين كښي بون بعيد موجود دي نو دبيزو قياس طوطي واري باطل قياس دي همدارنگه شان د اشقياوو دقياس دي ۱۲

ابوالحفاظ :مولوي صالح محمد الارغستاني .

(١) وقت چه عمل دبیزو پر طرز دعمل دانسان په سابق بیت کښي بیان کړي اوس گمان ددي دخپل عمل په هکله بیانه وي نو وايي اوگمان کرده الخ دایه تعلق وارتباط راغلو معني ته هغه داچه مولنا قدس سره وايي دا بیزو چه عمل دانسان دعمل په ډول کوي په حقیقت کښي خود هغه مساوي وبرابر نه مگر داگمان وقیاس کړي چه ماهم دغسي عمل کړي لکه داانسان کټ مټ ور سره مساوي وبرابر دي هیڅ فرق نه سره لري او معلومه ده چه دا بیزو په دا فکر کښي جگړه ماره ده وه لي چه فرق ددي عمل وو دانسان دعمل ډیر دي نو ددي قیاس طوطي غوندي باطل قیاس دی همدارنگه داشقیا وو قیاس چه خپل ځان مساوي دانبیاوو اولیا وبولي باطل وعاطل قیاس دی نور دي پر خداي پاک سپارم ١٢

(٢) وقت چه په سابق بیت کښي دابیان کړه چه بیزو پر خپل عمل وو دانسان پر عمل د بلا فرق گمان کوي اوس ئي پدي بیت کښي دفرق بیان کوي اوددي حماقت ښکاره کوي نو وايي این کند الخ، دایه تعلق وارتباط راغلو معني ته هغه داچه مولنا فرمائي

| | |
|---|---|
| **اوگمان کرده که من کردم چو او**[1] | **فرق را کی داند آن استیزه رو** |
| په عمل کښي دبیزو که څه کمي دی | داگمان کوي چه زما عمل دغسې دي |
| یعني زما عمل دی دانسانه | څه چه زه کوم دده سره یکسانه |
| هیڅ په فرق باندي قائله بیزو نه ده | وهیڅ نوع ته دتمیزئي مائل نه ده |
| دي دعوه کښي داجگړه کړي معلوم داره | شوخ چشمي واستیزه کوي سرداره |
| داقیاس گمان بیزو لره غلط دی | هم ددي فکر په خیرو کښي لت پت دی |
| وه لي داقیاس هیچاویلی نه دي | هیڅ عاقل دامساوات منلی نه دی |
| همدارنگه چه گمان کړي گمرهانه | هرولي مساوي بولي دخپل ځانه |
| داقیاس گمان ددوي بالکل بیځایه | طوطي واره غلط سوي سر ترپایه |
| **این کند از امر و آن بهر ستیز**[2] | **بر سر استیزه رویان خاک ریز** |
| اوس بیان دلوي خطادبیزو، وايي | جگړه ماره په وماوتاته ستایي |
| واي انسان چه څه کوي په امر حق دی | دبیزو عمل فقط تشبیه مطلق دی |
| دبیزو هدف فقط دی مساواته | بله هیڅ دنده ودي ته نه ده پاته |
| دادعوه ئي ده جگړه موږ به ئي واورو | خوبنه داچه خوله دي ډکه وي دخاورو |
| همدارنگ دگمرهانو دادعوه ده | استیزه وشوخ چشمي ددوي پیشه ده |
| مساوات دوي دبشر په نگاه وايي | خودارنگه قیاس هیڅ نه ورته ښایي |
| داقیاس ئي پر ظاهر باندي بنادی | په باطن کښي سوچ غلط صفاً صفادي |

چه انسان محق چه عمل کوي هغه دامر حق دلاري څخه کوي او هغه بیزوئي دجگړه ماری ومجرد دعوي دلاري څخه کوي اوددي دوولارو ترمابین بون بعید دي نو قیاس دیوه پر بل باندي غلط وباطل دي لکه قیاس دطوطي چه باطل وغلط وو همدارنگه دگمرهانو اشقیاوو قیاس دمجرد دعوي وجگړي دلاري دی نو غلط وباطل دي نو پرسر دجگړه مارانو خاوري ورتوي کړه قول تي غوږ مه نیسي فعل تي گوره مه ١٢

ابو الحفاظ :مولوي صالح محمد الارغستاني.

| | |
|---|---|
| آن منافق باموافق درنماز[1] | از پئ استیزه آید نی نیاز |
| اوس بیان دمشبه کړي تفصیل واره | ورته څیرسه بنه یي زده کړه زمایاره |
| واي حال گوره دگمراه ومنافقه | لمونځ کوي لکه مؤمن وموافقه |
| مگرلمونځ ئي په عنادوپه لباس وي | داسي نه چه په نیازوپه اخلاص وي |
| بلکه داکارپه ریاوپه تقلیدوي | معتقدهیڅکله نه وي بل عنیدوي |
| نومؤمن دځپل لمانځه سه برخه یوسي | په دنیاوآخرت کښي حصه یوسي |
| خوگمراه ومنافق ته برخه نسته | په دنیاوآخرت کښي حصه نسته |
| بلکه دغه عبادت ده ته عقاب وي | ثواب څه بلکه وده ته لوي عذاب وي |
| نوقیاس داین وآن کله کیداي سي | دغه دواړه نویکسان کله کیداي سي |
| داقیاس نوطوطي واره قیاس بوله | دقیاس مع الفارق په ژبي لوله |
| درنماز وروزه وحج وزکات[2] | بامنافق مؤمنان دربردومات |
| اوس حالت دمنافق ومؤمن دواړو | بنه توضیح راته کوي دهمه واړو |
| وايي لمونځ، وژه وحج وهم زکاته | دمؤمن ومنافق دي بردوماته |
| بردومات دي، یومثل ددووکسانو | یوگټونکي بل بایلونکي داڅمانو |
| وغالب ته دقماربردویل کیږي | پدي صنعه کښي مغلوب مات بلل کیږي |
| نومؤمن پدي اعمالودي، گټونکي | منافق پدي افعالودي، بایلونکي |
| دمؤمن به حسنات وي په دنیاکښي | همدارنگه بي درجات وي په عقباکښي |
| منافق به وي مهجوردحسناتو | هم به دي بولومحروم ددرجاتو |
| نوقیاس دیوپربل مناسب نه دي، | طوطي واره یواتکل مناسب نه دي، |

(۱) وقت چه بیان وتفصیل دمشبه به په دي سابق قول کښي چه کافران اندرمري الخ ،وکړي اوس بیان وتفصیل دمشبه کوي نووايي آن منافق الخ ،دایه تعلق وارتباط راغلومعني ته هغه داچه مولنا قدس سره فرمائي چه دغه کافرمنافق چه دمؤمن صادق سره په لمانځه کښي راځي هغه دعنادوتقلیدوجگړه ماري پربناوي نه دحقیقت لمانځه واخلاص ونیازپربنانومؤمن دځپل لمانځه څخه په دنیاکښي حسنات حاصله وي اوپه آخرت کښي اعلي درجات په گټي اومنافق په سبب دځپل نفاق په دنیاکښي مهجوردحسناتووفضائلووي اوپه آخرت کښي محروم درحمته وجنات څخه وي نوددي دووعبادتونو هم دارنگه دي دوو دولوترمابین بون بعید دي، قیاس ئي یوپربل په طوطي غوندي باطل قیاس دي همدارنگه داشقیاودولي وشقي قیاس پردول دطوطي دقیاس دي باطل ،مردود نومیږي والسلام ۱۲

(۲) دابیت تفصیل وتوضیح دسابق دپاره دي ځکه چه په سابق کښي مجردبیان دفرق دمؤمن ومنافق وو په لمانځه کښي لوېدي اوسني بیت کښي فرق دمؤمن ومنافق په لمانځه وروژه وحج وزکات دبردومات په ډول نو حوددا تفصیل دسابق سودایه تعلق وارتباط راغلومعني ته هغه داچه مولناقدس سره تشریح وحالت دمنافق ومؤمن کوي حاصل دوينائي داچه منافق دمؤمن سره په باره کښي دلمانځه وروژي وحج وزکات په بازي کښي دبردومات دترکیب، په ډول ضرب مثل دي، دهغه دوونفروچه بازي دقمارکوي یوغالب وگټونکي وي بل مغلوب وبایلونکي وي وغالب ووگټونکي ته دوي بردویل اومغلوب وبایلونکي ته ئي مات ویل هم دارنگه مومن ومنافق په لمانځه ورژه حج وزکات کښي په بردمات کښي دي ځکه چه مومن په دغه اعمالوغالب وگټونکي ددارینودي اومنافق په دغه اعمالومستحق دعذاب مغلوب بایلونکي ددارینودي نوقیاس ئي یوپربل دطوطي ولري غلط دي، همدارنگه حالت دشقي وولي ۱۲

(۱) دابيت تفصيل ونشر دسابق بيت دی، لکه داچه ښکاره خبره ده نو دايه تعلق وارتباط راغلو معني ته هغه داچه مولنا قدس سره فرمائي چه عاقبت دامر به داوي چه مومنان به دبرداوګټولو خاوندان وي اودغالبيت په درشل کښي به وي ددنياپه زندګي کښي به سرخ رواوخاوندد آبرووي په آخرت کښي به دخداي جل جلاله په جنتونواولوي لوي نعمتونو کښي وي اومنافقان به دمات اوبايلولو خاوندان وي اودمغلوبيت په قفس کښي به وي ددنيازندګي به ئي په ذلت وبي آبرويي وي په آخرت کښي به عذاب اليم په برخه وي نووقت چه مومن په دنياو آخرت بهره ورسو اومنافق په دنياو آخرت دربدرسو نوددي دوو ډلو ترمابين فرق ښيخي ډېردي يوځونه رفيع بل ځونه وضيع نو قياس ديوه پربل دځپل جهل وحماقت ښکاره کيدل دي اودطوطي غوندي دبادرکه انسانو خنداته ځان جوړه ول دي نو داقياس هغه قياس تو له غلطي مطلق دی والسلام ۱۲

| مؤمنان رابرد باشد عاقبت (۱) | برمنافق مات اندر آخرت |
|---|---|
| سابق لف دلته ئي نشر بيانيږي | داصنعت دلف ونشر به نوم يادېږي |
| واي مؤمن صاحب دبرد خوددي ګټونکي | منافق خاوند دمات تل دي بايلونکي |
| نو مومن دی بهره وربه دي دنياکښي | همدارنګه بختوردی په عقاب کښي |
| منافق عزت بايلونکي دردنيادی | آخرت کښي ئي عذاب هم ورپخوادي |
| نوددي دووپرګنيو فرق دي ډېره | يو رفيع بل دی وضيع مه ئي کړه هيره |
| يو نيکبخت بل دي بدبخت باامتيازه | په مابين خپل کښي بعدځومره دي ممتازه |
| نو ددي سره سره اتحادکوم دی | هم ددي سره سره اشتراک کوم دی |
| نو قياس به يو دبله څنګه راسي | چه ددوي بعدسوښکاره وموږ ته داسي |
| بي مورده قياس هيڅ په ګټه نه دی | دطوطي رنګه قياس هم په نښه نه دی |

| ګرچه هردو برسريک بازيند (۲) | ليک باهم مروزي ورازيند |
|---|---|
| دسابقه داسي سوال راپيدا کيږي | چه دادوي طايفي بي فرقه ښکاره کيږي |
| وه لي جمعي ديوي بازي پرسره | په يوه عمل دوي بخت وه سره بسره |
| اتحاددعمل قرب لره داعي دی | داسي نه چه تناسب لره آبي دی |
| نو يدي خاطر کيداي سي بي وسواسه | چه دادواړه يو دبله سي قياسه |
| نو ثابت سوماقال دګمرهانو | مساوات چه ئي وايه دي جاهلانو |
| جواب داقياس کوي ظاهري سترګي | مساوات پرخوله راوړي جسماني سترګي |
| معنوي سترګي به کله داقياس کړي | روحاني سترګي به کله دااحساس کړي |
| نو کامل عقل پدي باندي راضي دی | چه دافرق يو مروزي وودرازي دی |
| دامجمل تفصيل ئي تادي اوريدلی | په سابق کښي موږ وتاته وليکلی |

(۲) وقت چه دسابقه سره داتوهم باقي پاته کيده چه دلدوي طائفي چه کوم وقت پريوه بازي سره جمعه سوي لوپه يوه عمل باندي سره بخت سوي نوئي کمال تناسب په مابين کښي پيداسو ځکه چه اتحاددعمل دکمال قرب داعي دي نوکيداي سي چه يو دبله ئي قياس سره وسي نو دابيت ئي ددغه توهم ددفع دپاره راوړي حاصل ددفع داچه مولنا قدس سره فرمايي چه دادوي دلي چه يوه دمومن بله دمنافق ده اګرچه پريوه بازي دلمانځه وغيره سره دي خوبياهم بعدپه مابين کښي ددوي دمرو. ودري په شان وجودلري نو په مجردصوري مشابهت قياس ديوي پربلي باطل لکه پخواچه دي دازده کړي بناپردي نوهروزي منسوب ومروته چه يوښاردخراسانه په شرق حقيقي کښي واقع دي اورزي منسوب وري ته چه يوښاردعراق په غرب حقيقي کښي واقع وي نوسره ددي بعده قياس باطل دلته بل احتمال هم سته خوتنګي دليکي رخصت نه راکوي ۱۲

| هر يكي سوى مقام خود رود [1] | هر يكي بروفق نام خود رود |
|---|---|
| اوس منزل دهري ډلي راته ښه يي | هم مسكن دهر ډلي راته ښه يي |
| وايي هره ډله ځي وخپل مقام ته | پروفاق دخپل نامه به ځي مرام ته |
| يعني هرمؤمن به ځي وجنتو ته | منافق به وي روان ودوزخو ته |
| هرمؤمن په ځي مقام دسعادت ته | منافق به ځي مقام دشقاوت ته |
| نو به څنګه وي قياس ديوپربله | نو به څنګه مساوات وي كل به كله |
| نومعلوم بشريت هيڅ مقياس نه دى | داعلت مشترك دقياس نه دى |
| نوګمراه انسان چه كړي داسي قياسه | نوپرده باندي راغلى التباسه |
| نوقياس دده قياس دطوطي بوله | هم باطل هم ئي عاطل سمدستي بوله |

| مومنش خوانند جانش خوش شود [2] | ورمنافق تندو پرآتش شود |
|---|---|
| اوس دليل راوړي پردي باندي باهره | دمومن ومنافق فرق دى ظاهره |
| ته چه ووايي مومن ومنافق ته | نوخطاب ستاروبه روسوموافق ته |
| دى راضي ومستانه پدي كلام سي | ډيرخوشحاله وتازه پدغه نام سي |
| چه وده ته منافق ووايي وروره | تندوترش زړګي ئي ډك سي دسره اوره |
| نومعلوم چه فرق ښكاره وهويدا دى | كه نى وه لي پرده فرق ددي ودادى |
| نومعلوم چه دوي قياس كړي يوپربله | دادعقله دى بيخي ليري بالكله |
| نوقياس ددوي وطوطي دى يكسانه | ترزالى دعنكبوت ئي سست دى شانه |
| نواوس زماوستاداغوته فيصله ده | چه دشرمه ددوي ډكه مسئله ده |

(۱) وقت چه په سابق كښي فرق وتميزددي دوو ډلو چه مومنه ومنافقه وه رنګ رنګ راته وسواوس ئي مولناقدس سره فرق دمنزل راته ښه يي نووايي هريكي سوي الخ ،دايه تعلق وارتباط راغلو معني ته هغه داچه مولناقدس سره وايي چه هرډله به ددغه دوو ډلو څخه وطرف ته دخپل مقام ځي مومن به وسعادت وجنتونو ته ځي اومنافق به وشقاوت وودوږخونو ته ځي اوهرډله به پروفق دخپل نامه تګ كوي يعني كه ئي نوم په سعداوكښي وو سعادت به مومي اوكه ئه نوم په اشقياووكښي ووشقاوت به مومي پرموجب داعملوا فكل ميسر لماخلق له ) نو وقت چه ددي دوو ډلو تر مابين دونه عميق فرق وجود لري نو قياس ددوي يوپربله دطوطي غوندي باطل قياس دي مجرد بشريت مقياس وعلت مشتركه دقياس نه سي كيدلاي لكه داچه مو سابق هم دزه كړي ۱۲ (۲) وقت چه په سابق كښي فرق دمومن ومنافق په مكمل ډول بيان كړي لوس دليل وتائيد ددغي خبري بيانه وي نووايي مومنش خوانند الخ ،دايه تعلق ولرتباط راغلو معني ته هغه داچه مولناقدس سره وايي چه هروقت چه ته ومنافق ته مومن ووايي نودي ډيرخوشحاله سي اوله تاڅخه ډير راضي سي لوك بانه چيري وده ته منافق وه وايي نودي تندوترش لوزړه ئي دغم داوره ډك سي اوستاڅخه ډيرناراضه اوددښمنانو په قطاركښي دي شميري نولدي څخه معلومه سوه چه فرق په مابين كښي ددي دوو ډلوسته والانو ولي به پرده باندي ددي دووښو مو فرق واي نو ددي فرقه معلومه سوه چه قياس ديوي ډلي پربله باندي دطوطي غوندي فارق قياس دي والسلام ۱۲

ابو الحفاظ : مولوي صالح محمد الارغستاني .

| نام آن محبوب از ذات وی ست | نام این مبغوض ز آفات وی ست |
|---|---|
| اوس نووجهه دســـــروراندوه وايي | په نامــه دمنافـــق مؤمـــن فرمايـــي |
| دمؤمن نوم چه محبوب وجهه ئي داده | چه ښه ذات ښه ئي مصداق ښه په معناده |
| يعني نوم چه دمؤمن خوښ دي هرچاته | حـــــــــتي دغه منافق عنادوالاته |
| سِرئي داچه ذات مصداق دلفظ مومينه | مبـــارک رب ته مقبـــول دی اي امينه |
| نوخوبـــــي چه دمؤمن لفظ ته پيداده | داپه روي وپه جهت دمســـــــــماده |
| نوتعريـف چه دمؤمـن په نامـه کيـږي | نومنشـــاي مســـامصداق ښکاريږي |
| همدارنگه چه مبـغوض نوم منافق دی | پدي وجهـه چه مصـداق ئـي نالائـق دی |
| يعني نوم دمنافق چه مبـــغوض لولم | دي خاطرچه ذات مصداق ئي مفتون بولم |
| تغاير مصداقـــــــي په دي اندازه | خودمانع دی دقـــياس درازوبـــازه |
| نوښه دابـــــناپردغه ســـرانجامه | چه نوموړي قـــــياس واچه وودفامه |

| میم واو و میم و نون تشریف نیست (٢) | لفظ مؤمن جز پیٔ تعریف نیست |
|---|---|
| دسابـــــــــــق دپاره وايي دادليله | غوږپرونيســـه ښه زده ئي کړه خليله |
| واي حـــروف دشـــرافت څه منشـــانه ده | هـم لفظونـه دخلعـت څه جامـه نـه ده |
| وه لـــــي داظاهردهرچاجامــــــه گرځي | خوسږي په دي سبب محبوب نه گرځي |
| مثـــلاً لفـــظ دمؤمـــن لـــري يوصورتـــه | خـوېدي خاطـردی نـه دی يوخلعتـه |
| دوم ده لـــره معنـــي وذات مصـــداق دی | خوېدي خاطرخلعت علي الاطلاق دی |
| چه په خپل تعريف صادق سي په يوځاي کښي | حب وونورآثارراځي په دغه ځاي کښي |
| منافق چه هم په دارنگه قـــــياس کړو | نوېدي بـــه لاره بـــنده دقـــياس کړو |

(١) وقت چه په سابق بيت کښي خوشحالي دمؤمن په نامه اوترش رويي وخوابدي دمنافق په نامه ذکرکړه اوس وجهه ددغه خوشحالي وخوابدي ذکرکوي نووايي نام آن محبوب الخ ،دايه تعلق وارتبـاط راغلومعني ته هغه داچه نوم دمؤمن چه محبوب دی هغه دذات ومصداق درويه محبوب دی يعني حقيقت دايمان صفت مادحه دی ذات ئي محبوب اسم محبوب په نيزدالله باندي مقبول همدارنگه نوم دمنافق چه مبغوض دی هغه داڅکه ځخه دنفاق مبغوض دي يعني نفاق په حقيقت کښي يوصفت قبيحه دی حقيقت ومصداق ئي مبغوض اسم ئي مبـــغوض په نيزدالله بـــاندي غيرمقبـــول نو خوبـــي ولفظ ته دمؤمن دمســــمامصداق په خاطـــرده همدارنـــگه مبـــغوضيت ولفظ ته دمنافق دمصدلق ومسما په خاطـــرده نوتغايـــرد مصدلق په دومره انداز ملنع دقيلـــه ځخه دي نوقـــيلس ديوه پربـــل بـــلندي دطوطي غوندي بـــاطل قـــيلس دي بـــايد دفامه ئـــي وغـــورځه وي والسلام ١٢

(٢) دابيت دليل دسابق بـــيت دپاره دي نوئي تعلق وارتبـــاط حـــاصل سوحـــاصل دمعني ئي داچه لفظ لـــره دمؤمـــن دحـــروفوپه حيث يعني دميم وولو،وميم ونون په خاطرڅه شرف نســـته وه لي داظاهره وظاهري مؤمن وبـــاطني کافرته هم ويـــل کيـــږي نولفـــظ دمؤمن چه في الحقيقت وچاته ويـــل کيـــږي هغـــه مربـــوط ترتعريفه و مصداقه دمؤمن دی نومؤمن دذات ومصداق په وجهه خلعت ومحبوب دي نه دحروفوپه وجهه فقط همدارنگه لفظ دمنافق نووقت چه مصداقي تغايرراغلي نولاره دقياس بنده سوه نوطوطي غوندي قياس مکوه ١٢

ابو الحفاظ :مولوي صالح محمد الارغستاني.

| | |
|---|---|
| گرمنافق خوانیش این نام دون (۱) | همچو گزدم می خلد در اندرون |
| کـه تـه وايـي منافـق ومنافـق تـه | دادني نوم ياده وي ودي فاسـق ته |
| نوداسـتاويل ودہ ته يووهل وي | لکه زهرچه په زړه کښي ورښندل وي |
| ستاويل ده ته لړم غوندي چيچل سي | په داغه باندي زخمي زړه وکوګل سي |
| دانووه لي منافق له بـد مصداق دی | دانوکله دده نفس لره مشـتاق دی |
| لکن نوم چه دمؤمن ده تـه يادېـږي | په هغه باندي بي طوره خوشحالېږي |
| نومعلوم چه فرق دی ډيرداين وآنه | اتحـادئي نوپرکمه سـوروانه |
| نوداحدمشـترک بشـريته | وه لي نه ګرزي په دي ځاي کښي علته |
| نوقـياس ددوي غلط دی سراسـره | دطوطي سـره بـيخي دی برابـره |
| گرنه این نام اشتقاق دوزخ ست (۲) | پس چرا در وی مذاق دوزخ ست |
| دابـيان دي دسابـق بـيت اي هوښياره | ورته ځيرسه چه دي زړه سي برقـراره |
| چه په لفـظ دمنافـق دي زړه خوږېـږي | په داغـه وينالـوي غـم درتـه پيښېـږي |
| نوپه لفظ چه دي زړه په اضطـراب دی | ځکه داوجهنم ته اسـطرلاب دی |
| منافـق ودوزخ دواړه همجـوړه دي | نه بـيليږي يووبـل سـره پنه وي |
| لکن مراد، ددغه لفظه سـه معناده | ددوزخ ئي مستحقـه مسـماده |
| نوبدي خاطرزه وايم شـمله شـخه | چه نفاق مشـتق ماخوذدی له دوزخه |
| وه لي دانفاق سبـب دعذابـودی | همدارنـګه دی موجـب ددوزخـودی |
| که دالفظ مشـتق نه واي ددوزخه | نوپه ده کښي بـه خوندنه واي ددوزخه |
| دمؤمن لفظ بـرخلاف دمنافق دی | لامحـال دثوابونومطابـق دی |
| نوداځومره فـرق چه دلتـه معلوميږي | چه کوچني وبـاوله هم په پوهيږي |
| نوبـه څرنګه قـياس سـي يوپربـله | مساوات بـه ئي موجودنه سي بـالکله |
| نوقياس ئي دطوطي غوندي قياس دی | سوچ باطل پردوي لويدلی التباس دی |

(۱) وقت چه په سابق بيت کښي محبوبيت ومبغوضيت دذات ومصداق په خاطرمرادسونه دحروفوپه خاطرنودا بيت دليل پردغه مدعٰي راوړي نووايي گرمنافق الخ، دايه تعلق وارتباط راغلومعني ته هغه داچه که ته چيري ووايي ومنافق ته دغه دون وخبيث نوم نودي لکه لړم تپ واثرودردپيداکوي په ديرينه وسينه کښي يعني داستا ويل ودہ ته دلړم وهل غوندي ښکاري اوزړه ئي ورباندي زخمي کيږي داپدي خاطرچه منافق لره بدمصداق دی اوهرچه نوم دمؤمن وچاته يادېږي په هغه باندي دی ډيرخوشحاله کيږي ځکه چه مؤمن لره ښه مصداق نومعلوم چه ددوي دوو ترمابين ډيرفرق وبون بعيد موجوددي اواشتراک دبشريت دقياس دپاره کافي نه دي نوقياس ديوه پربـل دطوطي غوندي باطل قياس دی ۱۲

(۲) دابيت بيان وسبب دسابـق بـيت دي پدي خاطـرچه دازړه خـوږ يدلي په دغـه نامـه پدي سبب دی چه دده مصداق موجـب ددوزخ دي کنـي نوولي بـي په ويلووده تـه دده زړه خوږېـدلاي دايه تعلق وارتبـاط راغلومعنـي تـه هغـه داچه مولٰناقدس سره وايـي چه کـه چيـري دانوم دمنافق مشـتق ددوزخـه نـه واي يعنـي که دانوم موجب وسـبب دعذاب نه واي نويـه ولـي په ده کښي خونـد دعذاب واي چه به ويلو دسـړي زړه متالم کيږي پرخـلاف ددغـه لفـظ دمؤمـن دي ولـي چه مصـداق ئـي موجـب وسبب دثواب دي چه په ويلو يه دسړي زړه مطمئن وخوشحاله کيږي دانوځومره فرق دي په مابين کښي ددوي دوونوسرپردغه ديوه قياس پربل دطوطي غوندي باطل قياس دي ۱۲

**زشتی این نام بد از حرف نیست[1] — تلخی آن آب بحر از ظرف نیست**

دسابقـــــــه توهم راپيداکيږي — نوبه دي بيت بـاندي دفعه ويل کيږي
نام بـــــــدي دمنافق ده په خپل ذاته — داسي نه چه تيره سوي دحـرف خواته
بـــلکه بـــدذات ومصداق دمنافق دی — حـــروف نه لري بـــدي تول موافق دی
ظرف هيڅ بـــدنه دي ښکاره مي مدعاده — بـــلکه بـــددلته مظروف ومســـماده
ظرف حـــروف مظروف معني ومســـماده — داواضحـــــــــه وهرچاته هويداده
په بدي بـــه دمظروف ظرف بـــدنه بـــولو — اوس نوراســـه درومي تمثيل بـــه لولو
واي دتريخ درياب اوبه په ذات تلخي دی — په هرلوښي کي چه وي ترخي ترخي دي
دمظروف په بـــدوظرف هيڅ نه بـــدکيږي — په ديده وتجربـــــــه راته معلميږي
چه بـــــدي دمنافق ســـــوه په خپل ذاته — دمومنه ســـــه نوڅونه پرشـــــاپاته
دالوي فرق چه ددوي په بين کښي اوسي — هم داغه فرق بـــي قـــياس دبـــينه يوسي
پخواني مدعي زمابـــه لاس ته راســـي — چه غلط قـــياس باطل دي داسي داسي

**حرف ظرف آمد درو معنی چو آب[2] — بحر معنی عنده ام الکتاب**

دابـــيان دي دسابـــق په دي نيم بـــيته — هم فائده جديده په بـــــل نيم بـــيته
وايي حرف مثل دظرف معني مظروفه — لکه خم چه ظرف بولواوبـــــه مظروفه
نومقـــصدپه دي تفصيل دي دتشبـــيه — چه سابق مصراع ثاني کښي ئي تنبيه
اوس رائحه مصراع ثاني ته ددي بـــيته — چه جديدفائده ښندي دغه نيم بـــيته
هغه داچه ذات دحـــق بحـــرمطلق دي — څه اوبه چه چيري وي فيضان دحق دی
هم دظرف ودمظروف رب الارباب دی — هم په نيزبـــــــاندي دده ام الکتاب دی

(۱) وقت چه داتوهم پاته ووچه بدي ونيکي به دمنافق ومؤمن دحروفوپه خاطروي نه دمصداق نوبه بعدلفظينو به په مابين کښي موجودسي قياس بي يوپربل جائزنه سي داخوزمونږ مقصودنه دی اوددي بعده څخه خوبعد دمصداق چه هغه زمونږ مقـصوددي نه لازميږي ولي کيدلاي سي چه سره دبـعدلفظي دي مسـاوات مصداقي موجودوي نودي قياس ديوه پربل باندي باطل نه سي نوبه زماوستامرادحاصل نه سي نوئي دابيت ددفعي دپاره راوړي حـاصل ددفع داچه بـدي ونيکي دمنافق ومؤمن دمصداق درويه ده نه ده حروفودخوانوبعددمصداقينو په خاطردي نو قـــياس پکښي بـــاطل داغه مطلـوب دايـه تعلـق وارتبـــاط راغلومعني ته هغه داچه بـدي دنامه دمنافق دجانبه دحروفو نه ده څکه چه دابنکاره وبـدهي ده چه حـروف بدي نه لري تولـه موافق دي بـلکه بـدي دنامه دمنافق دذات ومصداق ومـــــمي دلوري ده همدارنـــگه نيکـــي د مؤمن دنامه دحـــروفو په حـــيث نه ده بـــلکه دذات ومصداق ومسمي په خاطرده نوددي لوي فرق په سبـــب قـــياس ديوه پربل نه سي کيداي نواشقـياء چه داقـياس کوي نوبه مثل دقـياس دطوطي بـــاطل وعاطل دي آخرنيم بيت دتمثيل دپاره دي يعنـــي لکـــه تريخ والي دابـــودظرف په خاطرنه دي بـــلکه دذات ومصداق په سبب دی همچنان تلخي ددغه نامه دجهته دحروفوچه پرمنزله دظرف دي نه ده بلکه ددذات درويه ده والسلام ۱۲

(۲) دابيت په نيم بيت اول باندي بيان دسابق دي دايه تعلق وارتباط راغلومعني ته هغه داچه اول نيم بيت تحقيق دهغه تشبيه دي چه په مصراع ثاني کښي دسابق بيت واقع سوي وه اومصراع ثاني ددي بيت دپاره دافادي جديدي دي حـاصل داچه بحـردمعني هغه ذات دي چه په نيزدده ام الکتاب يعني لوح محفوظ دی يعني حروف دمؤمن ومنافق پرمنزله دظرف دي ومعني دنفاق وايمان چه هغه اوصاف ذميمه وحميده دي پرمنزله داوبودي چه فيضان وجريان دداداوړواوبودبحـرمطلق څخه دي چه هغه نوم ذات حق جل جلاله دي نولفظ دمن به ثاني مصراع کښي مرادي اي بحرمعني من عنده ۱۲

**بحرتلخ و بحرشيرين درجهان (۱) — درميان شان برزخ لايبغيان**

اوس مثـــال دايمـــان كفرراتـــه وايـــي
په دنياكښي دوه دريابـــــــه دي موجوده
يودۍ تريخ بل دي شيرين پدي جهان كښي
نه دايوپرهغه بـــــل ســـــركښي كاندي
هم دارنگه كفرتريخ ايمان شـــــيرين دى
دجـلال ودجمـــال پرده په ميـــان كـــښي
ځومره بـــــعددى ددادوړلوبه كوركښي
نوبـــه څنگه يودبـــله مســـاوي ســـي
نوقـــيـاس ددوي بـــــاطل راته ځليږي

هم ئي فرق هم ئي فاصل راتـه فرمايي
څنگ پرڅنگ بــــاندي راغلي په وجوده
دقـــــــدرت الهي پرده په ميان كښي
نه دايودبـــــل گډون ته كيږي وړاندي
فرق ددوي په ښه ترين وبـــــد ترين دي
ځكه نه راځي.گډون ددوي په ميان كښي
څومره فرق دي ددي دواړوپه دستوركښي
نوبي څنگه په مابين كښي آشتي سي
دطوطي غوندي عاطل راتـه ښكاريږي

**دان كه اين هردوز يك اصلي روان (۲) — برگذرزين هردوروتا اصل آن**

مولناحقيقـــــت كاږي دسابقـــــه
وايي دواړه دريابــــــونه دي مآته
وايي پوه ســـه دوه دريابـــه دجهانه
هغه اصل مقـدس رب الاربـــاب دۍ
مولنااوس نصيحـــــت كړي ماوتاته
واي ته تيرسه ترمرآت مرئي پيداكړه
نوبـه خلاص ســي دباطلو تماســونو

ماوتاته ئي راښه يي اي لائقـــــــه
هم هنداره دي داصلي حقـــــه ذاته
هـــردودواړه ديـــوه اصلـــه روانـــه
چه په حكم ئي جاري هريودرياب دۍ
راځه وگوروددي جنــاب وخواتـــه
منـــــوره ځان په دغـــه تجلاكـــړه
دگمراه ودطوطي دقياســـــــــونو

(۱) وقت چه په سابق كښي فرق مصداقي دايمان ونفاق بيان كړي اوس په تمثيل باندي توضيح دداغه مضمون كوي نووايي بحرتلخ الخ دايه تعلق وارتباط راغلومعني ته هغه داچه مولناقدس سره دتمثيل په ژبه وايي چه تريخ درياب وخوږ درياب په دي جهان كښي څنگ پرڅنگ سره موجوددوړاته وي خوبياهم يوپربل سركښي نه كوي نه يوپه بل باندي گډيږي ځكه چه ددوي په مابين كښي دقدرت الهي پرده ستـه هم دارنگه كفرتريخ ايمان شيرين په مابين كښي دجلال ودجمال پرده فاصل ده ځكه نه سره گډيږي نوسره ددي فاصله قياس ديوه پربل دطوطي غوندي بـاطل قياس دي اوس په دازده كړوچه په ذكركښي دبرزخ لايبغيان اقتباس دي دآية كريمه څخه چه الله پاک فرمايي (مرج البحرين يلتقيان بينهمابرزخ لايبغيان) تفـــــيردآية كريمه د صوفيه كرامو په ژبه دلسي كيږي (مرج البحرين) اي الروحاني والجسماني (يلتقيان بينهمابرزخ) اي قالب الانسان نجم الدين الكبرئ فرمايي اي حاجزيمنعهماان يتغيرا يعني ان لم يكن حاجزاً لقلب بين القوي العلوية والسفلية لتغيرمزاج القوي النورانية العلوية من دخان القوي الظلمانية السفلية ويبطل ايضاً خاصيات القوي السفلية من غلبات انوارالقوي العلوية لان القوي السفلية عاجزة عن حمل الانوار العلوية لتنهي كلامه الشريف ۱۲

(۲) وقت چه په سابق كښي دوه دريابونه ذكر كړه لوس اصل منبع ددوي راته ښيي نووايي دان كه الخ. دايه تعلق وارتباط راغلومعني ته هغه داچه مولناقدس سره اصلي حقيقت وواقعيت بيانه وي اوماوتادحقيقت وخواته دعوت كوي نووايي پوه سه پدي باندي چه دادوه دريابه ديوه اصله څخه راروان دي چه هغه اصل نوذات مقدس دحق دي يعني دواړه مرآت وذات حقه جل جلاله ته دي په دوهمه مصراع كښي دنصيحت په ډول ماوتاته وايي چه ته نوترمرآت تيرسه پيوندمرئي جل جلاله سره سه نوبه خلاص سي دباطلو تماسووقياسوڅخه ۱۲

ابو الحفاظ :مولوي صالح محمد الارغستاني .

زرقلب زر نیکو درعیار[1] — بی محک هرگز ندارد اعتبار

ددي ربط دي دسابق سره واضحه — تي په ښه طريقه زده کړه دناصحه
مولٓناو ماو تاته دافرمايي — دقياس په ډول داسي راته وايي
وقت چه هغه دووبحرينو ته مرجع سته — هم دزرو دوونوعين ته مرجع سته
نظر دوارو ته ساقط داعتباره — نو نظر اصلي مرجع ته دي په کاره
وايي بدزرووښه زر په خپل عيار کښي — بي محکه نه راځي په اعتبار کښي
همدا رنگه تريخ درياب شيرين درياب — په رتبه کښي دمرآت نه دي کامياب
که رجوع کړو ، ومحک وقدوس حق ته — نو بيشکه به رسيږ وحق مطلق ته
راسه داسي حقيقت ته هم نظر کړو — په دي ځاي کښي ودقت هم نظر کړو
مراد دزر قلب اوصاف ذميمه دي — مراد ، دزر نيک اوصاف حميده دي
دمحکه فراست دمؤمن مراددی — بيله دي صفته هرسړي نامراددی
که ته وگوري بيان ته بي وسواسه — نو په چوفه خوله سي پاته دقياسه
دطوطي ودگمراه په شان به نه سي — دباطل قياس خاوند په ځان نه سي

هر کرا در جان خدا بنهد محک[2] — مر یقین را باز داند او ز شک

اوس وماو تاته گفت دمولٓنادی — چه مالک دمحک الله تعالي دی
چه الله په چاکښي کښيږدي دامحکه — نو يقين دده ممتاز به سي دشکه
يعني دامحک دذوق ودوجدانه — هم بياد امعيار دعلم وعرفانه
و يو چاته سي نصيب په منور سي — په تميزبه ديقين شک بهره ورسي
خوب يافرق دمميزووبي تميزه — بيخي ډير تراندازتيردی اي عزيزه
دطوطي غوندي قياس به نووي چيري — دگمراه غوندي الباس به نووي چيري

(۱) وقت چه په سابق کښي يو مرجع بحرينو ته بيان کړي اوس يو مرجع ودوونوعينو ته دزروبيانه وي نووايي زرقلب الخ ، دا يه تعلق ولرتباط راغلو معني ته هغه داچه مولٓناقدس سره فرمايي چه لکه دوودريابولره چه يو مرجع ووچه هغه ذات حق جل وعلي دغه رنگه دوونوعينو ته دزروهم يو مرجع سته چه هغه نومحک دي اوداخو معلومه اومعقوله خبره ده چه اصلي نظرومرجع ته پکاردي ځکه چه راجع بي مرجعه لائق داعتبارنه دی نو لکه کوته والي اومليح والي دزروچه بي محکه نه ظاهريږي همدارنگه بحرين په مرتبه کښي دمرآت ذات حق نه ځن ظاهريږي همدارنگه مؤمن کافر مقلد منافق حال ددوي ظاهريږي په محک دعشق باندي احتمال لري چه معني دبيت دلسي سي چه مراد دزرقلب څخه اوصاف ذميمه سي او مراد دزر نيک څخه اوصاف حميده سي دمحک مراد فراست دمؤمن سي يعني به وبد اوصاف، په فراست دمؤمن پيژندل کيږي نو فرق نمابين دصاحب الفراست ودفاقد هم دارنگه دصاحب العشق ودفاقد همدارنگه د صاحب محک ودفاقد همدارنگه فرق په مابين دناظر ومرئي اوناظر ومرآت ډيردی قياس ني يو پر بل نه سي کيد لاي که ئي څوک کوي هغه په نوطوطي غوندي قياس گروي ۱۲

(۲) وقت چه په سابق کښي ذکر دمحک وسو چه هغو نو عبارت له هغه څه څخه ووچه تا يه بيان ولوريده اوس توضيح ددغه محک پدي راته کوي چه مالک الله تعالي دي هرچيري چه اراده هلته ئي ايږدي نووايي هركرا الخ ؛ دا يه تعلق وارتباط راغلو معني ته هغه داچه مولٓناقدس سره فرمايي دهرچاپه روح کښي چه الله محک کښيښودي نوده لره يقين دشک ممتازسونووده ته فرق دځان وولي ښکاريږي مجرد بشريت علت مشترکه نه گرزوي قياس يو دبله نه سره کوي طوطي غوندي په غلط قياس کښي نه واقع کيږي ۱۲

ابو الحفاظ :مولوي صالح محمد الارغستاني .

**آنکه گفت استفت قلبک مصطفا — آن کسی داند که پر بود از وفا** (۱)

مولنااوس راکوي موږ ته خبره — چه دهرمؤمن زړه نه دی باخبره

زړه دهرمؤمن مفتي جوړيداي نه سي — هرمحک هم هرتميزکولاي نه سي

چه ويلی مصطفٰي عليه السلامه — په اطلاق وويه عموم باندي کلامه

خومرادهغه زړه چه ډک دی دوفاوي — دعهودو،وي پاي بندصفاً صفاوي

دانوزړه دی دکامل ولي سرداره — فقط دی ددي فتوي دي لائق واره

دانوخومره قرب لري وپاک الله ته — چه دده زړه ئي جوړکړي وفتواته

پرخلاف دگمرهانوزړونه ياره — په بعيدمسافت ليري دباداره

نوفرق ډيردی ددي دووطائفوترميانه — په دي پوه دي هم بله وهم صبيانه

نوقياس ئي يوپربله ممکن نه دی — مساوات ئي يودبله ممکن نه دی

پرقياس به دگمره ووطوطي دوارو — دغلط حکم کووبرهمه وارو

**دردهان زنده خاشاکی جهد — آنگه آرامد که بيرونش نهد** (۲)

مولنااوس تمثيل وايي دسابقه — ورته څيرسه په دقت باندي لائقه

چه په خوله کښي دژنده يوخاشه راسي — ناارامه بيقراره ئي کړي داسي

نوئي ژبه حرکت کړي نه درېږي — په اطرافوکښي دخولي چسپه نبوريږي

دابه دي چه داپيدادغه ازارکړي — سمدلاسه ئي دخولي سه برکنارکړي

هغه وقت به نوارام وخولي ته راسي — چه داغه خاشه دخولي څخه وباسي

همدارنگه زړه وشک وقت دارامه — هم پردي مضمون قياس کړه نيک فرجامه

(۱) وقت چه دسابقه څخه محک دمميزيه حيث وپيژندل سونوداتوهم ومتوهم ته پښيږي چه دمحک به هرمؤمن لره وي نو هرمؤمن بايد مميزدښه وبددحق ووباطل سي نوبه رواوي چه هرمؤمن مفتي په خپل زړه باندي سي اوهريوبه يومخاطب په دي قول درسول الله عليه وسلم سي چه استفت قلبک اوامرداسي نه دي نومولنااقدس سره پدي بيت باندي جواب وايي آنکه گفت الخ ،حاصل دجواب داچه هرمؤمن مميزدښه ووبدحق ووباطل مميزنه دي نه دهرمؤمن زړه مفتي جوړيدلاي سي بلکه مميزهغه زړه کيدلاي سي چه دي ډک دوفاپه عهودودخداي جل جلاله په نفحات کښي ليکلي چه دبنداراابن حسين څخه پوښتنه وسوه چه تصوف څه شي دي ده ورته وويل چه هغه وفابعهدالله تعالي نووفاپه عهدپردي تقدير تصوف نوميږي نومعني دبيت دلسوه چه هرمؤمن بلکه هرولي لائق نه دي چه مميزکلي ومفتي په قلب جوړسي بلکه ولي کامل لره دغه توان وو مرتبه پيداکيږي راغلو قول ته دعليه السلام هغه پراطلاق پاته نه دي بلکه مقيدپه هغه زړه ده چه ډک دوفاپه عهد لومحک واله وي يعني ولي کامل وي لکه چه په خپل ځاي کښي داثابته سوي ده نونه وگوره چه ددي مفتي ودلشقياوپه مابين کښي څومره بعد دي نوځودبه قياس ديوه پربل باندي طوطي غوندي باطل قياس وي پس تر دي نوگمان نه کوم چه تا ته دي داشک په لرتباط ومعناکښي پاته سي ۱۲ (۲) دابيت تمثيل د سابق دپاره دي دايه تعلق ولرتباط راغلو معني ته هغه داچه مولنا قدس سره دتمثيل په ډول وايي چه په خوله کښي ديوژوندي خاشه واقع سي نودی ارامي ترهغه وقته نه سي پيداکولاي چه دغه خاشه دخولي دباندي نه کړي نولهذادی ژبه په خوله کښي يوطرف وبل طرف ته گرزه وي په تلاښ پسي ددغه خاشي وقت چه داخاشه دخولي خارج کړه نوده لره ارام حاصل سي همدارنگه چه په زړه کښي دمؤمن کامل شک واقع سي نوده لره ارام ترهغه وقته نه وي څوچه داشک دزړه څخه باسي داکارخوپه محک باطني کيږي داخواشقياولره نسته نوسره ددي بعده قياس ديوپربل دطوطي غوندي باطل قياس دی ۱۲

ابو الحفاظ :مولوي صالح محمدالارغستاني .

| | |
|---|---|
| در هزاران لقمه تک خاشاک خورد[1] | چون درامد حس زنده پی ببرد |
| مولنادوم تمثیل وموږ ته وایي | دتوضیح دپاره داراتـه فرمایي |
| چه په زرګولي کښي راسي یو خاشاکه | نوداژبه ئي معلوم کړي چسپ چالاکه |
| وه لي ژبـه خوحاسـه دخوردني ده | نوپدي بـاب کښي الله رشتني ده |
| په تمثیل بـه دافائده ولاس ته راسي | چه بـاره به نوقیاس وکړمه داسي |
| په حاسـۀ ظاهري چه تمیزکیږي | په محـک بـاطني هم تمیزکیږي |
| لکـن فـرق دتمیزیـدو دي ظاهـره | توجـه ووالتفـات غـواړي ماهـره |
| ظاهري حـواس کولاي سـي داکاره | چه دایو محسوس دبل کړي برکناره |
| مثلاً ذائقـه دامنصب اجراکړي | خوردني ناخوردني سـره جلاکړي |
| هم محک بـاطني کړاي سـي بـالکله | چه یقـین وشـک ممتازکړي یودبـله |
| اتحادومسـاوات کمه دی یاره | نوقـیاس ددوي بـه څنګه سي عیاره |
| نوقـیاس ئي دطوطي قـیاس وبـوله | نوالف وبـاء ودي طائفه ته لوله |
| حس دنیا نردبان این جهان[2] | حس عقبیٰ نردبان آسمان |
| نتیجه ددووحسـین بـیانیږي | امتیازئي یودبـله سـره کیږي |
| ددنیاحـس دي څنه ددي جهانه | په سامبـال دي کاروبـارددي دورانه |
| دعقبیٰ حس یوڅنه ده واسمان ته | رسـوي بـه تاوالله سبحـان ته |
| دعقبیٰ حـس یوحاسـه بـاطنه ده | دالله ومعرفت ته واسـطه ده |
| داحاسـه نوده حصه دحق ولیانو | په نصیب نه ده دحـق دګمرهانو |
| دوو ډلوپه اوله کښي شـرکت دی | په دومه کښي په لوړکچه فرقت دی |
| نوپه دي خاطرقـیاس دیوپربـله | جهالت وحماقـت بـه وي بـالکله |

(۱) دادوم تمثیل دي دکمال توضیح دپاره نولرتباط حاصل سوېدي تمثیلو موږدافائده لاس ته رلوړه چه دوباره بـه نوداقیاس وکړو چه وقت چه په حاسه ظاهره دتمیزکیدلاي سي نوپه محک باطني بیخي کیدلاي سي نودابه ووایوچه وقت حاسه یومحسوس دبله محسوسه جلاکولاي سي وه لي ګوروچه خاشه دنورجلاکړي نومحک باطني هم شک دیقینه ممتازکولاي سي اودامعلومه چه دامحک هرچاره نسته نوبه مساوات به له کومي خولسي دطوطي غوندي باطل قیاس به سي که نه بیشکه سي به راغلومعني ته هغه داچه مولٰناقدس سره ددوم تمثیل په ډول وايي وقت چه په زروګولو کښي یوه کوچني خاشه په ګوله وخوله کښي راسي حس دژوندي یه په وروسته پسي قدم وړي یعني تعقیبه وي بـه لوپیداکړي یـه همدلرنګه دصوفیه ننې کرامو په زړه چه دعاشق زړه تجلي وکړي په جذباتو رحمانیه ووبـاندي نوهر هغه څه چه صادرسوي دهواجسوشیطانیه ور څخه هغه تشخیص کړي لولزاله ئي وکړي نومرلد په حس بـاندي ددوي په نیزحس بـاطني دي هغه نوهغه دي چه فرق دخواطر نفسانیه ورشیطانیه ور وملکیه ووعقلیه وررو حانیه وریقینیه کوي والسلام ۱۲

(۲) وقت چه دسابقه څخه ددروحـس درک وسویوظاهري یوباطني لوس ئي نتیجه وولمتیاز بیانیږي نووایي حس دنیا الخ .دایه تعلق ولرتباط راغلومعني ته هغه داچه مولٰناقدس سره فرمایي چه حس ددنیایعني حس ظاهري څنه ددي جهان ده یعني ددي موجوده جهان ودنیاکاروبـاریه سامبـال کیږي مګرحس دعقبیٰ چه دي یعني حس بـاطني هغه څنه دلسمان ده یعني دالله ومعرفت ته واسطه ده او .والله سبحانه ته سري رسوي الله پاک جل جلاله دي زموږ وستاسي داباطني حس نصیب کړي آمین ۱۲

ابو الحفاظ :مولوي صالح محمد الارغستاني .

(۱) وقت چه په سابق کښي ددوحسوبيان وسواوس يي دصحت لاره دهريوه رانبه يي نووايي صحت اين الغ ،دايه تعلق ولرتباط راغلو معني ته هغه داچه مولنا قدس سره فرمايي چه صحت ددي حس ظاهري طلب کړي دطبيب ظاهري ځخه يعني که حس ظاهري مريض سي علاج ئي په ظاهري طبيب باندي وکړي مگر دهغه حس باطني صحت دمرشد کامله ځخه طلب کړي يعني که حس باطني مريض سي اودنفس په ولکه کښي راسي نوئي علاج په باطني اورحاني طبيب باندي وکړي چه هغه نو مرشد کامل دی، نوددي بيانه ځخه فرق دولي وودبل راغلی نو قياس ديوه پربل باندي دطوطي وشقي غوندي غلط قياس دی ۱۲

| صحت (۱) اين حس بجوئيد از طبيب | صحت آن حس بجوئيد از حبيب |
|---|---|
| دصحت لاره رانبه يي دحسينو | چه داغه نوهم راځي په سببينو |
| معالج دظاهري حس دی طبيبه | معالج دباطني حس دي دحبيبه |
| ظاهري حس که مريض چاره ئي داده | دطبيب کوشش نوده لره دواده |
| باطني حس په مرض که اخته کيږي | دمرشد کامل په مرسته به جوړيږي |
| دظاهرحس معالج نوجسماني دی | دباطن حس معالج نوروحاني دی |
| خوطبيب روحاني نوهرڅوک نه دی | دمرشد کامل سوي نوبل څوک نه دی |
| دولي وغيره فرق راغلی ناچاره | دقياس نوپرتابنده سوله لاره |
| نوقياس ديوپربل باندي غلط دی | لکه داچه دطوطي گمراه نمط دی |

| صحت (۲) اين حس زمعموري تن | صحت آن حس زتخريب بدن |
|---|---|
| دصحت لارچه مي زده کړه په بيبان کښي | اوس رانبيي دصحت لاره په ځان کښي |
| واي صحت دظاهرحس پدي چل کيږي | چه بدن دي بنه معموره پوول کيږي |
| نوصحت دباطن حس پدي کيداي سي | چه تخريب دي دبدن ولاس ته راسي |
| يعني خپل بدن سوهان په رياضت کړي | په صيقل دتزکيي ئي صقالت کړي |
| خودالاره محضي مفت اسانه نه ده | :هرايل ودياغي دشانه نه ده |
| بلکه دالاره تگ لاره دوليانو | ډيره ليري دبي مغزه گمرهانو |
| نودوي کله خاوندان ديومنصب سوه | نودوي کله شريکان په يومشرب سوه |
| نوقياس ديوپربل به کله کيږي | خوطوطي وگمراه هيڅ نه په پوهيږي |

(۲) وقت چه په سابق کښي حواله دصحت دحس وطبيب وحبيب ته وسوه لوس مناط د صحت اوطريقه دعلاج راته بنه يي نووايي صحت اين حس الغ ،دايه تعلق ولرتباط راغلو معني ته هغه داچه مولنا قدس سره دصحت دمناط په بنودنه وايي چه صحت دحس ظاهر په معموري دتن ده يعني حواس ظاهره هله دصحت خاوند ان لوفعال گرزي چه دتن به روزنه لوپالنه وکړه سي لوپه دنيوي نعمتونو وخوركونو كښي به پرونه وخروكړه سي لو صحت دحس باطن په خرابي دبدن دي ځکه چه حس باطن هغه وقت صحت پيدا کوي چه نفس اماره په ضعف ورسيږي هر وقت چه نفس ضعيف گرزي قوائي روحانيه اوحواس باطنه قوت پيدا کوي اودنفس اماره قوت وضعف په کثرت وقلت داکل وشرب اوسمن وهزال دبدن پوري اړه وارتباط لري نوضعف دنفس اماره اوقوت دقوائي روحانيه اوحواس باطنه په تخريب دبدن کيږي پدي دول چه خپل بدن به درياضت په سوهان سوهانه وي اوخپل باطن به دتزکيي په صيقل صيقله وي مگر دالاره مفت واسانه نه ده دهرايل وياغي دشانه نه ده بلکه دالاره تگ لاره دوليانو ده تن فرسته وواشقياء ډيرځني ليري دي نودوي کله خاوندان ديوه منصب سوه اوکله شريکان ديوه مشرب سوه نوددوي په مابين کښي قياس دطوطي وودشقي قياس بوله والسلام ۱۲

(١) وقت چه په سابق کښي دصحت باطني دپاره تخريب دجسم بيان سواوس فائده ونتيجه ددغه تخريب راته ښه يي نووايي شاه جان الخ ،دايه تعلق وارتباط راغلومعني ته هغه داچه مولٰناقدس سره فرمائي چه مربي دروح يعني مرشد کامل اول بدن په رياضت شاقه باندي ويران ووضعيف کړي مګرپس تردغه ويراني يه بياآبادکړي يعني مرشدکامل په خپل سالک کښي داسي تصرفات ووکړني کوي پررياضت اوشاقه مجاهده باندي مسلط کوي په انقطاع ووکمښت کښي يه دکل وشرب اوسه وي اودنفساني خواهشاتواوجسمي لذاتوځخه ئي جداساتي اوپه فناء کښي دخپل تن ئي همه جانبه کوشش ورسره وي نوطبعاداسالک نري بدنه ژړي رنګه خازه ځواني وګرزي دانوويراني ده لکه په ظاهره چه ويراني ښکاري مګردلويراني دمرشد ولوي آبادي ته دروحي ځکه چه دمرشدکامل په امتثال اودده دنور په انعکاس سالک حق شناسه ګرزي دملوي الله ځخه فاني کيږي خپل الله سره باقي کيږي په شهوددابدي ژوند سرفرازسي دتولويه آبادي نه بولي دانوباقي پس ترفاني نه بولي نوددي تقريره سره مساوات په کوم ځاي کښي ځايږي نوپه قياس ځنګه ځله کيږي نوبه شقي وطوطي غوندي په غلط قياس محکوم کيږي ١٢

| | |
|---|---|
| **شاه جان مر جسم را ويران کند** (١) | **بعد ويرانيش آباد ان کند** |
| چه دجسم دتخريب وسوبيانه | اوس فائده به دتخريب کړي راعيانه |
| واي مرشد کامل جسم چه ويران کړي | پس تردغه نړيدوبي بياودان کړي |
| ويراني دبدن داده زماسرداره | چه مرشدخپل سالک واچوي پرکاره |
| رياضت مجاهده ده ته پيشه کړي | انقطاع داکل وشرب ووظيفه کړي |
| دادنفس دخواهشاتوئي جلاکړي | داجسمي لذات همه ځني منهاکړي |
| په فناکښي دخپل تن کوي رفتاره | نوظاهربدن بي خودسي تارواره |
| ژړي رنګ نري بدن خازه ځواني وي | دانوخودپه ظاهرسترګوويراني وي |
| مګرداويراني دروحي آبادي ته | دظاهره خرابسوي ولوي ماني ته |
| دمرشدکامل دنورپه انعکاسه | سالک ګرځي سمدلاسه حق شناسه |
| نوسالک دماسواځخه فاني سي | فقط يودخپل الله سره باقي سي |
| په شهوددابدي ژوندسرفرازسي | دهمه واړه اغياروسه بي نيازسي |
| دانوته لوآبادي نه بولي وروره | داباقي پس ترفاني نه بولي وروره |
| خپل مقصودپه اشاره باندي پيداکړه | په تصريح باندي ځوځله موږ ويناکړه |
| **اي خنک جاني که در عشق مآل** (٢) | **بذل کرد او خانمان وملک ومال** |
| مولٰناسري کلام په دي رقمه | چه داوروسته آبادي ډيره اهمه |
| که اوله آبادي سي ترقربانه | ګټه وره پکښي نسته هيڅ نقصانه |
| دا، اوله آبادي فاني فاني ده | خودوهمه آبادي ده چه باقي ده |
| فاني کله دباقي اندول کيداي سي | نودوهمه آبادي اهم کيداي سي |
| واي خوشحال دي هغه ځوک وي چه في الحاله | ښندي ملک وخانمان مال ومناله |
| په اميددالهي عشق ئي ښندل وي | آبادي هميش باقي لاس ته راوړل وي |

(٢) وقت چه په سابق بيت کښي اوله وراني اودوهمه آبادي ذکر کړي اوس په دي بيت کښي اهميت ددوهمي آبادي په داول بيانه وي چه که اوله آبادي فاني سي اوددوهمي ابادي دپاره قرباني سي ګټه ورامردي وه لي باقي ترفاني په ګټه دي نووايي اي خنک الخ .دايه تعلق ولرتباط راغلومعني ته هغه داچه مولٰناقدس سره فرمايي چه سعدوخوشحاله روحه چه په عشق الهي کښي دي دآينده وبازګشت ابدي دپاره دي خانمان وملک ومال وښندل اوس به نوزه وته وګوروچه تو له خلق پدغه صفت باندي دي اومساوات سره لري چه يودبله ئي قياس پله وسي لوکه دادشقي وطوطي غوندي باطل قياس دي ١٢

(۱) وقت چه په سابق بيت کښي بنندل دفاني دباقي اودبيکاره دبنه دپاره دپاره ذکرسوه اوس مولٰناقدس سره دداغه دپاره تمثيل راوړي نووايي کردويران الخ .دايه تعلق وارتباط راغلومعني ته هغه داچه مولٰناقدس سره فرمائي چه چه که يوسړي هغه خونه چه خزانه پکښي مدفون وي خرابه کړي دپاره دزرونوخوبه ددغه خزاني څخه ترنړيدلي خوني معمورتره خونه جوړه کړي يوه څه بلکه ډيري نوخوددايوي خوني نړيده ووه ته په فائده تماميږي همدارنگه که يوسړي دعشق الهي دخزاني په خاطر دافاني خونه دخپل بدن ونړوي اودعشق الهي خزانه څني راوباسي اوپه فناه باندي بقا پيداکړي لوپه لړتخريب باندي ديرتعميرومومي ايالسړي به نوبه گټه نه وي بيشکه عشاق دالله په خپله سوداکښي پرگټه سپاره دي لودا سوداگريه دنياکښي وجود لري لوس به نوزه وونه وگورو چه هرسړي دغه سي سو داگردي يانوبه مساوات دکمه درکه رلسي نوبه قياس ديوه پرسل په څه جائزسي نوبه دلشقياو قياس دطوطي غوندي باطل نيلس سي که به نه سي بيشکه چه سي به ۱۲

| گردويران خانه بهرگنج زر [1] | وزهمان گنجش کند معمورتر |
|---|---|
| راڅه وبيسواوس غوږومولٰناته | په تمثيل راتـه فرمايي ماوتاتـه |
| يوه خونه چه مدفون وي پکښي زره | که داونړيږي څه بـي وي ضرره |
| ضررڅه کړي خومقصدزرراايستل وي | دايه سمه که دکورپه نړيدل وي |
| خزانـي لـره فائـدي دي فراوانـه | ديوخونـي نړيـدل دي څه تاوانـه |
| چه کامله خزانه زموږ لاس ته راسي | په سلهاخوني آبادي بـه کړوداسي |
| هريوه بـه محـکم تره ترېخواوي | هريوه بـه زيبـاتره ترېخواوي |
| خلص چه زرگنجي تخريب دمدفون غواړي | همدارنگه عشق تخريب دبدن غواړي |
| خوبه دي خزانـه زرخونـي جوړيږي | همدارنگ په عشق دزړه ووني اوبيږي |
| که په غوردي مقـام ته ورداخل سي | دغلط قياس مرام ته بـه واصل سي |
| آب رابريدوجوراپاک کرد [2] | بعدازان درجوروان کردآبخورد |
| دايوبل تمثيل راوړي پدي مقام کښي | ماوتاته فائده منددي په مرام کښي |
| واي اوبه دي قطعه سي واله دي پاکه | ته پدي باره کښي مه اوسه بيباکه |
| چه والـه دي کارو پاکـه کـړه په خپلـه | نواوبـه کي رايله کړه په يوځله |
| چه يوواري په واله کښي دوي سي تيري | نوبه صافي پاکي وگرزي دوي ډيري |
| نوبـه ستاصفاً صفاسـي آبـخوره | نه بـه لوشـي نه اوبـړي نه بـل خطره |
| همدارنگ دخپل وجودوالـه صفاکـړي | بنه مرشـدوکارگورته پيداکړي |
| نواوبـه درياضت پررايله کړي | خرابي به په صحت باندي بدله کړي |
| خوداکارنه دي اسـانه وهرچاته | فکروکړه قيـاس وغورڅوه شـاته |

(۴) دلاوهم تمثيل دي دبنه توضيح دپارئسي رلوړي نووايي آب راالغ . دايه تعلق ولرتباط راغلو معني ته هغه داچه مولٰنا دتمثيل پرڅسه فرمايي چه لوبه دولي څخه قطعه کړه واله پاکه کړه اوبنه ئـي کارکړه پس ترهغه نولوبه پکښي راايله کړه نوبه صفاً صفاآبخورڅني وکړي همدارنگه خپل وجوددرزائلوڅخه پاک کړه دمرشدکامل دلوري درياضت اوبه ورباندي راايله کړه باره صفاً صفاآبخورڅني کوه اودا څه لسانه کارنه دي دهرچاپه نصيب کښي نسته لکه زه وته چه ورته گوروا وبيازه وته اهل ددغه رياضت هم وينو نو مساوات کم دي نو قياس داشقياوبه باطل وپيژنو لکه قياس دطوطي والسلام ۱۲

ابو الحفاظ : مولوي صالح محمد الارغستاني .

(۱) دادريم تمثيل دي چه مولناقدس سره دمقام دروښانه کيدلودپاره وايي نوفرمايي پوست راالخ ،دايه تعلق وارتباط راغلومعني ته هغه داچه مولناقدس سره فرمايي دتمثيل په ډول چه کوم وقت چه دي په بدن کښي غشي ننخ سونوته پوست چاک کړه غشي وکاږه نوبه پرهغه تپ باندي تازه پوست وځليږي يعني تازه پوست به ورباندي راسي تپ به روغ جوړسي نوظاهرچه ورته گوروډپوست چاکيدل وخيرل خوخرابي ده همدارنگه دغشي کشيدل خرابي ده مگردغه يو گړي اولږخرابي سره هميشه اوعمري صحت ملگري دي وه لي خوددغه اپريشن په زريعه ئي زخم جوړسي نوي پوست ورباندي راسي نوله ژوندني په راحت سي همدارنگه چه دزړه څخه داغيارغشي دعشق ورياضت په ډاکتورډ وخيشي که څه ظاهراً زړه پرهاريدنتارونار وخراب سي خوپس تر دي فناوخرابي به بقا وحيات روحاني ورنه حاصل سي تردي به نوصحت ابدي چيري وي خوبياهم معلومه ده چه داحال دهرچانصيب نه دي بلکه دکملولولياؤ برخه ده نوماوات کوم دي لوقياس يوپربله چيري دی نوقياس دلشقياوربه دطوطي غوندي باطل قياس وي که نه بيشکه چه وي به ۱۲

| پوسٹ رابشگافت پیکانرا کشید [1] | پوسٹ تازه بعدازانش بردمید |
|---|---|
| چه يوبل تمثيل راوړي زموږ مولنادی | چه مقام روښانه وي زموږ مولنادی |
| واي پوست چه چاکه وي داخرابي ده | بياچه غشي کشه وي داخرابي ده |
| مگردغه خرابي راوړي صحته | هم په دغه کښي موجودلوي برکته |
| وه لي پس تراپريشين داحال پيداسي | تازه پوست پردغه زخم باندي راسي |
| روغ رمټ سي ژوندئي وگرزي برحاله | پس ترهغه خرابي وي خوبڼ خوشحاله |
| همدارنگ دسالک زړه په عشق پرهارسي | هم بدن په رياضت ئي تارونارسي |
| خوبياپس تردي فنانودي باقي سي | په نصيب ئي تل حيات روحاني سي |
| نوتردي بل صحت چيري دی نيازمنده | دخرابه چه حاصل سواي اخونده |
| خوبياهم داحال نصيب دی دوليانو | نه دهغوبدبختانو گمره هانو |
| نوقياس به يوپربل باندي خطاوي | دطوطي غوندي باطله بي ويناوي |
| قلعه ویران کردازکافرستد [2] | بعدازان برساختش صدبرج وسد |
| بل تمثيل دمولناساخته گوره | په رنگ رنگ ميوه کوي ماوتاوروره |
| واي کلاويرانه وي مجاهدين | چه دکفري خلاصه وي مبارزين |
| پس دفتحي جوړه وي په داسي شانه | سل بروجونه سل بندونه تيرکښانه |
| همدارنگه سالک خپل بدن ويران کړ | چه دنفسه ئي کړي خلاص بيايه ودان کړي |
| پدي ځاي کښي په اجمال کفايت وکړه | په دقت نظرپرلوردحکايت وکړه |
| نوابطال به دقياس درته معلوم سي | هم غلط به درښکاره ددوي مزعوم سي |

(۲) داڅلرم تمثيل دي دنهايتي توضيع دپاره دايه تعلق وارتباط راغلومعني ته هغه داچه مولناقدس سره فرمايي چه مجاهدين قلعه په ويراني دکافره څخه واخلي خوپس ترورانی به په سلوبرجوتيريکښانوبندونوباندي ودانه کړي همدارنگه سالک خپل دبدن قلعه ورانه کړي چه دنفسه څخه خلاصه کړي بيايه ابدي آبادیوباندي آباده کړي مگرداخرابي وآبادي معمولي کارنه دي دهرچاپه برخه نه دي نوقياس دشقي طوطي غوندي غلط قياس دي ۱۲

ابوالحفاظ :مولوي صالح محمدالارغستاني .

## کار بیچون را که کیفیت نهد — این که گفتم از ضرورت میجهد

| | |
|---|---|
| مولنا په اشـــــــــاره وبه گفتاره | دوصـول لاره ښکـاره کـړه تعيـن واره |
| اوس په دي باب کښي تفصيل ته حاجت پاته | نوپه دي بيتوارشـــــــادکړي ماوتاته |
| بــوه لاره چه تاواوريـــــده لمانـــــه | يوه بـــــــله لاروچته تربـــــيانه |
| تفصيل دادي ورته ځيرســه ښه بــيداره | منتظرســه په دقــت بـاندي يه واوره |
| کاردبـي مثله باداربـــه څوک بـيان کړي | کيفيت بـــــه يه په څه ډول عيان کړي |
| يعني لاره دوصول وحـــــــق تعالي ته | معين متيقـــــــينه پاک مولي ته |
| هيڅ په توان کښي دبشـرراکله لاي نه سـي | هم په حدباندي تحديدراکله لاي نه سي |
| ولـــي پاک الله فعـــال لمايريـــددی | څه چه وغواړي هغه بـالکله سـديدی |
| لاراده کي ســــي طائع بـــــه معذب کړي | که ئي خوښه سي عاصي به مهذب کړي |
| نه مسـئول دي نه دشـئ سـوال ځني کيږي | نه طاقت سته ددي سـوال چه ولي کيږي |
| دافعالودالله قـــــــــياس نه کيږي | لوړعزت ولوي عظمت دحــــــق چليږي |
| هوچه زه بــــــــيانه وم دوصول لاره | په نامـه درياضـت مـي کـړه اظهـاره |
| ځکــه داعمــل يوفعــل اختيــاري دی | په داغه کښي خوکوښش هم ضروري دی |
| خوبـــــــنده په خپل اختياردي مکلفه | نوبـــــــه خودلارچلوي ترخپل هدفه |
| نوپه دي لارکښي ارشـــــــادورته پکاردي | هم مرشــــدکامل اســتادورته پکاردي |
| خووصول پردغه لارمنحــــــــــصرنه دی | موهوبـــــي هيڅ دارشادمفتقـــــرنه دی |

(۱) وقت چه مولنا قدس سره په سابق کښي دباطلو قياسواونوروبدوعملونهايتي ترديدوکړي اوپررياضت ئي زيات ترکيزوکړی نودمتوهم په وهم کښي ورګرزي چه رياضت نومتعينه ومتيقنه دنجات اودوصول لاره ده اوداسـي خونه ده لکه تفصيل چه بي راسـي نومولنا قدس سره په جواب کښي وايي کاربيچون الخ ،دايه تعلق وارتباط راغلومعني ته هغه داچه مولنا قدس سره فرمايي چه وکاروکړه ته به دبي مثله رب څوک يوکيفيت وتحـديدواندازه کښيږدي چه د غـي به خامخاکيږي وبس هيڅالره داتوان نسته وه لي الله پاک فعال لمايريددي څه چه کوي هغه حق دی کي اراده سي طائع بـــه معذب کړي دابـــه تصـرف په خپل ملک کښي دی که ئـي خوښه سـي عاصي بـــه معاف کړي درحـم درياب ئي بي پايانه دی نه مسئول دی نه دشـي سـوال ځني کيږي نـه داڅوک دده په کارکښي ويلاي ســـي چه داکارولـي کيږي نـو دافعالـودالله جـل جلالـه قـيلس نه ســي کيدلاي لـوي عـزت وعظمت دده رب حـاکم دی نودوصول لاره ودغه بـــي نيازه رب ته متعينه ومتيقـــــنه په توان کښي دبشرنــــــي راتلاي ني تحـديدکولاي ســــي هوزه چه دوصول لاره په رياضت بــــيانه وم لوپردغـه ټکـي ترکيـز کـوم هغـه پدي خاطـرچه دلرياضـت ومجاهـده يـو طريـــق دوصـــول ده چه اختيارلره دســــالک هم دخل پکښي سـته لوبـنده په خپل اختيارمکلف دي نووده ته کوښش هم ضروري دي چه لاروچلوي وصول لاس ته راوړي نوپدي لاره کښي ارشاد ورته پکاردي هم مرشد کامل ورته ضروري دي نوزه پردغه اختياري لاره دوصول دمکلفيت په حيث ړغيږم اودکوښش ضرورت وينم اوترکيزورباندي کوم نه وايم چه وصول پردغه لاره منحصردي ځکه چه وصول لره بـله لاره هم سـته چه په هغه کښي اختيارلره دخله نسته اوارشادته ضرورت نسته چه له دي خودوي په طريق موهوبي تعبيرکوي همدارنګه په دي دوولاروکښي ديوي دصاحبه څخه تعبيرپه سالک مجذوب دصاحبه دبلي څخه په مجذوب سـالک کوي نوردي پرخداي پاک سپارم والسلام ۱۲

## گه چنین بنماید وگه ضد این[1] جز که حیرانی نباشد کار دین

اوس په دي بیت کښي بیان کړي دسابقه حیراني ده غوږ پرونیسه لائقه
یعني گاهي ریاضت اي محترمه پردریافت وپروصول وي مقدمه
گاه فنـاه وریاضت وي مؤخره تروصول وتردریافت اي دزړه سره
نولهذا اوار دسوي یو مثل دي په فارسي کښي لگیدلي یه مثل دي
یو ځل تانږهي نیابي فرمایي دوم ځل تانیابي نږهي وایي
داموجب دي دحیرت حیران به سمه دوه ضدین چه اورم ستومان به سمه
چه هیڅ یو ته مقدم ویلاي نه سم نوهیڅکله دارقم ویلاي نه سم
نوراپاته حیراني بله نوڅه ده هم ملگري پریشاني بله نوڅه ده
دامضمون موږ په خواهم دي ذکر کړي ورته وگوره که تانه وي هیر کړي

## کاملان کز سر تحقیق آگه اند[2] بیخود وحیران ومست ووالِه اند

وقت چه لاړ دوصول داغ سوه په حیرته نوقائل واي څوک زغمي دغه دهشته
مولنا وایي جواب چه کاملانه دالله پاک نازه ولي عاشقانه
دوي په ذوق باندي خبر دي دوصوله نوپه شوق باندي لیواله دحصوله
که بیخوده که حیران وي خوښ خوشحال وي طالب هروقت دمطلوب سره برحال وي
نوطالب چه دمطلوب په مینه مست وي بیا یه کله دزغملو بند وبست وي
هرعاشق چه ومعشوق ته وروان وي نوزغمل دهرمشکل ورته اسان وي

(۱) دابیت بیان دسابق دي نوئي تعلق وارتباط ترمابین قائم دي راغلومعني ته هغه داچه مولناقدس سره د تفصیل وبیان په دي ډول فرمایي چه خبره په مانحن فیه پردوه ډول وطریق باندي ده پریوه منحصره نه ده هغه خبره داسي ده چه گاهي ریاضت مقدم پروصول وي هم دغه ریاضت سبب وذریعه ددغه وصول وي گاهي بیاضد ددغه وي یعني ریاضت مؤخر تروصول نوځکه صوفیه ئي کرام گاهي وایي تانه رهي نیابي بل ځل بیافرمایي تانیابي نرهي داول مصداق سالک مجذوب ددوهم دامجذوب سالک دي نوددي دووضدینو داختیارولو سره سره نوویلاي سي چه دلته کار ددین نو سوي دحیراني بل څه ندي دامضمون موږ وتاسي پخواهم سره اوریدلي دی که فکر ووهو شاید رایادي سي والسلام ۱۲

(۲) وقت چه دسابق بیت څخه دلراجګه سره چه لاره دوصول په کونده کښي دضد ینوده اوداغ په حیرت باندي ده نودمتوهم دلوري داتوهم کیدلاي سي چه ددي حیرت ودهشت زغم به نو څوک وکړي اوودي حلقه ودائره ته به څوک ورداخل سي نومولنا قدس سره دپاره دفع ددغه توهم دابیت راوړي نووایي کاملان الخ ،دایه تعلق وارتباط راغلو معني ته هغه داچه مولناقدس سره فرمایي چه عشاق کاملان دالله جل جلاله چه دوصول په ذوق باندي خبردي اوددي سرددریابه ئي سرچشمه اخستي وي هغه نوبیخوده دذوقه دوصول اودخپله ځانه ناخبره وي ني زغم ني بندوبست په یادکښي ورځي اوهم حیران ومدهوش وي ددغه وصول دجلالت وعظمت څخه نوحیران به څه دزغم وبندوبست درک لري اوهم مست وي په مینه دوصول باندي هغه ته نوزغمل کله گران دي اوڅه بندوبست ئي کوي اوهم به عاشق دوصول وي داخو معلومه خبره ده چه عاشق دخپل معشوق دوصول په لاره کښي وزغم ته دهرمشکل تیاروي اوپدي لاره کښي هرڅه مشکلات برداشه وي ۱۲

## نی چنان حیران که پشتش سوی اوست[1] بل چنین حیران که غرق ومست دوست

| | |
|---|---|
| په سابق بیت کښي حیران مطلق یادیږي | اوس مطلق ددوو قسمو ته ویشل کیږي |
| ودادوو قسمو ته ښه فکر صفاکړه | یو مذموم دی دممدوحه سي جلاکړه |
| مذموم داچه حیراني پدي خاطروي | چه ددوسته وي غافل عقل فاتروي |
| تصادم دادله وو حیران کړي | حکماغوندي په دام کښي وي لویدلي |
| ممدوح داچه دي مهبط دواردات سي | هم پرده باندي نازل تجلیات سي |
| نودده حالت مستي واستغراق سي | بیله دوسته ئي دهرڅه افتراق سي |
| نوعاجزه سي دده عقل ووقیاسه | دتمیزلمون ئي ولاړه سي دلاسه |
| داناپایه دریاب نه سي پاي کولاي | نوبدي باره کښي هیڅ نه سي ویلاي |
| عاجزي وناتواني یه وظیفه سي | حیراني هم په دغه طریقه سي |
| دامنصب دي دښاغلوښوولیانو | نه دداسي قیاس گروگمرهانو |

## آن یکی راروی اوشدسوی دوست[2] وین یکی راروی اوخودروی اوست

| | |
|---|---|
| اوس حیرت محموده ویشي قسمین ته | ورته ځیرسه پدي بیت کښي ونوعین ته |
| یوحیرت په مرتبه عین الیقین کښي | بل حیرت په مرتبه حق الیقین کښي |
| اول غرق دتجلو په لوي نعمته | دوم غرق وي په دریاب کښي دوحدته |
| په اول مصراع اول قسم مرادیږي | په ثاني باندي دوم راته ښکاریږي |
| داول معني دده مخ وي ودوست ته | ددوم معني دده مخ ،مخ ددوسته |
| دامضمون که مجمل تاته وانماسي | حاشیه وگوره سودابه دي بالاسي |

(۱) وقت چه حیران په سابق کښي مطلق یادکړه سوي ؤاوس ئي تقسیم وقسمینو ته دپاره دتعین دماهو المراد کوي نو وایي ني چنان الخ .دایه تعلق وارتباط راغلو معني ته هغه داچه حیرت پردوه قسمه دي یو ممدوح بل مذموم ممدوح هغه حیرت دی چه متحیرئي مهبط دوارداتوسي اودالله جل جلاله تجلیات وربانديراسي نودي په حال کښي دمستي واستغراق راسي بي محبوبه دهرڅه څخه بي پرواجوړسي دعقل وقیاسه ئي دتمیزلمونه دلاسه ولاړه سي ځکه چه پدي ناپایه دریاب کښي دعاجزي وناتواني وحیراني میلمه داطریقه دحیراني داولیاؤ دالله جل جلاله منصب دی داقسم نو ممدوح حیرت دي دلته هم دغه مرادی اومذموم هغه حیرت دي چه ومتحیر ته دسست والي وغفلت دځپل عقل وربینې وي تصادم دادله پرده مسئولي سوي وي دی حکماؤغوندي په دلم کښي راغلي وي داطریقه دحیراني دغافلانو منصب دي داقسم نو مذموم حیرت دي دلته مراد نه دی نو خلاصه ترجمه دبیت داچه حیراني نه دده چه دده نوشاوحق جل مجده سي یعني ځني غافل سي بلکه حیراني به په سبب داستغراق په انوار الهیه اودمستي دمشاهدي دحق جل مجده وي والسلام ۱۲

(۲) داتقسیم دحیرت محموده وقسمینو ته دی پدغه باندي تعلق وارتباط حاصل سو معني داچه دادوه قسمه دحیرت محموده دواړه په خیر تمام دی خو بیاهم فرق پکښي سته وهلي په یوه کښي مخ دمتحیر وطرفته دحق جل جلاله وي چه دانومرتبه دعين اليقين ده هغه داچه دی نظاردتجلیاتو گوناگون دحق وي خو بیاهم په مجردشهود کښي په داسي انداز غرق نه وي چه فرق په مابین کښي دځان ودحق نه سي کولاي اوداسي فاني په حق کښي نه وي چه په همه اوست باندي قول کوي اوپه دابل قسم کښي مخ دمتحیر مخ دحق جل جلاله وي چه دانومرتبه دحق اليقين ده هغه نوداچه دی په بحر کښي دشهودپه داسي انداز مستغرق وي چه په فرق باندي قائل نه وي اوپه همه اوست ووحدة الوجود باندي اقرار کوي نو اول هغه دي چه مخ دده وطرفته دحبیب وي معرض دماسواڅخه وي اومستغرق بالفناء وي اودوهم هغه دی چه مخ دده مخ دحبیب وي اومستغرق په فناء الفناء کښي وي اوباقي په وجودحقاني باندي وي دادواړه صلاحیت دارشادلري ددواړو تعظیم وخدمت پکاردي دواړه په خیر تمام دي ددي مضمون مفصل بیان موږ پخواکړي دي درپیادئي کړه والسلام ۱۲

**روی هر یک می نگر می دار پاس**[1] ... **بو که گردی تو ز خدمت روشناس**

مولنادعـــوت کـــوي وماوتاتـــه ... مخ راستـون کړه ددي دوو ډلووخواته
وخدمت ددي دواړوځان راســـته کړه ... وبنه نيت ته هم ددوي ځان اماده کړه
هم په بنه ملاحـــــظه ئي مخ ته گوره ... روشـــناس په مخلوق ســـي هرگوره
هر يودي سنگ فارس ځان په سره زرکړه ... نزديکت ئي دی دواځان په خبـــرکړه
دادکان دی دعطارځان په خوشبوي کړه ... دادمشکوده ټوټه يووارئي بـوي کړه
چه ددوي موافقت کړي خودبـه ښادوي ... چه دگل مجاورت کړي خودبه ښادوي
په مجلس بـه دنيکانوســي خوشـرنگه ... په مجلس بـــه دبدانوســـي بـــدرنگه
په مجلس دصالحانوبـــه صالح ســـي ... په مجلس دطالحــــانوطالح ســـي
په مجلس وپه ملگري کښي ئي اثردي ... ماوتادواړوځکلـــــی داثمــــردی
درومي په دي وينابـــاندي بـــاورکړه ... دقيـاس ددائري ســه ځان بـــهرکړه

**ديدن دانا عبادت این بود**[2] ... **فتح ابواب سعادت این بود**

مولنابـــــل ځل دعوت کړي ماوتاته ... کشـــه وي مي ديولوي گټي خواته
واي ديدن ديودانادی عبـــــادته ... دروازي راخلاصه وي دســـــعادته
عبـــادت ددانادیدنی بـــوالفضوله ... همدارنگه فرمايلی دي رســـــوله
دداناڅخـــه مراددارنـــگه دانـــادی ... په سابـــــق چه پيژندلی ماوتادی
يعني هغه محمودقسـم چه ســوتيره ... درپيادئي کړه که ستاڅخه وي هيره
څونه فرق دی په مابين داين وآن کښي ... دقياس مجال نونسته پدي آن کښي

(١) وقت چه په سابق کښي دحيرت محموده ددوقسموبيان وکړي اوس دعوت راکوي چه ودي دواړوقسموته مخ واړه وه اوپه خدمت کښي حاضرسه بنه نيت ورته ولره په ملاحظه ورته گوره نوواپي روي هريک الخ ،دايه تعلق وارتباط راغلومعني ته هغه داچه مولّناقدس سره فرمائي چه مخ ته دهرددغه دووقسموکاته کوه اوپاس دارووڼگهبان دهريوه ددغه دووپه خدمت کښي حاضرسه اوپه بنه نيت ورته معتقدسه اوپه ملاحظه ئي مخ ته کاته کوه نوامیددی چه ته دي ددغه خدمت ووبنه نيت په خاطرپه مخلوق کښي روي شناسه وگرزي اوددوي په واسطه بـه معززســي هريوددوي سنگ فارس دی ځان په ســرزرکړه هريودعطادکـــان دی ځان په خوشبـــوي کړه هريـوگل دي ځان ئـي مجاورجوړکــره ځان خپل ددوي په صالـــح مجلس صالـــح جـوړ کړه ځکه چه په ملگري وومجلس کښي اثـر داوماوتاته بـه منقـول وتجربه ثابته ده دقيا ســه ددائري ځخه ځان وباســه نوتاداوپيژنده چه لفظ دبـوپه بـيت کښي په معني دلعل وترجـي دي نـوردي پرخـداي پاک سپارم والسلام ١٢

(٢) مولّناقدس ســره بل ځل ماوتاته دعوت راکوي لوودیدوخدمت لوحســـن نيت ته مو ددغوخلقوتشويقـــه وي نووايي ديدن دانا الخ ،دايه تعلق وارتبـــاط راغلومعني ته هغه داچه مولّناقـــدس ســـره فرمائي چه ديدن ددا ســـي داناچه تاوپيژندل عبـــادت دی چه زموږ رســـول دغه فرمان صادرکړي دي هم دغه ديدددانا سبـــب دخلاصيدوددروازودســـعادت دی نودايولوي فرق په مابين کښي داين وآن دي نوقياس لره په دي ځاي کښي مجال نسته نوشقي وطوطي غوندي قياس کونکي مه اوســـه العياذبـــالله قـــصه دطوطي پردي ځاي بـــاندي خلاصه ســـوه خداي پاک دي وکړي چه زه وته ئي دمقصده مستفيدگرزيدلي يو ١٢

ابو الحفاظ :مولوي صالح محمد الارغستاني .

ددي عنوان تعلق وارتباط دسابق حکايته سره دطوطي په دوي وجه باندي وايو اول داچه ذکردحق وباطل په قصه کبني دطوطي باربارصراحة واشارة کړه سوي دي خوداغه تکي محورددي عنوان دی دوهم داچه دحکايت په ملفه ابياتوکبني داذکرسوه چه صحت دحس باطني دمرشدڅخه طلب کړه اوس پدي عنوان کبني داارشادراته کوي چه هرمرشددسابقه مرادنه دي بلکه مرادهلته مرشدکامل دي ولي هرمدعي دارشادلائق دارشادنه دي دابه تعلق وارتباط ددي عنوان دسابق حکايته سره راغلومعني ته دعنوان هغه داچه داعنوان ثابت دي په بيان

## (۱) درفرق ميان محق ومدعی ومحق ومبطل

داعنوان دی منعقــــددي دپاره — چه جعلي پيرده صحني سي برکناره

دم فرق وســـي دحقـــي مرشـــدجليله — دفريب جن ومدعــي خادع ذليلــه

دم محـــق په ښه واضح ډول جلاســـي — دمبطل دکوره نی سه رامنهاسـي

ځکه داالتبـــاس لويه خرابــــي ده — دســالک دپاره لويه بربـــادي ده

دناقـــــص پيرآفتونه موليدلی — ماوتاپخوادرســـونه دي ويلي

اوس بــه واورودترون په بــاب بــيانه — دطوطي دحـــکايت ودی عنوانه

دحق باطل په حکايت کبني يه بيان دی — خوداغه تکي محورددي عنوان دی

وقت بيان چه حکايت کړه اي لبيبــه — چه صحت دبـاطن غواړه له حبيبـه

دحبيبـــه مرادمرشـــدووپرهنره — دانيژدي وتاته تيره ســوه ســروره

اوس په دي عنوان کبني موږ ته کړي بيانه — چه هرڅوک وړدارشادنه دی جانانه

پداغه نوارتبـــاط ســـوددوي دواړو — دعنوان وحــــکايت وهمه واړو

## (۲) چون بسی ابلیس آدم روی هست — پس بهر دستی نشاید داد دست

مولناعامه ارشـــادکوي هرچاته — دنجـــات لاره راښيـــي ماوتاتــه

وايي ډيرابـليس صفته انســانان وي — په ظاهره ساخت وباخت دوي عارفان وي

په باطن کبني ئي بـاطن وي دابليســه — په ظاهرپرماوتاکوي تلبيســه

نوســــالک ته دی پکارداهليته — چه هرچاته لاس ورنه کړي دبـــيعته

وخپل ځان ته دي کامل مرشدپيداکړي — مدعي ومبـــطل دواړه دي ترشـــاکړي

کبني دفرق دمحـــق و مدعي بعني دمرشــد کامل واقــعي چه هغه نو پرطبق داحد القسمين المحمودين دی اومدعي دارشادچه دانوهغه څوک دي چه پده کبني هغه اوصاف دمرشـــد کامل نه وي نقـــط مدعي و متصرف وي همدارنګه داعنوان ثابـــت دي په بيان کبني دفرق دمحق ومبطل ۱۲

(۲) خلاصه دبيت دا چه بـايددمدعي سره دارشادبـيعت ونکړي سي پدي خاطرنودبيت ودعنوان تناسب ښکاره سودايه تعلق وارتبـاط راغلومعني ته هغه داچه مولناقدس سره فرمائي وقت چه ډيرځله ابليس انسان مخي وي نوپس تردغه وهرلاس ته نه ښايي چه لاس ورکړي

يعني وضع داسي جوړه ده چه ډيرابليس صفته اوباطن خرابه خلق دعارف په رنګ ولباس کبني ځان ښکاره کوي په دغه مکروحيله دخلقوڅخه دنياوي استفاده کوي په حقيقت کبني نه عارف نه لائق دارشادوي نوپس تردي وضع بايددهرپه نامه دمرشدسره بيعت ونه کړه سي بلکه تشخيص دمحق ومدعي ضروري دي چه وکړه سي ځکه لکه مرشدکامل چه دسالک دپاره روحاني دواوشفاء ده همدارنګه پيرناقص دسالک دپاره زهرقـاتل وداء دی ۱۲

ابو الحفاظ :مولوي صالح محمد الارغستاني .

(۱) وقت چه په سابق بیت کښي تلبیس په ارشادکښي بیان کړي اوس پدي بیت کښي توضیح ددغه تلبیس په تمثیل باندي کوي نووایي زانکه صیادالخ ،دایه تعلق وارتباط راغلومعني ته هغه داچه مولناقدس سره فرمایي چه داتلبیس فریب دپاره کوي ځکه چه ښکاري دمرغه غوندي اوازکوي ددي دپاره چه فریب ومرغه ته ورکړي اودخپل دام ولورته ئي راولي اوپه دام وبندباندي ئي قیدوګیرکړي همدارنګه ابلیس دانسان په مخ وچهره وتاته ځان ښکاره کوي او همجنس په ژبه خبري درسره کوي هم پدي حیله دي دخپل تابعیت په دام کښي خیژه وي همدارنګه مرشدناقص دخپل غدروفریب وتلبیس په خاطرپه ماوتاباندي ځان دمرشدکامل په نامه باندي ومني ځکه چه هیئت ئي دکاملانورقم جوړکړي وي نوپدغه تزویرئي سالکان په ولکه کښي راوستلي وي نومریدانوروسالکانوته پکارده چه احتیاط وکړي لاس دبیعت وارشادوهرچاته ورونه غځوي بلکه کامل مرشددي دځان دپاره پیداکړي والسلام ۱۲

| | |
|---|---|
| **زانکه صیادآورد بانګ صفیر[1]** | **تافریب مرغ راآن مرغ ګیر** |
| چه تلبیس یه په ارشادکښي کړل اظهاره | اوس توضیح یه په تمثیل کړله روي کاره |
| واي صیاداوازکوي لکه دصیده | چه په دي فریب مرغه کښیباسي په قیده |
| همدارنګه ابلیس جوړکړي ځان انسانه | پداغه فریب نوخطاکړي مسلمانه |
| هم په ژبه دهمجنس ورته ږغیږي | نوپدي حیله ئي خودپه دام کښي لویږي |
| همدارنګه ملبس مرشدناکیاله | په خپل غدرکامل راسي ستاپه خیاله |
| ولي دی وي په هیئت دمرشدانو | هم اغوستي وي جامه دکاملانو |
| نوپه دي تزویرخطاکړي مریدانه | هم په دي دام باندي ښکارکړي سالکانه |
| نوپکاردي ډیراحتیاط وماوتاته | دبیعت لاس چه اوږدنکړووهرچاته |
| **بشنوآن مرغ بانګ جنس خویش[2]** | **ازهواآید بیابد دام ونیش** |
| داتفصیل وونتیجه ده دسابقه | نبه په غوروړته ګوره لائقه |
| واي صیادجعلي اوازجوړدمرغه کړي | پدغه دی دمرغه خطائسته کړي |
| نومرغه چه دصیادواوري داسازه | نودده خیال سي دازمادجنس اوازه |
| نودپاسه پرراتیټ سي پدام کښیوزي | پښي بسته دصیادتیغ ونیښ ته پریوزي |
| همدانګه ابلیس جوړکړي داسي جاله | مسلمان پدغه فریب کاندي پایماله |
| همدارنګه مزورمرشدناکیاله | غوره ولي ئي دفریب وي واسع جاله |
| په کښي بندکړي ناپوهان وجاهلانه | ماوتاته ښکاره کیږي سالکانه |
| نوښه داچه سالک تل اوسي بیداره | دهرچاپه دام کښي نه سي ګرفتاره |

(۲) دابیت تفصیل وغایه دسابق ده نو پدي خاطرئي تعلق حاصل سوراغلومعني ته هغه داچه مولنافرمایي چه هغه وقت چه صیاددمرغه په اوازدخپل دام دځنګه په پټ ګني کښي دنوروومرغانواوازوبولي اوادده اوازمرغه واوري نودي ګمان داوازدخپل همجنسه مرغه وربانديوکړي نودهواځخه پردغه اوازراکښته سي اودام ونیش ئي نصیب وګرزي نوپیداکړي شروهلاک همدارنګه مثل دصیاد ابلیس په آدم رویي اوښه سخن راني دغه کارکوي همدارنګه مثل دصیادمرشدناقص په خپل تزویروغدرباندي دغه کارکوي یعني فریب خلقوته ورکوي اوپه خپل دام کښي دتابعیت راولي نوښه داچه سالک داحتیاطه کار واخلي والسلام ۱۲

ابوالحفاظ :مولوي صالح محمدالارغستاني .

**حرف[1] درویشان بدزدد مرد دون ‖ تا بخواند بر سلیمی زان فسون**

| | |
|---|---|
| چه فارغ سو د تمثیله و تفصیله | دوباره دمدعي کوي تحلیله |
| واي کذاب مدعي تل کوي داکاره | دکامل پیرانو غلا کاندي گفتاره |
| بیا پرمارگزیده وایي دامنتره | ماوتا ته ځان راښیه یي معتبره |
| یعني غلاوکړي داصلي درویشانو | بیاداغه قراءت کړي پرابلهانو |
| ځان مصداق بولي ددغه چه دی وایي | ابلهان واي زمونږ صاحب داسي فرمایي |
| هغه څوک چه دی بي صورته هیولاوي | په کلام دمشائخو یه ویناوي |
| بیاداغه کلام دځان بولي کلامه | جاهلانو ته ورښه یي خپل مقامه |
| داچه یو مغ برمته نه ده نوڅه ده | داچه مکر وحیله نه ده نوڅه ده |
| مدعي کذاب لائق دارشاد نه دی | هم مبطل جوگه دهیڅ اعتماد نه دی |
| نوسالک باید کوشش کړي آن دپاسه | دکامل سره بیعت کړي لاس پلاسه |

**کار[2] مردان روشني وگرمي ست ‖ کار دونان حیله وبي شرمي ست**

| | |
|---|---|
| چه حالت دمدعي ذکرسوورواندي | اوس ئي فرق نودمحققه راته کاندي |
| وايي کاردمشائخو کاملانو | حرارت نورانیت پرسالکانو |
| یعني نوردسالک زړه ته ورپخوا کړي | هم ئي اوردعشق په زړه کښي ورپیدا کړي |
| نو به خلاص سي دشکوکو وشبهاتو | هم خالي به سي دواړو نفسیاتو |
| چه دلمرشغلي پروکړي انعکاسه | نوبه خود دظلماتو سه سي خلاصه |
| مگر کار دمدعیانو مبطلانو | پرخلاف ددي نومورو مرشدانو |
| داطالب سالک به کله منور کړي | په حیله وبي شرمي بي مکدر کړي |

(۱) وقت چه تفصیل دمدعي ومبطل په تمثیل بیان کړي اوس عمل کردوپیشه دده بیانه وي نووایي حرف درویشان الخ ،دایه تعلق وارتباط راغلو معني ته هغه داچه مولنا قدس سره فرمایي چه مدعیان کاذبان داکار کوي چه کلمات دحقاني مشائخو وکامل مرشدانو غلا کړي داپس ترینه مدعي بیایه نوویل کوي پرابلهانو ناپوهانو په داسي دول چه دلزماوینااو تگ لاره ده اوزه ددغه مقام خاوندیم حال داچه دی په دغه ویناوادعاء کښي حیله گروفریب جن وي مقصدئي تسخیروتلبیس دناپوهانووي په حقیقت کښي مصداق دهغه څه نه وي چه دی ئي ادعا کوي نو دلسي ملبس وحیله گر دارشاد لائق نه دی کامل پرهیزخني پکاردي نوسالک باید کوشش وکړي ددا سي خلقو تشخیص په میزان دشریعت وکړي اوددي تربیعت تیرسي دکامل اودلائق سره دارشاد بیعت وکړي ځکه چه دلرنگه مدعي وکذاب دهیڅ اعتماد ور نه دي ۱۲

(۲) وقت چه په سابق کښي حال دمدعي و مبطل ذکرسواوس دده وودمحق فرق راته بیانه وي نووایي کارمردان الغ ،دایه تعلق وارتباط راغلو معني ته هغه داچه مولنا قدس سره فرمایي چه کاردمرشد کامل روښنائي اوگرمي دزړه دسالک ده یعني وزړه ته دسالک نورانیت ورکوي اوپه زړه کښي دسالک اوردعشق پیدا کوي اودشکوکو وشبهاتو ئي خلاصه وي اوخواهشات النفسانیه اوکدورات الظلمانیه ځني هیسته کوي ځکه چه تجلیاتو الهیه لره ئي پرزړه انعکاس ورکوي مگر کار دمدعي کذاب پرخلاف دنومورې مرشد دي ځکه چه دهغه پیشه حیله وبي شرمي ده چیري دي نورانیت وغیره ۱۲

ابوالحفاظ :مولوي صالح محمد الارغستاني .

(۱) وقت چه په سابق بيت حيله دمدعي ذكر كړه اوس تفصيل ددغه حيلي راته كوي نووايي شيرپشمين الخ، دايه تعلق وارتباط راغلومعني ته هغه داچه په عصروو، ولايت دمولنا قدس سره دادستوروچه گدايانوبه صورت دزمري پرطرزدعلم پرخپله جامه اويزان كړي ووخپله گدايي بـي ښكاره كوله دمال وځه وركولوبه طمعه همدارنگه دغه مزورينوپرڅان وجامه دكاملينوعلامي تومبلي چه خپله شيخي ښكاره كړي دمال وجاه په طمعه هوهغه ناپوهان چه پرشاوخواددوي وه دغه شيوخ كذابين بي په ښولقبويادول پريوه بي دقطب العارفين لقب اينبووي بل بي دشمس العارفين په لقب يادلوه وهكذا لكه اتباعودمسيلمة الكذاب چه دي ته داحمدپه لقب و صفت موصوف او ملقب كاوه مسيلمة دبني حنيفه دطائفي څخه وودنبوت دعوه ئي وكړه وپيغمبرته ئي ليكلي وه چه مځكه ئي نيمه ستاپه رسالت نيمه زماپه رسالت كښي پيغمبرعليه السلام ورته وليكل چه مځكه دالله ده په ميراث ئي وهغه بندگانوته وركوي چه اراده ئي سي عاقبة متقينولره دي څو چه په خلافت كښي دابوبكرالصديق رضي الله عنه دوحشي پرلاس په قتل ورسيدي خلص داچه دمزورشيخه پرهيزيكاردي ۱۲

| بو مسيلم راالقب احمد كنند | شير پشمين از براى گد كنند[1] |
|---|---|
| ماوتاته په خوږه ژبـه فرمايي | مولنانواوس تفصيل دحيلي وايي |
| لكه شيرپشمين داسي ځان تياركړي | وايي ماوتاته داسي ځان عياركړي |
| هم پدي حيله ئي مرادسوداگري وي | خوپدي عنوان ئي مرادگداگري وي |
| دي كذاب شيخ ته پدي لقب گويان وي | نوپرشاوخوادده چه ناپوهان وي |
| گاي وايي شمس العارفين دى زموږ پيره | گاه واي قطب العارفين دى زموږپيره |
| مسيلم نوملقب كړي په احمده | نوخپل قول مزخرف كړي تيرترحده |
| چه دداسي مزوره ځان منهاكړي | نوسالك بايدچه داقوه پيداكړي |
| هم په دام كښي دفريبوترلي نه سي | چه په جال كښي دحيلوپيچلى نه سي |
| اي سالكه سه بيدارمه سه غافله | ځكه داحيله گرپيرزهرقاتله |

| مر محمد راا ولوالالباب ماند | بو مسيلم را[2] لقب كذاب ماند |
|---|---|
| وسائل ته نوخودداسي سوال پيداسو | مسيلم پدي لقب چه مسماسو |
| كه اندرزمان دده څخه فاني سو | چه داوصف لقب دده سره باقي سو |
| مسيلم ته پاته نه نه سوترابده | مولناواي دالقب وصف داحمده |
| دادخداي پاك فيصلة دده په بابه | بلكه سمدستي مشهورسوپه كذابه |
| هم داغه لقب تعين دده په باب سو | محمدرسول الله اولوالالباب سو |
| هم لائق دنبوت نبي احمده | نوحقداريه رسالت دى محمده |
| دهيڅ نوعي رهبري سزاوارنه دى | مسيلم ملعون كذاب لائق وارنه دى |

(۲) وقت چه په سابق بيت كښي تلقيب وتوصيف دمسيلمة باحمدباندي بيان كړي اوس نه بقاء ددغه لقب وصفت دره سره بيانه وي نووايي بومسيلم الخ ،دايه تعلق وارتباط راغلومعني ته هغه داچه مولناقدس سره فرمايي چه مسيلمه ته لقب وصفت داحمدپاته نه سوبلكه داحمدپرځاي كذاب نامدارموصوف سواومحمد عليه الصلوة والسلام ديواولوالالباب وعاقل نوم ورپاته سونودي حقداره په دي سوچه ملقب وموصوف ومسمي په احمدوگرزي نه مسيلمه ۱۲

ابوالحفاظ :مولوي صالح محمدالارغستاني .

## آن شراب حق ختامش مشکناب ... باده را ختمش بود گند وعذاب [2]

مولنااوس فرق کوي دحـق بـاطله ... دتمثيل په ډول وايي اي عاقــله

آخرت کښي يونعمت دحـق شـراب دي ... مهرسـوي په ختام دمشـکناب دي

چه ئي مهر کړي ورمات دمشکوبوي کړي ... چه پرسرئي کړي بالاخوشخونده خوي کړي

ددنياشـراب بدبـويه بنوي غړن دي ... مهرسـوي په عذاب نوکرغيڼ دي

دچيښنګ دپاره مهرچه بـالاکړي ... ګنده بـوي وعذاب دواړه بـه پيداکړي

همدارنګه ذات پاک دمحـمده ... مهرسـوي دی په مشکوداحــده

دغه مهرچه خلاصيږي خوشبـويي کړي ... هم داغه نورچه څليږي خوشـخوندي کړي

همدارنګه خبـيث ذات دلوي کذابـه ... مهرسـوي دي په ګندوويه عذابــه

وقـت چه دامهرده سـه هسـته کيږي ... نوبدبـويه معذب بــه ښکاره کيږي

دقـصي محـورړدي بـاندي څرخيږي ... چه سـالک دي وي بـيدارنه دي غوليږي

اجتناب دي وي ددا سـي کاذبـانو ... هم پرهيزدحـيله ګرومرشـدانو

## داستان آن بادشاه جهود که نصرانیان را می کشت از تعصب [2]

دايولواوږده قــصه ده زماوروره ... ډيــره درازه مطولــه ده هــرګوره

خومقصدسـره دطوله هويدادی ... چه اصلي اساسي تکي ئي هم دادی

چه يهودسخت داسلام دي دښمنانه ... حـيله ګرومکرجن هم ظالمانه

دقـصي ډيره حـصه پردي چليږي ... دمکاروزيرپرکړه بـاندي ڒغيږي

ارتباط ددي قصي ښکاره ظاهردی ... دسابـق سـري تړون په دي خاطردي

دابليس ووناقص پيرمکربيان سو ... دوزيردفريب نوبت اوس راروان سو

(۱) وقت چه مسـيلمه په سابق بيت کښي په نامه دکذاب وناکل سـواومحمد عليه السـلام په نامه داولوالالباب معرفي سـو اوس فرق ددوي ددعوت ووينااوامتيازددوي دتمثيل په ډول باندي کوي نووايي آن شـراب الخ . دايه تعلق وارتباط رغلو معني ته هغه داچه مولناقدس سره فرمايي چه لکه شـراب دآخرت چه وزړونو ته خوشـخوندي او . ودماغونو ته تعطروخو شبويي دربه برخه کوي اومهروختام ددغه شرابوپه مشکوباندي دی الله جل جلاله فرمايي ( يسقون من رحيق مختوم ختامه مسـک ) الآية کوم وقت چه دغه مهروختام دجنتيانودچيښلوپه وقت ځني ليري سـي نودمشکوبوي ځني جګيږي همدارنګه ذات محمدي عليه السـلام مختوم په معنوي مشکوبـاندي دی کوم وقـت چه ختم وومهردخاموشـي دپاره ددعوت ځني هـسته کړه سي نووزړونوته دطالبانو خوشـنودي معنوي لوخو شـبويي ورو بـخښي بـياوايوچه لکه شـراب ددنيـاچه په زړونوکښي طبعه بندي وبدخوندي لوبه دماغونوکښي بـد بـويي پيداکوي لومهر وختام ددغه په بدبـوي وعذاب باندي سـوي کوم رقت چه دغه مهردچيښلو دپاره ځني هسته کړه سي نويدبـويي وعذاب ځني جګ سـي هم دارنګه ذات دمـسيلمه مختوم په بد بـويي وعذاب دي کوم وقت چه دغه دخاموشـي مهرځني هـسته سي اوبه دعوت لګيلـسي نوبـه وسامعانواوخپلوتابـعانو ته بدبـويي وعذاب ور پخواکـري . نوخلاصـه ومحور ددي حکايت وقصي دادی چه سـالک بايد اعراض دکذاب ملعون مسـيلمه واروا وهم دارنګه دکذاب مرشد څخه وکړي او . وخپل پيغمبر محمود اومرشد کامل ته رجوع وکړي ۱۲

(۲) دايواوږده قصه ده چه مولناقدس سره ئي په څليرويشت عنوانونوباندي پاي ته رسوي خوخلاصه ئي بيان دظلم ومکرديهودودي خولوي بخش دقصي ددوي دمکروحيله وفريب پرمحورڅرخي زماوبيان ته پدي موردکښي څه ضرورت نسته څکه ديهودومکروفريب قرآن کريم بيان کړي اودرسول الله صلي الله عليه وسلم احاديث په ناطق دي اونورتاريخونه وکتابونوپه مشحون دي ۱۲ ابو الحفاظ : مولوي صالح محمد الارغستاني .

**بودشاهی درجهودان ظلم ساز** [1] — **دشمن عیسی ونصرانی گداز**

دادی سردحکایت څه نندارہ کړي — خزانه به په قصه راته ښکاره کړي
هرعنوان ئي داسرارخزانه ده — هريودرس ئي دانواروپيمانه ده
په ظاهره يوقصه عادي ويل دی — حقيقت کښي ملغلروله پيودل دی
دپندونصيحتوعبرت معدن ده — دفايدو،وتمثيلوحکمت مدفن ده
په شروع کښي مولناداسي فرمايي — سرگذشت ديهودانوراته وايي
يوباچاوديهودوستمگاره — دښمني يه دعيسي نبي ووکاره
دامت په هکلي دومره ووحساسه — دحسدکچه ئي لوړه آن دپاسه
په بي رحمه قتل عام باندي وژله — ني زړه سوي ودلسوزي باندي کوله
ربط دبيت خودعنوان سره ظاهردی — بيان نه غواړي خبرباندي ماهردی

**عهدعیسی بودونوبت آن او** [2] — **جان موسی اوو موسی جان او**

وقت چه شاه وعيسي ذکرسوله وړاندي — اوس بيان دحال ددواړوراته کاندي
واي زمان ددي باچاداسي زمان وو — چه داغه وقت دعيسي ددين دوران وو
يعني ټول احکام معموله دعيسي وه — څه احکام منسوخه سوي دموسي وه
مکلف دين دغه ديني عيسوي وو — نامنسوخ حکم باقي دموسوي وو
دايوفرق فروعي وددوي دواړو — رسالت کښي اتحادذهمه واړو
ځکه روح نودموسي دغه عيسي وو — دعيسي دپاره روح دغه موسي وو
يعني في الحقيقت دواړه سره يووه — په فروعومختلفه يودبل وه
نوسره داتحادفي الحقيقته — مردودبوله ديهودعداوته

(۱) ددي بيت ربط دسابق عنوان سره ظاهردي بيان ته ني ضرورت نسته راغلومعني ته هغه داچه مولناقدس سره په دي بيت کښي ديويهودي باچابيان راته کوي چه دهغه طبع پرظلم اوبربريت اوحسدوعنادنصرانيانوسره چه هغه ددغه وقت مومنان وه جوړه وه اوسخته دښمني يه دعيسي عليه السلام ونصرانيانوسره درلوده نووايي بودشاهي الخ .يعني ووبوباچايه يهودوکښي چه دظلم سره ني جوړيده دونکي وواودښمن دعيسي عليه السلام وواونصرانيانولره ويليدونکي او .وژنکي وواودده دحساسيت وحسدکچه په دومره لوړ اندازکښي وه چه قتل عام ئي پرنصرانيانوباندي شروع کړي هيڅ زړه سوي ودلسوزي نه وربانډي درلوده والسلام ۱۲

(۲) وقت چه حال دباچا په ظلم لوحال دعيسي عليه السلام په دښمني دباچايه سابق بيت کښي ذکرسواوس حال دباچا ورعيسي عليه السلام په اعتباردعهدزمان دباچالوعهدوزمان دد ين عليه السلام ذکر کوي نووايي عهدعيسي الخ ،دايه تعلق وارتباط راغلومعني ته هغه داچه مولناقدس سره فرمايي چه عهدوزمان دباچاعهدوزمان ددين عيسي عليه السلام وه همدارنگه نوبت ددغه باچاعهدددين دعيسي السلام ووپر دي تقديرنوعهدعيسي الخ خبردمبتدامقدري سولوضميرداووعهد عيسي ته راجع دی نو تقديرحاصل داچه عهددباچاددين دعيسي عليه السلام يعني په عهددباچاکښي دين دعيسي عليه السلام معمول ورائج ووداهم کيدلاي سي چه ضميرداووباچاته راجع سي اومبتدا مقدره نه سي نومعني داچه عهدوزمان ددين دعيسي عليه السلام وواونوبت دباچهي دباچاوواودواړه ضميرونه په مصراعي ثاني کښي عليه السلام ته راجع دي معني داچه روح دموسي عليه السلام عيسي عليه السلام دي اوموسي عليه السلام روح دعيسي عليه السلام دي يعني موسي وعيسي عليهماالسلام من حيث الحقيقت والرسالة يودي لکه دآية کريمه (لانفرق بين احدمن رسله ) چه شاهددي ۱۲

ابوالحفاظ :مولوي صالح محمدالارغستاني.

| (۱) شاه احول کرد در راه خدا | آن دو دمساز خدائی را جدا |
|---|---|
| مولنا اوس ماو تاته داوینا کړي | دظالم جهودي حال به هویدا کړي |
| واي موسيٰ وعیسيٰ دواړه موافق وه | په یوه دین دالله باندي ناطق وه |
| په اصولو کښي ددین جدائي نه وه | یو دبله ئي بالکل تنهائي نه وه |
| نو بیا چائي جهودي ظالم بدکاره | دحسد عقده ئي واچول په کاره |
| نو په سترګو داحول ئي وکتله | نوئي دوي سره جلا کړه یو دبله |
| ښمني ئي دعیسيٰ په زړه وه څرخه | ناراضي ئي دموسيٰ سوله په برخه |
| دیوه دوست دښمني چه څوک اعلان کړي | دهه بل دوست ناراضي به هغه آن کړي |
| خلص کافر جهودي سخت ډیر مختورن وو | دعیسيٰ علیه السلام ددین دښمن وو |

| (۲) ګفت استاد احولی را کاندر آ | رو برون آر از وثاق آن شیشه را |
|---|---|
| مولنا یو حکایت راوړي سوغاته | دجهود حال به روښان کړي ماو تاته |
| حکایت ئي په ښه نظم وو بیان دی | دجهود ظالم دحال ښه ترجمان دی |
| دتمثیل په طرز ددي داستان ویل کړي | ممثل نو په قیاس راته ښودل کړي |
| دلواضحه طریقه ده دتعلیمه | وشاګرد ته وسیله ده دتسلیمه |
| واي استاد احول شاګرد ته ویل راسه | بیا یه ده ته وویله سمدلاسه |
| چه ته ولاړ سه وکوټي ته سینبه راوړه | دغه کارمي اچولي ستاپر غاړه |
| داقانون دی داستاد وو دشاګرده | چه استاد کړي په شاګرد کارونه ګرده |

(۱) وقت چه په سابق بیت کښي اتحاد ویوالي دموسي وعیسي علیهما السلام بیان کړي همدارنګه ئي ددین موسوي وعیسوي وه وحدت ته اشاره وکړه اوس نو حال دباچا په تفریق اوخلاف الواقع راته ښه یي نو وایي شاه احوال الخ، دایه تعلق وارتباط راغلو معني ته هغه داچه مولنا قدس سره فرمايي چه دغه باچا چه په احولیت معنوي باندي موصوف وو هغه دوه موافق ئي جدا دخداي په دین کښي وبلل یعني دین موسوي وعیسوي چه په حقیقت واصولو کښي یو دین وو ګڼه په فروعو کښي فرق وو مګر دغه جهودي کافر داحول په سترګو ورته وکتل نوئي په اصولو وحقیقت جلا سره ولیدل نوئي دیوه دښمني دبل دوستي دده په خیال اختیار نو داقول در راه خدا، متعلق دي په جدا پوري ۱۲

(۲) وقت چه په سابق بیت کښي باچا په احول موصوف کړي اوس د تمثیل په دول داحول حکایت راوړي لکن د شاه احولي معنوي ده دشاګرد، داظاهري دایه تعلق وارتباط راغلو معني ته هغه داچه استاد وخپل احول لوکج چشمه شاګرد ته وویل چه ته راسه ولاړ سه کوټي ته نو د باندي راوړه مالره دکوټي څخه هغه ښیښه چه هلته پړه ته ده نو داحکایت د تمثیل په شکل دشاه داحولي د پاره راوړه سوي مقصد ئي توضیح دمعقول په محسوس باندي ده څکه چه باچا ظاهري احول نه وو بلکه معنوي احول وو څکه چه یو وجود موسوي وعیسوي په حقیقت واصولو کښي دوه ګڼله لکه احول ظاهري چه یو شي په دوه شمیري نه ګوري وحکایت ته داستاد وشاګرد نو دامعلومه چه تفریق په مابین کښي درسولانو کفر دي لکه قرآن چه په دغه ناطق دی لو داهم معلومه سو، چه دښمني دیوه پیغمبر دبل ددوستي سره نه سي جمعه کیدلاي نو دجهودي تشخیص وکردار صرف حماقت وجهالت او کفر ومغضوبیت وو والسلام ۱۲

(۱) وقت چه په سابق بيت کښي داستادامروواوړدي بيت کښي دشاګردامتثال دی نوېدي خاطردسابق ولاحق ارتباط قائم سوراغلومعني ته هغه داچه کوم وقت چه استادوشاګردته دسيښي راوړوامروکړي نوشاګرد، دامتثال په خاطرخوني ته دننه چابک ورننوتي غواړي چه سيښه استادته راوړي خويوه سيښه دده په سترګوکښي داحولي په سبب دوي ښکاره سوي نوددي دوبيتوڅخه داخبره اوحکم راوختي چه داستادامروشاګردته صحت اوجوازلري اوشاګردبايدپه امتثال کښي چابکي اوچالاکي وکړي زه دخانه يوخبره کوم هغه داچه نن زموږ عصرکښي بايداستادوشاګردپه صيغه دامرخطاب ونه کړي بلکه په طريقه دمشوري ويل ورته وکړي مثلادلسي ورته ووايي چه ملافلانسي آخندته ولاکاردلسي ښه نه روچه سوي واي ځکه چه شاګردان د موجوده عصرپه امتثال کښي ډيرکمزوري دي اودلستادسره په ادب کښي ډيرپس پاته دي نبايدچه دامرپه نه امتثال کښي دضررترعهده لاندي رلسي نولستاد ته دلرحم وشفقت پکار دی والسلام ۱۲

| چون درون رفت احول اندرخانه زود[۲] | شيشه پيش چشم اودومي نمود |
|---|---|
| په سابق کښي دآمرگفتاربيان کړي | په لاحق ئي دمامورکردارعيان کړي |
| په داغه بـاندي ترون ددووبيتوسـو | هم په دغه پيوستون ددووبيتوسـو |
| مولٰناواي دااحـول فرمان بـرداره | وکوتي ته ورداخل سـوپه تلواره |
| وطرف ته دسـيښي چي اراده سـوه | دايوسيښه په دوو، ورته ښکاره سـوه |
| وه لي ماوتااحـول دی ښه ليدلی | هم په دي صفت مـودي دی پيژندلی |
| چه يوشـي وده ته دوه ښکاري هرکله | پريوه بـاندي ددووخيال کړي بـالکله |
| نوبه خوددازموږ کج چشمه وايي داسي | چه بيان به ئي اوس وروسته درته راسي |

| گفت احول زان دوشيشه گوكدام[۲] | پيش تو آرم بگوشرحش تمام |
|---|---|
| داکج چشـمه وه ويله واسـتادته | چه دووسيښوسـه کمه راوړم تاته |
| سيښي دوي دي نه پوهيږم زمابادارہ | چه په دي دووکښي دي کمه ده په کاره |
| ته ئي شرحـه راته وکړه يودبـله | نوهغه بـــه درته راوړم زه پخپله |
| داحول دغه دوه گون په خپل گمان وو | نوئي ځکه واسـتادته دابـيان وو |
| وه لي ديدداحـول داسـي عياريږي | چه يوشـي ده ته دووباندي ښکاريږي |
| نواصلي حقيقت داسـي مسـئله وه | چه سيښي دلته دوي نه وي بل يوه وه |
| چه شـاگردوکړي ددووبـاند گمانه | سـرئي هغه ووچه تاته سوبـيانه |

(۲) وقت چه شاګرد دسابق بيت په مضمون وخوني ته چابک وره غلي اوخپلي احولي په خاطريوه سيښه دوي ورته ښکاره سوي نو اوس ددي بيت په مضمون دخپل عقيدي په بنا دلستاده مشوره غواړي چه کمه يوه ددادووسيښوڅخه درته راوړم دايه تعلق وارتباط راغلومعني ته هغه داچه مولٰناقدس سره وايي چه کوم وقت چه شاګردخوني ته وره غلي اوسيښي دوي په نظرووره غلي نوبيرته استادته راغلي اوورته وئي ويل چه کمه يوه درته راوړم شرحه کامله راته وکړه نوبيته څخه دامعلومه سوه چه ماموربه وقت داشتباه په ماموربه کښي بايداقدام پرکارونکړي بلکه دآمرسره مشوره وکړي چه هغه تعين ورته وکړي ۱۲

(۱) وقت چه شاگرد، دسابق بیت په مضمون واستادته ددووسیښو عرض وکړي اودشرح وتعین مطالبه ئي ونه کړه اوس استاددي بیت په مضمون داارشادورته کوي چه داسیښي دوي نه دي ستاپه سترګوکښي احولي يو شي دوه درته ښکاريږي داافزون دیدني پريږده دايه تعلق وارتباط راغلومعني ته هغه داچه مولٰناقدس سره حکايت کوي چه استادوشاګردته وويل چه دغه دوي سيښي نه دي بلکه يوه ده ولاړسه احولي پريږده يوشئ دوه مه وينه اوافزون بينه مه اوسه نودبيته ښخه دامعلومه سوه چه آمرباید دماموراشتباه په ماموبه کښي ورزائله کړي اوعلت داشتباه بايدورونبيي والسلام ۱۲

**گفت استاد آن دو شیشه نیست رو[1]** — **احولی بگذار و افزون بین مشو**

استادوويل شاګردته دازمانه
چه ته ولاړسه سيښي دوي نه دي يوه
يودوه مه وينه پرخپل ځان پيره دارسه
په زيادت باندي شي مه وينه هيڅ کله
دغه ځنګه ښه ويناوه داستاده
خوافسوزچه ده ويناهيڅ نه منله
داستادپه حق کښي وويله داسي

په تعليم وونصيحت ئي ووبيانه
دغه ستاګمان يوخوشي ولوله ده
احولي پريږده په سوچ فکربيدارسه
داغلطه طريقه پريږده بالکله
چه وده تي خپل علت کړي ورپياده
پرداخپل بول ئي اصراروکل به کله
چه بيان بي په راتلونکي بيت کښي راسي

**گفت ای استا مرا طعنه مزن[2]** — **گفت استا آن دو یک را در شکن**

دشاګردزړه چه خبره نه منله
اي استازه په طعنه مي وهل مه کړه
زه ليدونکي پيژندونکي يم هوښياره
نواستادپه لوړحکمت وښه ضميره
چه سيښي دوي دي نوزه وايم وتاته
نوشاګردپدي ويناباندي راضي سو
اوس کوي هغه عمل چه ورسپارلي

نوئي خوداستاذته داسي وويله
دمعيوب په سترګوماته کتل مه کړه
سيښنه کله ده يوه دوي معلوم داره
وشاګردته وويله په تدبيره
يوه ماته کړه دابله راوړه ماته
سمدلاسه وسيښوته رارهي سو
داستاددخواچي ده تي ووويلي

(۲) وقت چه په سابق بيت کښي لستادوشاګرد نه داارشادوکړي چه سيښي دوي نه دي بلکه يوه ده لوستاپه ديدکښي داحولي په خاطرعيب سته دغه پريږده لوشاګرد په مجردزباني ارشاد قناعت ونه سونوئي لستادته وويل چه اي لستادالغ، دايه تعلق وارتباط راغلومعني ته هغه داچه شاګرد ولستادته وويل چه اي لستاده مالره په عيب باندي وهل مه کړه سيښي خودوي دي زه ني وينم هوښياربناسري يم نولستادپه حکيمانه دول ورته وويل چه ورسه ددغه سيښوڅخه يوه ماته کړه هغه بله راوړه نوشاګردپدغه ويناراضي سواوورسپارل سوي کارئي عملي کړي نودبيته دامعلومه سوه چه کوم وقت چه دشاګردداستادپه زباني خبره قناعت ونه سي کولاي سي چه داستادخبره په يوسندوررد کړي نواستادبايدپه عملي دول دي ملزم اوقانع کړي اودحکمته ښخه کاروا خلي نوردي پرخداي پاک سپارم والسلام ۱۲

**چون یکی بشکست هردو شد ز چشم (۱) — مرد احول گردد از میلان و خشم**

چه شاګرد ،داستادواوريد داخبـــره — نوعمل ئي په هغه کړي برابـــــره
چه يوه سيښه ئي ماته کړه چابــکه — سمدلاســه بـــله هم ســـوه ځني ورکه
وه لي دالته خودوي نه وي بـل يوه وه — خووده ته ښکاره ســـوي يوپه دوه وه
ځکه دي غريب احول کج ئي کتل کړه — خوديوه لري په دووبــانـدي ليدل کړه
نواحـــول مشـــهورېدي وايمه صافه — چه ليدل ئي دواقـــع وي بــرخلافه
همدارنګه يوسړي که احـــول نه وي — خودقـــهره ئي واقـــع ته کتل نه وي
نوکجروه کينه ګرصاحـــب ګزافه — داحـــول غوندي کتل کړي بـــرخلافه
دجملي ســي جهودي ظالم بـــدکاره — په تفصيل باندي بي زده کړوموږکرداره

**شیشه یک بود و بچشمش دو نمود (۲) — چون شکست او شیشه دیگر را نبود**

دابـيت ګوروچه سبــب دی دسابقــه — ورته ځيرســه پوشيده نه دی لائقــه
وايي اصلي داســـيښه يوه دانه وه — خوپه سترګوداحول په دووښکاره وه
چه يوه احــول په خپل لاس کړله ماته — پرداغه ميدان نوبــله نه ســوه پاته
څه بـــه راوړي واســـتاذ ته لالي مړي — څه جواب بي وي دځان سره راوړي
ناکافي وتمبـــلي بــــه ئي په خواوي — چه دخپل استازدپنده بــي فرواوي
هغه څوک چه خپل عيب نه ويني جنابه — نه دبـــل خبـــره اوري په دي بابــه
نوبــــه تل دناکامۍ دکورميلمه وي — ناپوهي سرناخلاصي بي نتيجه وي

(۱) وقت چه سابق بيت کښي استادوشاګردته ديوي سيښي دماتيدوامروکړي اوس پدي بيت کښي دشاګرد دامتثال اودماترتب عليه بيان کوي نووايي چون يکي الخ ،داتناسب ووارتباط راغلومعني ته هغه داچه مولنا قدس سره حکاية وايي کوم وقت چه شاګرديوه سيښه ماته کړه نودواړي دده دسترګوڅخه ولاړي اووره کي سوي ځکه چه دی خواحول وويوه دوي ورته ښکاري دي دوم نيم بيت مقوله دمولناقدس سره ده غرض ئي بيان د موجب وسبب دمعنوي احولی دی نووايي چه روغ سترګی سړي دکج روي وشهوت پرستی څخه همدارنګه دخشم وغصي څخه احول غوندي ګرزي که څه په ظاهره احول نه وي لکه ددغه جهودي ظالم باچاچه احولی معنوي په برخه وه يو دين حقيقي په دوه باندي ليده اودموسی وعيسی عليهما السلام ترمابين ئي تفريق کاوه ۱۲

(۲) وقت چه په سابق بيت کښي ديوي سيښي په ماتيدلو دودواړو تلل او ووريکدل وويل اوس ئي پدي بيت کښي وجهه بيانه وي نووايي شيشه يک الغ ،دابه تعلق وارتباط راغلومعني ته هغه داچه سيښه په حقيقت کښي يوه وه خودده په سترګو داحولي په خاطر دوي ښکاره کيدي وقت چه هغه يوه ماته کړه بله خووه نه چه استادته ئي راوړي نولاچاره به په خپل عيب قناعت کوي اوداستادوحکيمانه تدبير ته به تسليمېږي نوشاګردبايدوخپل قصورته کامل متوجه سي اوداستادخبره په جورتفکرمطالعه کړي اوپه عجلت باندي ئي ردونکړي که نه دناکامۍ وپښيماني خاوندبــه وګرزي همدارنګه ودي جهودي ظالم ته په تکذيب دعيسي عليه الصلوة والسلام ايمان په موسي عليه الصلوة والسلام نه سووړياته دخپل بي فکري وګزافي په خاطربه دخجالت خاوندوي ۱۲

ابو الحفاظ :مولوي صالح محمد الارغستاني .

## خشم وشهوت مرد را احول کند[1] ز استقامت روح را مبدل کند

مولنا داحـولـی وايي سببـه ... دادشـاه ددوبيـنـی وايي سببـه
وايي خشم پرانسـان چه سـي غالبـه ... هم شـهوت نفس وهوايه سـي جالبـه
نوبـه دی لکه احـول داسـي کتل کړي ... خوديوه لره په دووبـانـدي ليدل کړي
يعني دي بـه وي دحقـه بـرکناره ... پرخلاف بـي دواقـع وي کاروبـاره
نه حق ويني نه حـق گوري نه حـق لولي ... داحول غوندي به يوشي په دوه بولي
دخپل روح استقـامت ئي وي بـاييلی ... مبــدل خيال ئي په ده وي رانيولي
نوبـي خودترحد دبـاندي جهالت وي ... هم بي تل دحق په وړاندي عداوت وي
خلص پرنفس چه يه جوړسوي طبيعت وي ... خودبـه ليري دواقـع وحقيقـت وي

## چون غرض آمد هنر پوشيده شد[2] صد حجاب از دل بسوی دیده شد

مولنامونږ ته کوي بـل عام بـيانه ... دباچاحـال بـه سـي بـالکل په روښانه
واي غرضي نفساني چه سي راوړاندي ... معرفت دحق به پټ سي لاندي باندي
دشهوت پردي پرززړه چه سـي هواري ... نوبه سـتر گوکله ويني دحـق لاري
چه په زړه کښي دحسـد لوخزانه وي ... نوبه ژبـه بـي دحـق څه ترانه وي
هغه زړه چه سـي دحقـه سـه غافله ... داحـول په شـان کوي حـکم بـاطله
دحاسدزړه به نوسترگي څه ليدل کړي ... دغافل زړه بـه نوغوږڅه اوريدل کړي
چه باچادنفس عسـکروي سانبال کړي ... نوبي خودتوله حواس وي پايمال کړي

(۱) وقت چه په سابق کښي حال داحول ظاهري بيان کړي اوس حال داحول معنوي بيانه وي همدارنگه ئي بل خل سبب موجبه راته بنه يي نووايي خشم وشهوت الخ .دايه تعلق وارتباط راغلومعني ته هغه داچه غضب جسماني اوشهوت نفساني روغ سړي مثل داحول گرزه وي اوروح دستقامته څخه اودليدلوڅخه دامرواقعي مبدل جوړه وي نوپرخلاف دواقع به اعتقادکوي دروٌية دحقيقت به محروم پاته سي بصردبصيرت بي مختل سي دنفس په قيد کښي به باقي پاته يودين په دوه ترجمه کوي په مابين کښي درسولانوبه تفريق وايي يوبه په عداوت نيسي دبل به ددوستي دعوه کوي لکه چه طبيعت دجهودي ظالم پردغه باندي جوړوونودبيته معلومه سوه چه سر منشادفسادخشم وشهوت دي بايددوله دعشق الهي په مترقه پرسر باندي ووهل سي لود نفس اماره دتخته را کښته کړي اودمطمنه په گلشن کښي داخل کړي لودغضب دبدبه ورماته کړي اودحلم په گيره کښي رلولي والسلام ۱۲

(۲) وقت چه په سابق بيت کښي سبب داحوليت اواستقامت بايللو دروح بيان کړي اوس سبب دهنرپوتيدلواو ديدبايللودستر گوبيانه وي نووايي چون غرض الخ ،راغلومعني ته هغه داچه مولٰناقدس سره فرمايي وقت چه غرض نفساني ظهوروکړي نوعقل پټ اوخاموش سي اوسل حجابه وړدي دزړه دلوري وطرف دستر گوموجودسي بلکه دټولوحواسوڅخه ئي دفعاليت لاره بنده سي څکه دنورانيت شغلي منقطعي وگرزي خالي په شان دهيولي پاته وي نوبه کله حق ويني اوکله به حق واوري اوکله به حق ووايي وهکذاهمدارنگه حال دجهودي باچاقياس کړه ۱۲

ابو الحفاظ :مولوي صالح محمد الارغستاني .

(۱) وقت چه په سابق بيت کښي غرض شهواني اوعمل فاسد دهنرپوتيدونکي اودحواسودحق تشخيص کولو مانع وباله اوس ئي مثال توضيح راته کوي نووايي چون دهد الخ ،دايه تعلق وارتباط راغلو معني ته هغه داچه مولٰنا قدس سره فرمائي کوم وقت چه قاضي په زړه کښي ورشوت ته قرارورکړي اوحب دمال وجاه اختيارکړي اورحم وشفقت ئي په زړه کښي نه وي نوکله به دحق فيصله وکړي اوکله به حق په حق اوريدلووآوري اوکله به ئي وواېي لوکله به ظالم دمظلومه په حق پيژندلوپيژه ئي بلکه دخپل شوم غرض په پسي پشت پيسي په روان وي وبس همدا رنګه به دهرغرض فاسد لوشهواني قوي خاوند پدي منوال وي چه دجملي څخه جهودي ظالم اوخودغرضه باچادى ۱۲

**چون دهد قاضی بدل رشوت قرار**[۱] — **کی شناسد ظالم از مظلوم زار**

مولنـا اوس تمثيـل وايـي ماوتاتـه — راڅه وګورويه څيـرـدده وخواتـه

واي قاضي چه کړي رشوت وزړه ته تيره — هم داغه خوي پرخپل زړه کړي ورسريره

دغه خپل زړه درشـوت لوقـرارګاه کړي — حـب دمال ودمنال طلب دجاه کړي

شفقـت ومرحـمت ئي پرچانه وي — دبـي وزلوپه غربـت ئي پروانه وي

سخت دلي رشوت خوري ئي وظيفه وي — فقـط جمعه ددنيائي وجيبـه وي

راسـه دغه مرتشـي کجروغافله — نوبـه کله حـق جلاکړي دبـاطله

په خاطردشـوم غرض هيڅ ليدل نه کړي — دظالـم وودمظلـوم پيژنـدل نـه کـړي

همدا رنګ چه څوک بيده پردي پلنګ سي — حق باطل به وربنکاره په يوه رنګ سي

(۲) وقت چه دقصي دشاګرداحول لومثال څخه فارغ سوچه دا دواړه ئي دپاره دتوضيح دحال دباچاچي جهودي رلوري وه لوس ئي په تطبيق دحال دباچا شروع وکړه نووايي شاه ازحقد الخ ،دايه تعلق وارتباط راغلو معني ته هغه داچه مولٰناقدس سره فرمائي چه جهودي باچاخپل جهودانه حسدوحقده

**شاه از حقد جهودانه چنان**[۲] — **گشت احول فالامان یارب امان**

چه قـصه وومثال دواړه سـوه تمامه — اوس په هکله دبـاچاوايي کلامه

واي بـاچاخپل حسـده ووعناده — ديهودو،دعادته ووفسـاده

په اصرار بـاندي اختيارکړي داعمله — چه يوشـئ ئي دوه ليدل لکه احـوله

يعني ديني موسـوي عيسـوي دواړه — يودبـله متفق وه همه واړه

په اصولو يودبـله تنهانه وه — بـل يوه تنه بـالکله جلانه وه

خوجهودحاسداحول غوندي کاته کړي — دغه يودين دي په دوباندي ليده کړي

ويوه ته ددښمن په سـترګوګوري — دابـل نوځان غاوربـولي هرګوري

يـاالله تـه نجـان راکـړي ددي کـاره — ربـه ته راکړي امان ددي کرداره

څخه داسي احول ګرزيدلى ووچه يواصولي دين عيسوي وموسوي يه په دوه باندي ليدى ويوه ته ئي ددښمن په سترګه کاته دبل ئي ځان غاورګانه دداسي فاسدعقيدي اواحمقانه عمله دامان پناه وغوښتونکي يم يار به امان وپناه دداسي عقيدي وعمله راکړي موږ دالله دپيغمبرانو ترمابين تفريق نه کووپرټولو ايمان لرواوپرټولو دحقيقت عقيده کوو ۱۲

ابوالحفاظ :مولوي صالح محمدالارغستاني .

(١) دابيت تفصيل وبيان دسابق بيت دي دايه تعلق وارتباط راغلومعني ته هغه داچه مولناقدس سره ددغه جهودي دحقدجهودانه حكايت پداول كوي چه ظالم كافرباچاسل زره مومنان اومظلومان په شهادت ورسول پدي فاسد خيال چه زه ودين ته دموسي عليه السلام تقويه وكومک وركوم مگردايوباطل اوفاسدگمان وو ځكه چه ديوه نبي تكذيب دټولو انبياؤعليهم السلام تكذيب دي نوپه تكذيب دعيسي عليه السلام مكذب دموسي عليه السلام هم سونوتقويه دكومي خوابلكه ددين موسوي تخريب ئي وكړي نوملعون پرڅه دعيسي وموسي عليهما السلام دواړوگرزيدي نه داچه ديوه دښمن دبل نودوست سوبلكه ددواړودښمني ئي پرغاړه واخيسته ۱۲

| صد هزاران مؤمن مظلوم کشت | که پناهم دین موسی را و پشت |
|---|---|
| مولنـــا اوس ماوتاتـــه دافرمايـــي | دبدبخته جهودي حال داسي وايي |
| داظالم لعين لاس پوري پدي كاركړي | وحشاني عمل دكفرئي اختيار كړی |
| نوســـل زره مومنان ئي قـــتله وله | پيروان ئي دعيســـي ددين وژله |
| پدي خيال چه دغه قـــتل زه كومه | په داغه دين دموسي محـكمه ومه |
| پشتيبـــان ئي ښووي ځان دغه غليمه | چه نوماكړی تقـــويه دين دكليمه |
| خودده عمـل معلـوم كفروتخريب وو | عين ديني موسـوي لره تكذيب وو |
| وه لي ځوک چه ديوه نبي انكارســـي | په هبل باندي به كله ايمان دارسي |
| وه لـي ماوتـــازده كـــړی دايه دواړو | ديوه رســـول تكذيب دهمه وارو |
| په قرآن كښي موداغه درس دي ليدلی | په تفســـيروترجمه مودی ويلی |
| خلـص ظالـم ويهـــودي كافرلعينـــه | په عيســـي ئي نړاوه دموسي دينه |
| خوپدي واقـــعيت نه ووخبــــرداره | چه داځومره بدبختي مي ده په واره |

(٢) آموختن وزیر مکر شاه گمراه را

| دسابق عنوان مضمون ظلم دباچاوو | عداوت وشقـاوت ئي بــرملا وو |
|---|---|
| اوس نوبت دی دوزير مكروحيله كړي | وباچاته بـه ورزده بـله شـيوه كړي |
| زيرزمينـي دښمنـي اچوي په كـاره | مسلمه امت به ټول كړي تارپه تاره |
| چه پر كاردحاســـد ينو تناوب دی | نوداغه دعنوانينو تناســـب دی |

(٢) وقت چه په سابق عنوان كښي ظلم دباچاي جهودي په لوړه كچه بيان سولوس پدي عنوان كښي مكروفريب ددزيري مكاردخولو باچاگمراه ته په بله شيوه ښودل كيږي نووايي آموختن وزير الخ .دايه تعلق وارتباط دعنوانينو ترمابين داعنوان دسابق بيت سره بناپرلوړتقرير هم تناسب لري راغلو معني ته هغه داچه د عنوان ثابت دي په ورزده كولو كښي د مكاروزيرفريب وحيله وگمراه اوظالم باچاته خلاصه ددي عنوان داده چه وزيرمكارپرعام وڅنه دباچانصرانيانولره تنقيدوانكاركوي ځكه چه داچاره دوره كي دنصرانيت نه بولي پردغه خبره دلائل اقامه كوي غواړي چه داسي كاروسي چه نصرانيت دجهانه ټول سي هم ددغه كارپيشنهادوباچاته كوي اوطرزوطريقه ورته بيانه وي اوپردي زيات كوشش وتركيزكوي چه داكاربه دنصرانيانوپه قلعه او،وره كيدلوكښي موثرواقع سي داستااوسني طريقه قالعه اوبيخ كښونكي نه ده والسلام ۱۲

ابو الحفاظ :مولوي صالح محمد الارغستاني .

(١) وقت چه په عنوان كښي وزيرورزده كونكي دمكروباله اوس په بيت كښي دده كمال په مكرباندي بيانه وي نووايي آن وزيرالخ ،دايه تعلق وارتباط دبيت دعنوان سره راغلومعني ته هغه داچه مولنادعنوان په آغازكښي وايي چه هغه باچايووزيردرلودی چه گبراوفريب دهنده وو،داسي ډول چه دمكروفريبه څخي پراوبوغوټي تړلي يعني دومره مكاروو،چه گوياكي دمكره يه اوبه سره غوټه كولي چه دانوكنايه دكثرت مكره څخه ده ته به خپله دده مكرونه وفريبونه په جريان كښي دقصي وويني دتعجب گوته به په غاښ ورته ونيسي په نوبه نوبه ئي وتفصيل ته انتظاروكړه ١٢

آن وزيري داشت گبر وعلوه ده[(١)] كو برآب از مكر بربستي گره

مولنااوس دوزيرحــــال راته وايي پــه حيلوووپه فريبوئي راته ستايي

واي درلودي دي باچادااســــي وزيره چه په فريب خداع كښي نه درلودنظيره

دغه گبــــرمكرجن فريب دهنده وو هم خادع يومجرب جهان ديده وو

دابدبـــــخته دفريبـــونوخزانه وه داكم بـــــختهٔ دمكرونوتاخانه وه

په ځيگركښي ئي درلودي حيلي پوټي پراوبوبـــــــاندي تړلي دچل غوټي

وقـت چه ليري پراوبـوغوټي دفكره نوبــــي بــــولوكنايه دډيره مكره

دحيلوبازاربــــــي ووينې چلانده دفريبودرباربـــــــي ووينې ځلانده

چه قـصي ته سي داخل په ښه تلاښه نوبــه خپله گوته ونيســـي په غاښه

خيررابـــه ســـي وتاته تفصيل واره څه حـــــيلي چه اچولي ده په كاره

گفت ترسايان پناه جان كنند[(٢)] دين خودرا از ملك پنهان كنند

اوس وزيردي چه رغيږي وبـــــاچاته حيله گردي فريب كوي ودين والاته

وايي داقـــتل عام ســــتاهيڅ چارنه ده نصرانيانو تــه دوركـــي لارنــه ده

وه لي تولـه عيســـويان دخپلي بـــيري دنجات دپاري هلـي ځلـي ډيـري

چه دوي ويني پرخپل دين مرگ زموږدلاسه نوخپل دين دوي پوټه وي دماوتاسه

په ظاهربــــــه يهودي ځان ننداره كړي په باطن به نصراني دوي گذاره كړي

نوبـه خودحـال پوشيده سـي دازمانه نه بـــــه دوي وپيژنودخپله ځانه

نوښه داچه موږ تدبـــــيرجوړكړودارنگه چه دادينې عيسوي كړو،ورځورنگه

(٢) وقت چه په سابق بيت كښي وزيردمكار لونهايت فريب جن په صفت وښودي لوس دده ويناوي دمكر وفريب په باره كښي بيانه وي لودباچاد سابق عمل ردپه دليل باندي كوي نووايي گفت ترسيان الغ ،دايه تعلق وارتباط راغلو معني تـه هغه داچه دغه مكاروزيرباچا ته وويل چه دلستا قتل دنصرانيانودور كي لاره نه ده پدي خاطر چه دوي ستاته دخپل ځان دباچاڅخه دلسي كولاي سي چه خپل دين دباچاڅخه پټ كړي لوديهودوپه دين خپل ځان ورته ښكاره كړي بيلبي باچاڅه وپيژني نوبه خوښ خوشحاله په باطني ډول دخپل دين پيروان وي اونصراني دين به محفوظ اوپرځاي پاته وي اوپدي قتل بي بيخ كندن ونه سي نو ددي دين دختمه ولودپاره بله چاره پكارده نوښه داچه موږداسي تدبيرپكارواچه ووچه دين عيسوي درېښود باسو هغه نوپدي ډول كيږي چه زمادحيلوڅخه كارواخيستل سي ١٢

ابو الحفاظ :مولوي صالح محمد الارغستاني .

| | |
|---|---|
| **کم کش ایشان را که کشتن سود نیست** (1) | **دین ندارد بوی مشک و عود نیست** |
| اوس نو وايي حـيله ګر فريب جن وزيره | وبـاچاته دی وربښيي خپل تدبـيره |
| وايي مرګ دنصرانيانو دي بـيګتي | پدي کار کښي فائدي نسته وري غتي |
| وه لي: اقـتل دځه دپاره کيږي | سـتاپه خيال نصرانيت به ختم کيږي |
| مګر داغرض به لاس نه سـي راورلاي | ځکه دين په دي کارنه سي ختمه ولاي |
| وه لي هرنصراني داسـي کارکواي سـي | په جامه ديهودي نه وتاي سـي |
| په ظاهر بـه ماوتاته يهودي وي | په باطن به سري سخته عيسوي وي |
| دين خو مشک نه دی چه بنه بوي ځن جګيږي | نه دعود په شان خوشبـويه چه لګيږي |
| دصفتي ظاهري منل اسـان دی | دصفتي بـاطني پيژندل ګران دي |
| نو داسـتاعمل وماته مقبـول نه دی | په بـاره دنصرانيانو معقـول نه دی |
| **سر پنهان است اندر صد غلاف** | **ظاهرش با تست و باطن برخلاف** |
| اوس وزير وايي بـاچاته اي لائقـه | په لاحق بـاندي تاکيد کړي دسابقـه |
| واي وزير کوي بـيان وخپل بـاچاته | چه ته سـوچ وکړه غور ونيسـه وماته |
| نصراني به هريو جوړ داسي جريان کړي | چه دخپل زړه سرد تاڅخه پنهان دري |
| دخپل دين به حفاظت کامل تمام کړي | خوله تاسه بي په سل پوښونهام کړي |
| په ظاهر بـه پردستور سـتاوي روانه | په بـاطن بـه دخپل دين وي پيروانه |
| نو بـه څنګه نصراني دين کړي بربـاده | نو بـه څنګه ورسـيږي ترخپل مراده |

(١) وقت چه وزير مکارپه سابق بيت کښي دباچادقتل عمل ردکړي پدي خاطرچه عيسويان به خپل دين درڅخه پټ کړي نو قـتل ستابي فائدي سونوباچاته دالارپاته ده چه ووايي چه ددوي قـتل کټ منده لاردختم ده ځکه چه دوي پوتيدل دخپل دين نه سـي راڅخه کولاي نووزير مکارپدي بـيت کښي جواب ورته وايي چه کم کش الخ . دايه تعلق وارتبـاط راغلو معني ته هغه داچه وزيروبـاچاوايي چه نصرانيان مه وژنه ځکه چه په مرګ کښي ګته نسته وه لي سـتاغرض چه ختمه ول ددوي دي پلاس نه درکوي ځکه چه دوي سـتاپه دين په ظاهرتنو تل کولاي سي اوخپل دين درڅخه پونه ولاي سي که ته وا نه زه وايم دين لره بوي دمشـک وعودنسـته چه ته ئي تشـخيص اوپيژنـي نوسـتاعمل ددوي دختمه ولوزريعه نه جوړيږي نوزماتدبير عملـي کـړه چه ددوي ختم اوبـيخ کندن په راسي ١٢

(٢) پدي بـيت کښي تاکيددسابق بيت کوي نووايي سـرپنهان الخ ، دايه تعلق ولرتبـاط راغلو معنـي تـه هغـه داچه وزيروبـاچاته وايي چه سرومبـطن شـي پټ دي په سـل غلاف وپوښو کښي يعني عقـيده دنصرانـي يومبـطن امر دي کيدلاي سـي چه ظاهرعمل ئي سـتاپر دول وي اوبـاطن ئي بـر خلاف وي نو ته بي ثنګه تشـخيص کړي اوبه مرګ بي ثنګه دين ورختم کړي اوخپل مرادته به څنګه ورسـيږي نوبنه داده چه زماحيلي په کارواچوواوزماختميدونکي تدبيرعملي کړونوبه خپل مقصدپه لاس راوړو ١٢

ابو الحفاظ : مولوي صالح محمد الارغستاني .

| شاه گفتش پس بگو تدبیر چیست [۱] | چارهٔ این مکر این تزویر چیست |
|---|---|
| چه وزیر د شــاه عمل ردکړی بــالکله | بـــاچاهم دده خبـــــره ومنله |
| ویل اوس نو ته راوښیه تدبـــــیره | څنګه مخ نیســــودې مکروتزویره |
| زمامقصد دعیسوي دین ورکه ول دی | کل غرض دنصراني دين ختمه ول دی |
| ماخي لاره چاره هغه ســـــنجولی | اوس مي ستاخبـره بــالکل ده منلي |
| حقیقت دایه چل ول به راسه پټ سي | هم روان به پرخبره ستاکټ مټ سني |
| نو منم چه ددوي قــــتل چاره نه ده | دمقصد درســـــيدلو لاره نه ده |
| که بیاهم زماپرکرداربانـدي دوام سي | نو دخاورو ســره سم په زمامرام سي |
| نو به څنګه مقصد زماولاس ته راسي | نو ته وښیه تدبــــیرو ماته داســـي |
| تانماند در جهان نصرانی [۲] | نی هویدا دین و نی پنهانی |
| اوس بـــاچاد خپل خبــــرو په دوامه | ووزیر تـــه ښه ورښه یـــي خپل مرامـه |
| وایي زه خو قـــــتلوم نصرانیانه | پدي نیت چه زه دوي ورک کړم له جهانه |
| چه نه پټ نه په ښکاره په دین ســـي پاته | دا د طبــعي ووجداني حـــکم دی ماته |
| نو بــــه خودزه قــــتل عام ددوي کومه | په داغه بـــــي ددنیاســـــه ورکه ومه |
| وقــت چه ته وایي دامرګ نه دی په کاره | زه بــــــه هم داو منمه ســــــتادپاره |
| بلکه زه بي په خپل زړه باندي چښنل کړم | په دلیل بــاندي بــي ســتاد خوامنل کړم |
| خوته بــــــله لار خرګنده کړه وماته | زه بـــــه هم مخ واړه وم وهغه خواته |

(۱) وقت چه وزیر په سابق کښي دباچاعمل پدلیل باندي ردکړي نو باچاهم اوس دده رد تسلیم اومانه خود تدبیر غوښتنه ئي څني وکړه نوئي ورته وویل پس بګوالخ ،دایه تعلق وار تباط راغلو معني ته هغه داچه باچاوزیر ته وویل وقت چه زماعمل بي فائدي تمام سوزه هم قناعت ستاپه دليل لرم نو ته وایه تدبير څه دي اوچار، ددي پټيد ودنصرانیانو اوددي تزویردنصرانیانو څه ده زماغرض خو دعیسـوي دین ورکیدل دي ماخي چاره هغه بلل چه کول مي وقت چه هغه چاره ستاپه دليل زمايه منلو ناکامه وخته اوس ته چاره وتدبیر راوښیه چه ددغي لاري مقصد لاس ته راوړو داهم کامیابي ده ۱۲

(۲) وقت چه په سابق دچاري وتدبــیر مطلق غوښتنـه وکـړه اوس مطالبـه ددا سي چاري کوي چه په هغه بـاندي نصراني دين بــالکل دجهانه محـوه ســي نو وایـي تانماند الـخ ، دایه تعلق وارتبــاط راغلو معني تـه هغـه داچه بـاچاوزیرته وایي چه چاره څه ده داســي چاره چه نصرانیــت یومخ په ختم ســـي پداســي دول چه په جهان کښي يو نصراني هم پاته نه ســـي اونه په ښکاره دين عیسوي پاته ســـي نه په پټه باندي اوس موږ وتاسي بايد جهود يان داسلام پوره دښمنـــان وګڼو اوسرســـخت دښمن په نامه ئي وپیژنو اودحسد وعنادوبغضه ئي پرپيمانه وبولو اودمغضوب عليهم عقيده ورباندي وکړولکه قرآن عظیم شان چه وموږ وتاسي ته ددوي عادت ودیدن په کامله وجه راښوولي دی ۱۲

ابو الحفاظ :مولوي صالح محمد الارغستاني .

| گفت اى شه گوش و دستم را ببر[1] | بينم بشگاف ولب در حكم مر |
|---|---|
| چه باچاكلام كړي خلاص په خوش زبانه | اوس وزير كوي دخپل تدبير بيانه |
| زماوســـــتاترخيال ئي مكردى وچته | پرخپل ځان باندي ګالي دومره مثلته |
| واي ته راســـه اي باچاداســـي كرداركړه | زماپه هكله بيله دريغه داسي كاركړه |
| غوږمي غوڅ دارنګه لاس راڅخه پري كړه | دغه كارديرپه ښكاره ووبي پردي كړه |
| بـيامي پزه كړه راچاك شـونډه دارنګه | دغه حكم كړه چلانده پرمابي درنګه |
| چه لعنت پرځان ايـږدي دغـه وزيـردى | چه دادومره مثلت وړي دغه وزيردى |
| چه نه بـند په رســوايي نه په عذابــه | زه وته بـــه څه وايودده په بابــه |
| رفـت چه پره واورودده بـيان تقـريره | نوبــــــه ووايولعنت پردي وزيره |
| بعدازان دز يردارآورمرا[2] | تابخوا هديك شفاعت گرمرا |
| دابــل مكردي وزيربــــاچاته وايي | هم دده دفريب حســـده ســــره ښايي |
| وايي پس ترهغـه څه چه ماويـل كړه | سمدلاســه ورپسـي نويوكاربـل كړه |
| هغه داچه ماراكش كړه وجګ دارتـه | مـــه مـــي ګوره وزخمووپرهارتــه |
| ددارطرزووځاي به دى ورته بيان كړي | آينده بيت بي ومورږ ته ښه روښان كړي |
| پس تردغه دبدبــي داســخاوت كړه | مادداره ســه معاف په شــفاعت كړه |

(١) وقت چه باچادخپلي مخاطبي ووزيرته فارغه سونووزيرپه جواب كښي دبيان دتدبيرداسي ورته وويل چه اي شه گوش الخ ،دايه تعلق وارتباط راغلومعني ته هغه داچه وزيروباچاته په جواب كښي داطريقه دحيلي وتدبيربيان كړه چه اي باچاغوږولاس زماراپري كړه اوپزه وشنډان مي راچاك كړه اوپدغه حكم ته امروكړاو چلاندئي كړه نواوس راسه زه وته ديهودووجهودانه حسدوعنادوبغض وعداوت دښمني ته متوجه سوچه دوي په خومره غيض وغصه خومره عذاب ومثلت اوخومره نوغي ولعنت اوخومره فراري دوطنه حتي دخپل ځان زندي كول دلســلام دمحـــوه كيدلودپاره پرځان بـاندي وړي دلنو كامله دښمني وعدلوت نه بولي ١٢

(٢) داپه مثل دسابـق مكروتدبـيردوزيردى چه بـاچاته ئي ښودنه كوي دايه تعلق ولرتباط راغلومعنـي تـه هغـه داچه وزيروبـاچاته پس ترهغـه څلورمثلتونـو وويـل چه مالانـدي تـر دلرراوړه پدي رنــګ چه اوس نوګوياوزيــر ادامـيـــري اوپه دلر ،را څرېږي اودغه دبدبــه دي پرخپل ځاي باقــي وي څوچه يوشـــفاعت ګرزماشـفاعت كوي نو پس ترشـــفاعت مي د مرګه اوداره معاف كړه كه تاته داسوال پيداسي چه شفاعت اوشفاعت ګرېدي مقـام كښي دكمه ځايه فهمه ول كيږي چه وزيرئي په وجودخبره كوي جواب به داسي وايوچه پداسي ځاي كښي غالباشفاعت وشفاعت ګرمابـين ته راځي ځكه چه ددغه دارځګول پرچارسواوپه محضركښي دخلګودوزيرفرمايش وولكه په آينده بيت كښي به تصريح وربانـدي رلسي ١٢

(۱) وقت چه په سابق بيت كښي ددارذكروكړي اوس ددارقرارگاه ومحل وربنه يي نووايي برمنادي الخ ،دايه تعلق وارتباط راغلومعني ته هغه داچه وزيرباچاته وايي چه ته پرځاي دمجالسواوپرمحضروځاي دحضوردخلقوداكارددارجگولووكړه اوپرسردهغه لاري چه دڅلورطرفه لاري ورباندي سپري وي داپدي خاطرچه زه وعام وخاص ته مجرم ښكاره سم اودنصرانيت ددين په تورخائن وپيژندل سم اوستادبدبه وغصه وتعذيب اوودارته درول ددغه خبري شاهدوگرزي اوزمادنصرانيت موضوع دخلقوپه زړوباندي ومنل سي نوزه به دعيسويانوپه زړونوځاي ونيسم اودوي به ومانه دمعذب في الله په سترگوروگوري اوومانه به خپل په مابين سره دښي عقيدي پناه راكړي بيابه نوزه خپل كار وحيله وسرته ورسوم ۱۲

| | |
|---|---|
| برمنادی گاه کن این کارتو (۱) | برسرراهی که باشدچارسو |
| اوس وزيرپه كامل فريب لكه شيطانه | وباچاته ددي داركوي بيانه |
| واي دداړپه هكله داسي كارروي كاركړه | دره ول ئي دچارسوپرلويه لاركړه |
| په محضردعام وخاص كښي جگول كړه | هم داغه ځاي ته دخلگورابلل كړه |
| وايه زماحكم فرمان پردي چليږي | چه مجرم وزيربه اوس په دارځړيږي |
| هغه څوك چه خيانت پرده ښكاره سي | خاص وعام ته به نوداسي ننداره سي |
| مگردامحفل خوجوړدي داسي ياره | چه شافع دي سي پيدازومادپاره |
| نوپه دغه شفاعت ته دشافعه | په باره كښي دخلاصون زماسه قانعه |
| نودداره مي په دي رقم ازادكړه | دخواست گروزړه په دغه چم وربنادكړه |
| آنگهم ازخودبران تاشهردور (۲) | تادراندازم دراېشان شروشور |
| اوس وزيرپه خپل جالووخپل كمنده | وباچاته وربنيي دغسي پنده |
| وايي پس ترشفاعت نومافراركړه | بنه گوښه مي دوطنه بركناركړه |
| وقت چه زه دخپل وطنه سه جلاسم | نوبه هلته په خپل كارباندي لگياسم |
| په مابين دعيسويانوبه مشته سم | سمدستي به نوپه خپل مقصداخته سم |
| زه به وشندم په دوي كښي داسي چاري | سمدلاسه بي تقسيم كړم پرشل لاري |
| داختلاف به ورداخل ددوي په كوركړم | يودبله به اخته په شروشوركړم |
| دامجمل بيان ئي وكړي وباچاته | تفصيل واره به قريب راسي وتاته |

(۲) وقت چه ددار طرزوطريقه په سابق بيت سره وربنوده اوس ددارترطريقي وحيلي وروسته بله طريقه وحيله وربنيي نووايي انگهم الخ ، دايه تعلق وارتباط راغلومعني ته هغه داچه داغه وزيروباچاته وايي چه پس تر هغه چه دنومړي داره دي په شفاعت دخلقوازادكړم بيامي نودخپله ځانه اوزما وطنه څخه ويوليږي ښارته چه دنصرانيانومجمع وي فراروشره څوچه زه ددوي په مابين كښي فتنه اوشروشورواچوم اوددوي په مابين كښي تفرقه وبي اتفاقي ايجادكړم اودوي پرډيرولاروا ومختلف مذاهبوباندي تقسيم هم ددغه طريقي وحيلي دلاري به وخپل مقصدته ځان ورسوم ۱۲

| | |
|---|---|
| چون شوند آن قوم از من دین پذیر [1] | کار ایشان سربسر شوریده گیر |
| اوس وزیردخپل حیلي څه شمه وایي | وباچاته په خوږه ژبــه فرمایي |
| وایي تاچه زه دخپل ښاره مبــعود کړم | په ظاهروحشت مثلت دي زه مطرود کړم |
| عیســوي قــوم چه ماووینې ذلیله | زماحـــالت پرنصرانیت کوي دلیله |
| وقت چه دغه نظرسـودوي دخواسـه | نصراني دین به قبول کړي دوي له ماسه |
| وقت چه زه په نصراني ســوم مسلمه | دارشته مي ســوه ددوي سره محکمه |
| نودافرض کړه زه به دوي کړم تاربه تاره | سراسربـــي په بـــلاکړم گرفتاره |
| کارددوي بـــه ورخراب کړم سربســره | په باوردماســـه واوره داخبـــره |
| آینده بــه ئي سبــب راته بــیان کړي | دامضمون بــه ماوتاته ښه روښان کړي |
| درمیان شان فتنهای افگنم [2] | کاهرمن حیران بماند درفنم |
| وایي کارددوي خراب بــه زه پدي کړم | چه فتني بي په مابــین کښي خپري کړم |
| رهنمابدچه ابلیس دابــه حیران ســي | زماوفندته بــه عاجزلعین شــیطان ســي |
| دامکاروزیرصادق په خپل ویناکــښي | چالیدلې دونــه فریب په دي دنیاکــښي |
| چه قـــصي ته منتظرسوبندپربـــنده | نوبــــــه ښه وپیژه نودوزیرپنده |
| چه دژوندپه زحمتوکښي دده فریب وي | هم دمرگ په راوستوکښي دده فریب وي |
| چه تول ژوندبربـــاده وي دفریب دپاره | هـــم خپل ځان راځروي دفریـــب دپاره |
| دغـــه واړه چه وزیـــرپرځان منلـــي | دطاقــــته دانســـانه دي وتلي |
| نوبـــه وه لي اهره من نه وي حــــیرانه | نوبـــه وه لي تعجب نه کوي شـــیطانه |

(۱) وقت چه په سابق کښي طرزوطریقه دزمینه سازي دحیلي بیان کړي اوس یوشمه دحیلي چه هغه نوپه نصراني دین ورگډیدل دي بیانه وي نووایي چون شوندالخ ،دایه تعلق وارتباط راغلومعني ته هغه داچه وزیرباچاته وایي چه کوم وقت چه تازه دوطن فرارکړم اوماپه مابین کښي دعیسویانوبردباش ومیندي اوخپل ځان مي په عیسوي دین ورته ښکاره کړي اودوي په خاطردډیرودلائلوداز ماخبره ومنل اودین عیسوي ئي زماومانه اوزه ئي په عیسوي باندي قبول کړم نوهغه وقت کارددوي ته سراسرخراب وپراگنده فرض اووگڼه پدي سبب چه زه په مابین کښي ددوي فتني ایجادکړم ددغه سبب بیان په آینده بیت کښي راته وکړي ۱۲

(۲) دلبیت سبب مبین دسابق بیت دپاره دي نوپه دغه خاطرئي لرتباط وتعلق سره قائم سو راغلومعني ته هغه داچه اوس وزیروباچاته سبب دخراب کیدلودکارددوي په دلاول وربنه یسي چه زه په مابین کښي ددوي فتني ورچوام دلسي فتني چه هغه رهنماي بدچه ابلیس شیطان دئ هغه به زماوفن وچل ته حیران پاته ســي وزیرپه دغه خبــره کښي صادق دئ ځکه چه زه وته مضمون دقـــصي راتول کړولو دده پرفریبـــونوعلمي احاطه وکړولومغ کښي چه دده فندوفریب تــه نظروکړونوبه اقرارورکړو چه اهرمـــن په خپل فـــن کښي تروزیرپس پاته دئ اوس داخبره بایدزده کړوچه امکان لري چه مراددمولٓناقدس سره الاقدس دي پدي مقام کښي دباچاي یهودي څخه شیطان وي اومراد ،دي دوزیره څخه نفس اماره وي چه هغه فعل دحیلودپاره دحصول دمراددشیطان کوي والسلام ۱۲

(۱) وقت چه وزیر مکار په سابق بیت کښي خپله فتنه انګیزي په لوړه کچه اجمالاً بیان کړه اوس ئي د تفصیل بیانه ولو عذر وایي نو وایي آنچه خواهم الخ .دا یه تعلق وارتباط راغلو معني ته هغه داچه وزیر مکار وایي چه هغه څه چه زي غواړم چه په نصرانیانو باندي وکړم او تاددوي دقتل وو تعقیب د مسئلي خلاص کړم دوي به خپله په ویرو فتنه سره اخته کړم دهغه تفصیل زما په بیان کښي اوس نه راځي په مختلفو عنوانو بي مولنا قدس سره په جریان کښي دقصی راته مفصل بیان کړي زماوستابه نو کارداوي چه ځیر ځیر به په قصه کښي تګ کووا په نوبه نوبه په ارام ذهن پکښي روان یو نو به د مکار وزیر ابلیسانه فریبو نه او دده خبثانه تلبیسونه یو یو په مخه باندي راځي او اثر به ئي وینو څو چه دده خبیث د خپل خان زندي کول او خپل خان وژل به هم په مخه راسي او فراخه فتنه به ئي په نصرانیانو کښي وینو والسلام ۱۲

| آنچه خواهم کرد با نصرانیان[2] | آن نمی آید کنون اندر بیان |
|---|---|
| چه فتني مي په مابین ددوي اجرا کړي | هم مي خپلي کارنامي دالته ادا کړي |
| نو چه زه غواړم هغه کار بــــــه کومه | نصرانیان بــه یو په بــل ســره وهمه |
| خو تفصیل ددي بــیان نه ســم کولاي | اوس ئي دلته تاته نه ســمه ښودلاي |
| نو بــه زماوســتاکار داوي طالب جانه | چه په ځیر ځیر په قصه کښي سوروانه |
| په نوبــه نوبــه بــه زماوســتار فتاروي | دانیمګړي ذهن بــه زماوستابیداروي |
| نو بــــه ووینو عمل ددي ابلیســـــه | چه په څه نیرنګ ددي خبیث تلبیسه |
| نصرانیان بــه یو په بــل ســره اخته کړي | پیژندلي دین پردوي به پوشیده کړي |
| نه به دین نه به مذهب سي دوي ته پاته | دافریب جن وزیر به ورکړي داسو غاته |

| چون شمارندم امین مقتدا[2] | دام دیگر گون نهم شان پیش پا |
|---|---|
| په اجمال اجمال غدار داســــــي وغیږي | په مدار مدار مکار داســــــي ګډیږي |
| وایي دوي چه وشــــــمیره لم زه امینه | مقــــتدي ئي وبـــــللم دخپل دینه |
| نو بــــــل رنګ دام ودوي ته کړم تیاره | پداغه دام بــــه نو دوي کړم ګرفتاره |
| دلته نســـــته رنګ بــــیان دد ام اي یاره | آینده بــه در ته راســـي تفصیل واره |
| اوسُ فقــط وزیر شــمه دفریب ښودل کړي | وبــاچا ته قــــناعت په ورکول کړي |
| خو تفصیل دفریب ئي وروسته معلومیږي | چه قـــــصه وماوتاته شـــــړل کیږي |
| اوس بـــــه زه وته پدي کړو فـــــناعته | پره تفصیل به زده کړو پس تر فراغته |

(۲) پدي بــیت کښي هم فتنه انګیزي په بــله فتنه اجمالاً بــیانه وي د تفصیلــه څخــه دده د سابــق غوندي کوي دا یه تعلق وارتباط په ضمن کښي دا خبــره هم بــــایدزده کړو چه په دروسرو بیــتو کښي اشــاره وعظمت ته دفتنو دوزیــر ده راغلــو معنــي تـــه هغــه داچه وزیر مکار وایي چه کوم چه ماو نصرانیانو ته دخپل نصرانیت اظهار و کړي او دوي داومانه اوزه ئي امین ومقتدا وشمیرلم نو به زه ددوي دبربادي دپاره دبلي فتني دام ددوي وپښو ته ورواچوم په هغه باندي دربدر کړم نصراني دین به ورختم کړم تابه ددوي دقتله وو تعقیبه خلاص کړم مطمئن اوسه ۱۲

(۱) دابیت هم په مثل دسابق داجمالي فتني بیان دي دايه تعلق وارتباط راغلومعني ته هغه داچه وزیرمکار وباچاته وایي چه زه ددخپلو حیلو څخه فریب اوچل اچول دوي تولولره وکړم !اوددوي په مابین کښي به واچوم سل دمدمي وهلاکته یعني دوي به زه په رقم رقم حیلوخطاکړم خپل دین ومذهب به ورباندي پوشیده کړم خپل په مابین کښي په قتل قتال مصروف کړم ددین فکربي دمغزوڅخه دباندي کړم دغه ظالم مکارهم دغه کاروکړي لکه په قصه چه به مفصل درته راسي نوبه ولي تراهرمن بترنه وي ۱۲

(۲) دسابق سره ئي تعلق وارتباط پدي خاطردی چه دابیت یو شمه دائردفتني اجمالي دی راغلومعني ته هغه داچه وزیرمکاروباچاته یو اثرداثرانوڅخه دخپلوفریب وبنیي نو ورته وایي چه زه په عیسویانو کښي داسي فتني واچوم اوداسي دمدمي په کښي روي کارکړم چه دوي به په خپل لاس یودبله خپلي وېني پرمځکه سره توي وي دین به ئي دخوا دخاطر ووزي خودبه خوده به ددینه څخه ووزي نصراني دین به ختم سي زماوستاوقتل ته به ضرورت پاته نه سي همدارنګه مکار وزیروظالم باچاته وویل چه پردي ځاي نوزما بیان وتاته دمجرد ذکر دحیلوپاي ته ورسیدي

| وز حیل[1] بفریبم ایشان را همه | واندر ایشان افگنم صد دمدمه |
|---|---|
| دايه مثل دسابق سیاق روان دی | دوزیرپرسابقه مقصد بیان دی |
| واي حیلي وفریب زه اچوم پکاره | دوي به تولـه په دي دام کړم ګرفتاره |
| زه به واچوم په دوي کښي سل آفته | هم ددوي ته به زه جوړکړم هلاکته |
| په رقم رقم حیلوبي زه خطاکړم | دخپل دینه ومذهبه بي جلاکړم |
| څه حیلي چه راسره زه بي روي كاركړم | سل رقمه دمدمي به وربه واركړم |
| دغه کارماته اسانه دی بالکله | مطمئن سه غم ئي مه کوه هیڅکله |
| زه وته چه دقصي پره پره تحقیق کړو | دخبیث ملعون خبري به تصدیق کړو |
| نوفریب جن دزماني به ولي نه وي | اهرمن دزماني به ولي نه وي |

| تا بدست خویش[2] خون خویشتن | بر زمین ریزند کوته شد سخن |
|---|---|
| یاري غوږسه ووزیرته مسلمانه | دخپل مکرودفریب کوي بیانه |
| وایي زه به حالت داسي کړم عیاره | په حیلوبانـدي وکړم داسي کاره |
| نصرانیان به خودبه خودسره وژل کړي | هم خپل وېني به پرمځکه تویه ول کړي |
| په کافربه ږدپه ږدسره ویشتل کړي | په داغه نامه به یوبل قتلول کړي |
| ماوتابه ورته کښینویوي خواته | عیسوي دین به ددوي دخواسي پاته |
| داچاره ددوي ددین دورکیدلو | ضرورت ئي موږته نسته دوژلو |
| چه وتاته مي چم وښودی تمامه | پرداغه نوختمه وم زه خپل کلامه |
| اوس نوراسه ماوتاوکړوداکاره | چه عمل کړودحیلوفریب وروي کاره |

اوس نوراځه چه حیلي روي كاركړواوخپل مقصدولاس ته په راوړوچه هغه دنصرانیت ورکیدل دی ۱۲

(۱) پدې کښې شک نسته چه په خپل مابين کښې دوينوتو يه ول نتيجه وواثردتلبيس دي نوېدي خاطرددي عنوان ربط دآخري بيتئه سره قائم سواودعنوانينوربط موږ وتاسي په اشعاروکښې سره زده کړي راغلواوس ومعني ته دعنوان هغه داچه داعنوان ثابت دي په بيان کښې دتلبيس دوزيرپرنصاري ووباندي خلاصه دعنوان داده چه اوس يوواري دغه مکاروزيرحيلي پرباچاباندي عرضه وي دده داطمنان دپاره دوم ځل ئي بياپرعيسويانو عملي کوي نواوس ته دده وکذب ورروغو ته لودده ولبس وتلبيس ته فکروکړه لودده و عرض وعمل ته متوجه سه نولاچاره به ووايي چه سبحان من عداوة اليهود الذين غضب عليهم نوموږ وتاسي بايدوپيژنوچه ديهود دين وديدن عداوة ودښمني ده وبس ۱۲

## تلبيس وزير با نصراني (۱)

| | |
|---|---|
| په سابق کښې وزيرداويناکوله | طريقه ئي دحيلي شاه ته ښودله |
| هم اثرئي دحيلوورته بيان کړې | مکررئي دامضمون ورته روښان کړې |
| باوري په خپل حيلونامسلمانه | نوبه خودتاکيدکاوه دغه شيطانه |
| په سابق کښې دحيلي څه تفصيل نه وو | بيله ډوله واثرڅه تحليل نه وو |
| اوس نووقت راغلي ددي چه داابليسه | مفصل بيان کړي خپل حيله تلبيسه |
| نوېدي عنوان شروع ده دتفصيله | خوپه نوروعنوانوبه سي تکميله |
| دانوربط دعنوانينوبرملادي | دسابق لاحق ترون پره هويدادې |
| اوس وحال ددي ابليس ته مفتکرسه | وحيلووفريبوتي منتظرسه |

| | |
|---|---|
| پس بگويم من بسر نصرانيم (۲) | اى خداى راز دان ميدانيم |

| | |
|---|---|
| اوس وزيرمکار، راوړي داسي سوغاته | څه تفصيل دحيلي وايي وباچاته |
| وايي پس ستاترفراروايم وتاته | زه به ورورمه پناه ونصاراته |
| دوي ته وايم زه په دين عيسوي وم | دباچاڅخه په پټه نصراني وم |
| والله ته به کوم داسي خطابه | ته په سِريه خبرداردهره بابه |
| ته خبرئي زماپه باب چه عيسوي وم | خوظاهردشاه دجوره جهودي وم |
| زمااصلي دين خوهم دانصرانيت وو | خوپه ځنگ ددي ظالم کښې هلاکت وو |
| دغه سِرنوووپټ کړې زماوجدانه | ته خبرئي زماپه حال پاکه سبحانه |
| دغه څومره بيشرمي ده دوزيره | چه جرائت کوي پرداقسم تقريره |

(۲) دابيت وآينده بيتونه ټوله بيان د تلبيس وحيلودوزير مکاردي اوبيان دخود ساخته دروغوفريبو دي چه اوس ئي في الحاله پرباچاباندي عرضه وي دده داطمنان دپاره واپس ئي بيا پرعيسويانوبيانوي لوپر دوي باندي هم مني هم ئي پرعملي کوي پدي وجهه ددي بيت ودآينده بيتو دعنوانه سره همدارنگه خپل په مابين کښې تناسب وارتباط حاصل سوراغلومعني ته هغه داچه اوس وزير وباچاته دخپلو حيلوچه دي ئي عيسويانوته پکاراچوي بيان کوي نووايي وقت چه تازه دوطنه فرارکړم اوما عيسويانوته پناه ورووړه نوزه به ودوي ته ووايم چه زه په پټه نصراني وم اووخداي ته به داسي خطاب کوم چه اي رازدانه خدايه ته خوعلم لري اوته پيژه ني ماچه نصراني يم نودادعنوان حيلي يووارباچاته عرض کړي بيا عيسويانوته ۱۲

ابوالحفاظ :مولوي صالح محمدالارغستاني .

